(حقوق طبع د مصنف د پاره محفوظ دی)

ولقد يسرنا القرآن للذكر فهل من مدكر

# تفسير

# احسن الكلام

بلغة البشتو

للشيخ أبي زكريا عبد السلام الرستمي

## الجزء السادس

شپږم جزء

از سورة طه تا سورة عنكبوت

الناشر

جامعة عربية لاشاعة التوحيد والسنة

بده بير - پشاور

سورۃ طٰه مکیة | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰیاتها ۱۳۵ رکوعاتها ۸

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړم په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے

طٰهٰ ﴿۱﴾ مَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ

نه دے نازل کړے مونږ په تا باندے قرآن

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورۃ طٰهٰ ، دیته سورۃ کلیم هم وائی۔

ربط :۔ د دے د تیرشوی سورت سره دا دے ، چه په هغه سورت کښې د توحید اثبات او شو په جواب د شبهاتو سره نو اوس په دے سورت کښې تشجیع او ترغیب ورکوی په دعوت او تبلیغ د دعوه مسئلے سره او دارنګ د سوره مریم آخری آیت کښې هلاکت د تیرشوے منکر قوموتو اجمالاً ذکر شوے وؤ۔ نو پدے سورت کښې د هغے نمونه ذکر کوی په واقعه د فرعونیانو سره۔

دعوٰی :۔ د دے سورت تشجیع ده په دعوت د توحید باندے سره د اثبات د توحید نه۔ آیاتو نه د تشجیع شپږ دی۔ او واقعه د موسیٰ علیه السلام او د ساحرانو حال پس د ایمان راوړلو نه د پاره د تشجیع ده۔

خلاصه د سورت :۔ په دے سورت کښې دوه حصّے دی۔ اوله حصه ترے ۹۸ پورے ده۔ په دیکښې تمهید دے ترے ۸ پورے په هغے کښې تشجیع ده په دعوت باندے په ۲ ۳ کښې۔ او ینځه عقلی دلیلونه دی سره د دعوے د توحید نه او دا واقعه د موسیٰ علیه السلام ده د پاره د تشجیع۔

۱ :۔ دا آیت د مقطعاتو نه دے۔ د هغے بحث تیرشوے دے دلته روایت د ابن جبیر دا دے چه دا په معنیٰ یا رجل سره دے " اے سړیه " او په لغت د قریشو کښې هم پدے معنیٰ سره استعمال شوے دے۔

لِتَشْقٰٓى ۝٢ اِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَنْ

چه په تکلیف شې ⸻ مګر ذدې دپاره چه یادداشت شي ⸻ هغه چا لره

يَّخْشٰى ۝٣ تَنْزِيْلًا مِّمَّنْ خَلَقَ

چه ویره کوي. ⸻ نازلیدل دهغه ذات دطرفنه ⸻ چه پیدا کړیده

الْاَرْضَ وَالسَّمٰوٰتِ الْعُلٰى ۝٤

زمکه ⸻ او ⸻ آسمانونه ⸻ اوچت.

اَلرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى ۝٥

عام رحمتونو والا دے ⸻ د ⸻ عرش د پاسه ⸻ برابر دے.

۲، ۳:- دے دوارو آیاتونو کښ شجاعت ورکول او ترغیب دے په تبلیغ د قرآن کریم یعنی د قرآن مقصد د انزال تذکره او نصیحت ورکول دی مقصد ئې مشقت او تکلیف نه دے او اِلَّا استثناء منقطع ده او تَذْكِرَةً کښ د ذکر نه ډیره مبالغه ده. او نه بدبخت کیدل.
لِتَشْقٰٓى د مشقت نه ماخوذ دے یا د شقاوت نه.
لِمَنْ يَّخْشٰى، ئې د دے وجې نه ذکر کړلو چه فائده اخستل د قرآن نه په خشیت او په انابت باندے موقوف ده.
۴:- په دے آیت کښ بیان د عظمت د کتاب الله دے - او دلیل عقلی اول دے په توحید باندے په ذکر د خالقیت د الله تعالیٰ سره.
تَنْزِيْلًا، بدل دے د تذکرة نه یا مفعول مطلق د پټ فعل د پاره یعنی نُزِّلَ تَنْزِيْلًا. تنزیل په اصل کښ تعلق د د خکته او د بره په مینځ کښ هر کله چه تنزیل کښ معنیٰ د خکته راتلو مخکښ ده. د دے وجې نه زمکه ئې مخکښ ذکر کړیده.
۵:- دا دویم دلیل دے په ذکر د صفت د رحمانیت د الله تعالیٰ او فوقیت په عرش باندے او د استوٰی او عرش معنیٰ ښکاره ده یعنی د عرش د پاسه دے. او عرش د آسمانونو د پاسه دے هاں د هغې کیفیت د مخلوق سره هیڅ مشابهت نه لري او دا عقیده د ټولو

لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي

خاص دَ هغه اختيار کښې دي هغه څيزونه چه آسمانونو کښې دي او هغه چه

الْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ

زمکه کښې دي او هغه چه دَ دے دواړو په مينځ کښې دي او هغه چه لاندے

الثَّرٰى ۝٦ وَاِنْ تَجْهَرْ بِالْقَوْلِ

دَ لوند خټو نه دي. او که ته ښکاره ووايې خبره

فَاِنَّهٗ يَعْلَمُ السِّرَّ وَاَخْفٰى ۝٧

نو يقينا الله تعالىٰ پوهيږي په پټه او په ډير پټه.

سلف صالحينو او ائمه مجتهدينو ده - او دَ امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دے چه چا داسے او ئيل چه زه نه پوهيږم چه رب زما په آسمان کښې دے يا په زمکه کښې دے نو هغه سړے کفر او کړو ځکه چه الله تعالىٰ فرمائي الرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى دا په فقه اکبر او شرح عقيده طحاويه کښې ذکر شوي دي. دَ امام مالک رحمه الله نه نقل دے هغه فرمائيلي دي چه استوٰى مجهول نه ده (يعني معنىٰ ئے معلومه ده) او کيفيت دَ استوٰى معقول نه دے او ايمان پرے باندے فرض دے او بحث تپوس ترے کول دَ دے نه بدعت دے.

ش :- دا دريم دليل دَ په توحيد باندے. مراد دا دے چه تصرف دَ ټول عالم الله تعالىٰ لره خاص دے او په خلق پسے صفت دَ تصرف ذکر کړو چه څوک وهم او نکړي چه خلق به هغه کړے وي ليکن تصرف به ئے بل چا ته سپارلے وي. الثرىٰ، لوندے خټے دي يعني دَ اووه زمکے دَ لاندے چه څه دي نو الله تعالىٰ په هغے عالم دَ او په هغے کښې تصرف کوونکے

ش :- دا څلورم دليل دے او مراد ترينه احاطه دَ علم دَ الله تعالىٰ ده په هر پټ او ښکاره باندے دَ صفت دَ خلق او دَ تصرف سره صفت دَ علم لازم دے.

السِّرَّ نه مراد پټه خبره کول دي دَ يو راز دار سره او اَخْفٰى نه مراد دا دے چه په زړه کښې ئے پټ او ساتي.

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ لَهُ

الله تعالىٰ دے نیشته حقدار د بندگئ سوا د هغه نه خاص هغه لره دی

الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ﴿٨﴾ وَهَلْ

نومونه ښائسته. او آیا (یقینًا)

اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ﴿٩﴾ اِذْ رَاٰ

راغلی دے تا ته خبر د موسیٰ علیه السلام. کله چه اولیدلو

نَارًا فَقَالَ لِاَهْلِهِ امْكُثُوْٓا اِنِّيْٓ

اور نو وے وئیل کور والو ته حصار شئ یقینًا ما

۸: دا دعویٰ د توحید ده او ورسره پنځم دلیل دے.
اَلْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى، هغه دی چه الله تعالىٰ ځان د پاره په منزلو کتابونو خپلو کښ بیان کړے دی یا انبیاء علیهم السلام د الله تعالىٰ د پاره ثابت کړے وی. او حُسْنٰى ځکه دی چه په کمال دلالت کوی او شریک پکښ نشی کیدے او قدیم او همیشه وی او په نقل د وحی باندے بنا دی او الله تعالىٰ په هغے کښ مخلوق ته محتاج نه دے.
۹: خلاصه: د دے آیت نه تفصیل د قصے د موسیٰ علیه السلام شروع کیږی. او لوے مقصد پکښ شجاعت او بهادری ورکول دی. په تیرولو د مصیبتونو د دعوت سره پشان د موسیٰ علیه السلام او د ساحرانو روستو د ایمان راوړلو نه. او په دے واقعه د دے سورت کښ شپږ مقامات دی. اول مقام د دے آیت نه شروع دے تر ۴۲ پورے په یکښ ذکر دے د حال د واپسئ د موسیٰ علیه السلام د مدین نه مصر ته او سپارل د رسالت دی هغه ته په توحید سره او دوه حکمونه د پاره د تکمیل د توحید او اخبار د قیامت دے او تثبیت او تشجیع ده او ذکر د دوه معجزاتو د موسیٰ علیه السلام دے.
وَهَلْ اَتٰىكَ، په دے سره مقصد تنبیه ده. هَلْ په معنیٰ د قد سره دے.

اٰنَسْتُ نَارًا لَّعَلِّيْٓ اٰتِيْكُمْ مِّنْهَا

لیدلے دے اور کیدے شي چه زاوړم تاسو ته ذ هغے نه

بِقَبَسٍ اَوْ اَجِدُ عَلَى النَّارِ هُدًى ⑩

لیت (شعله) یا به اومومم د اور په خوا کښې لار خودونکے۔

فَلَمَّآ اَتٰىهَا نُوْدِيَ يٰمُوْسٰى ⑪

پس هر کله چه راغے هغه ته آواز ورکړے شو اے موسیٰ۔

اِنِّيْٓ اَنَا رَبُّكَ فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ ۚ

یقینًا زۀ رب ستا یم نو اوباسه کیړئ خپلے۔

اِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ⑫

یقینًا ته په لمن د غر کښې ئے چه پاکه ده نوم ئے طوی دے۔

سل:۔ اُور ئے ورته په اعتبار د گمان د موسیٰ علیه السلام اووئیلو او د سوره نمل او سوره قصص نه معلومیږی چه مقصد ئے د قبس نه گرم والے حاصلول وو او لار ترینه ورکه شوے وه د دے وجے د هادی ذکر ئے اوکړو۔ او حرف او د پاره د منع د خلو دے یعنی جمع کیدل دا دواړه مقصد ونه هم کیدے شی عَلٰی په معنیٰ د عِندَ دے۔

سلا۔ نُوْدِيَ نه مراد دا دے چه د اوسے د طرف نه آواز اوکړے شو دا اسے په سوره قصص کښې هم راغلی دی۔

سلا:۔ دا تفصیل د نداء دے په دیکښې اول تعین د منادی دے چه الله تعالیٰ دے او بیان د آدب دے چه خپلے کیړئ اوباسه کۀ په هغے کیړو کښې نجاست وی نو ویستل ئے ضروری دی او کۀ په هغے کښې نجاست نۀ وی نو ویستل ئے ادب دے۔

طُوًى، دا نوم دے د هغه پاک میدان چه په هغے کښې برکات راغونډ کړے شویدی او دا آیت دلیل دے چه انبیاء علیهم السلام نعلین استعمال کړے دی اگرچه د هغے کیفیت متعین نه دے۔

وَأَنَا اخْتَرْتُكَ فَاسْتَمِعْ لِمَا
او ما ته غوره کړے یې نو غوږ کیږده هغې ته چه تا ته یې

يُوحَىٰ ﴿١٣﴾ إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَٰهَ
وحی کیږي شي. یقیناً زه الله یم نشته حقدار د بندګۍ

إِلَّا أَنَا فَاعْبُدْنِي وَأَقِمِ الصَّلَاةَ
سوا زما نه نو بندګي خاص کړه ما لره او پابندي د مانځه کړه

لِذِكْرِي ﴿١٤﴾
د پاره د یاداشت زما.

۱۳:- په دے آیت کښ ذکر د رسالت دے د موسیٰ علیه السلام په اختَرْتُکَ سره او بیا حکم دے په اوریدلو د وحی سره.
مراد د اخترتک نه غوره کول او منتخب کول دی د پاره د رسالت اشاره ده چه رسول د باقی مخلوق نه غوره وی.
فَاسْتَمِعْ اشاره ده چه د رسول اوله ذمه واری د الله تعالیٰ وحی ته په پوره توجه سره غوږ کیخودل دی.
۱۴:- په دے آیت کښ یې د وحی درے اجزاء ذکر کړیدی. اول جز مسئله د توحید، دویم جز امر کول په عبادت سره د پاره د عمل د توحید، او دریم جز حکم کول دی خاص په مانځه سره یعنی توحید د الوهیت او توحید د عبودیت او توحید د حکم کښ.
اَقِمِ الصَّلٰوةَ، په دیکښ ذکر د آدب دے د پاره د دعوت کوونکی د حق چه د مونځ پابندی او ذکر الٰهی کښ مشغولیت دے.
لِذِکْرِیْ، کښ دیرے معنے دی. اوله دا چه د ذکر نه مراد توحید دے یعنی مونځ کوه د پاره د مضبوطیدلو په توحید باندے.
دویمه معنیٰ یادول د الله تعالیٰ په مانځه کښ.
دریمه معنیٰ دا ده چه کله مونځ درنه هیر شی یا اوده پاتے شے د مانځه نه نو کله چه درایاد شی درته مونځ نو په هغه وخت کښ.

إِنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ أَكَادُ أُخْفِيهَا

يقيناً قيامت راتلونکې دے غواړم چه پټ يې اوساتم.

لِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا تَسْعٰى ⑮

د پاره د دے چه بدله ورکړے شي هر نفس ته د هغه عمل چه دغه کړے وي.

فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا مَنْ

نو دا دے نه منع کړي تا لره د دے نه هغه څوک چه

لَّا يُؤْمِنُ بِهَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ

ايمان نه راوړي په دے باندے او تابع وي د خواهش خپل

فَتَرْدٰى ⑯

نو هلاک به شې.

اوکړه - او حديث صحيح کښ هم دا مضمون دے. نو په دے کښ دليل دے چه څوک قضلي د مونځونو روستو کوي د رمضان آخري جُمعے ته او هغے ته قضاءِ عمري وائي نو دا خلاف کول دي د دے آيت او د صحيح حديث نه -

۱۵:- په دے آيت کښ د وحي څلورم جز دے چه هغه راتلل د قيامت دي- ځکه چه توحيد او ايمان په آخرت دواړه اصل د اصولو د ايمان دي - دا ئے بغير د حرف عطف نه ذکر کړيدے ځکه چه علت دے د پاره د ماقبل - دا رنګ دا مستقل حکم دے.
أَكَادُ أُخْفِيهَا د دے دوه معنے دي. اوله معنیٰ دا چه نیژدے ده چه ښکاره به کړم قيامت لره - دويمه معنیٰ دا ده چه غواړم زه پټ ساتل د علم د قيامت د مخلوق نه - ځکه چه اخفاء په لغت د عرب کښ د اضداد نه دے يعني ښکاره والے او پټ والے دواړو د پاره استعماليږي. په روستو معنیٰ سره أَكَادُ په معنیٰ د اريد سره دے - لِتُجْزٰى، په اوله معنیٰ سره دا تعلق لري د أُخْفِيهَا سره او په دويمه معنیٰ کښ تعلق لري اٰتِيَةٌ سره -
۱۶:- په دے آيت کښ تشجيع ده موسیٰ عليه السلام ته په مضبوط

وَمَا تِلْكَ بِيَمِينِكَ يٰمُوسٰى ﴿۱۷﴾

او څه دي ستا په ښي لاس کښې اے موسٰی.

قَالَ هِيَ عَصَايَ ۚ أَتَوَكَّؤُا عَلَيْهَا

او ئیل هغه دا همسا زما ده تکیه لګوم پرے پانړے

وَأَهُشُّ بِهَا عَلٰى غَنَمِي وَلِيَ فِيهَا

او راښتم پا نړے پرے سره په خپلو ګډو بزو باندے او ما لره پدا کښې

مَآرِبُ أُخْرٰى ﴿۱۸﴾

فائدے نورے دي.

کیدلو سره پدغه وحی باندے او په بیان کولو د هغے سره. او دا سے په سوره قصص ۸۲ کښې هم ذکر دي او دا دوه صفتونه عدم ایمان په آخرت ۱۶ او اتباع د خواهش بنیاد دے د هلو خبالتشو دپاره او په دیکښې اشاره ده فرعون ته لیکن صفات ئے ذکر کړل دپاره د دے چه عام شي.

فَتَرْدٰى په اصل کښې د بره نه ښکته راغورځولو ته وئیلے شي مراد تری نه هلاکت دے او اشاره ده چه دعوت د حق پریښودل سبب د ذلت دے په دنیا کښې او سبب د جهنم دے په عقبیٰ کښې.

۱۷:- پدے آیت کښې تمهید دے دپاره د معجزے ورکولو موسٰی علیه السلام ته او مقصود پدے تپوس سره بیا تول د موسٰی علیه السلام دی فائدو د همساء لره. لیکن د مارچو ډیرولو فائده ورته معلومه نه وه نو دلیل دے چه دا معجزه ده او حرف د مَا دپاره د تپوس د شرح د فوائدو دے.

بِيَمِينِكَ. دا دلیل دے پدے خبره چه همسا استعمالول په ښي لاس سره د پیغمبرانو سنت دی.

۱۸:- پدے جواب کښې څلور جملے دی د اولے جملے مطلب دا دے چه دا همساء پردئ نه ده بلکه زما ده او اوګل ول د کلام د وجے د محبت

# قَالَ اَلْقِهَا يٰمُوْسٰى ﴿۱۹﴾ فَاَلْقٰهَا

اوئیل الله تعالیٰ اوغورځوه دا (همسا) اے موسیٰ۔ نو او غورځوله هغه

# فَاِذَا هِيَ حَيَّةٌ تَسْعٰى ﴿۲۰﴾

نو دغه وخت هغه مار شو منډے یے وهلے۔

نه دی او دریمه جمله کښ ذکر دَ دوؤ فائدو دے۔ اوله فائده دَ ځان سره تعلق لری۔ او دویمه فائده دَ ځاروؤ سره تعلق لری۔ او په څلورمه جمله کښ اشاره ده ډیرو فائدو دَ همساء ته او په دیکښ ترغیب دے چه استعمالول دَ همساء لښتهٔ کار دے او سنت دی۔ او آیت دلیل دے چه گډے پیزے سرول دَ نبوت نه وړاندے تادیب دے دَطرف دَ الله تعالیٰ نه انبیاؤ ته داسے په حدیث صحیح کښ دی چه هر یو نبی گډے پیزے دَ نبوت نه مخکښ سرولے دی۔

س۱۹:۔ په دے کښ مقصد بله فائده ښکاره کول دَ همساء دی په طریقه دَ معجزے سره او دا فائده دَ موسیٰ علیه السلام په علم کښ نه وه نو دا معجزه وه۔ او اَلْقِهَا کښ اشاره ده چه مخکښ فائدے په هغه وخت کښ دی چه همساء ستا په لاس کښ وی اوس داسے فائده اوګوره چه دَ لاس نه بغیر وی۔

س۲۰:۔ حَيَّةٌ، اسم جنس دے مطلق مار ته وائی که غټ وی او که ترے وی۔ نو سورهٔ نمل او سورهٔ قصص کښ فرمائیلی دی۔ كَاَنَّهَا جَآنٌّ ، یعنی دَ نری مار پشان ووُ۔ او سورهٔ اعراف او سورهٔ شعراء کښ ذکر دے ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ، غټ مار ښکاره ووُ۔ نو لفظ حَيَّةٌ دواړو ته شامل دے۔ دلته مقصد انقلاب دَ حقیقت دے چه دَ لرګی نه مار جوړیږی او په دے باندے لفظ دَ حَيَّةٌ پوره دلالت کوی۔

قَالَ خُذْهَا وَلَا تَخَفْ سَنُعِيدُهَا

اُوئیل الله تعالٰی اونیسه دا او مه وېرېږه زر دے او به ګرځوو دا

سِيرَتَهَا الْأُولٰى ﴿٢١﴾ وَاضْمُمْ يَدَكَ

حالت دَ دے مخکنی ته ۔ او جوخت کړه لاس خپل

إِلٰى جَنَاحِكَ تَخْرُجْ بَيْضَاءَ

دَ خپل ترخ سره را اوبه اوځی سپین

مِنْ غَيْرِ سُوٓءٍ اٰيَةً أُخْرٰى ﴿٢٢﴾

بغیر دَ نقصان نه نښه بله ده ۔

لِنُرِيَكَ مِنْ اٰيٰتِنَا الْكُبْرٰى ﴿٢٣﴾

دَپاره دَ دے چه اوخایو مونږ تاته دَ نخو زمونږه لویو نه ۔

سلا ۔ معلومه شوه چه دَ ظاهری اسبابو نه طبعی ویره کول دَ کمال سره منافات نه لری ۔ او دَ دے آیا تونو نه معلومه شوه چه کومه معجزه وه یعنی دَ همساو نه مارجوړیدل او دوباره همساو ته واپس کیدل دا دَ موسیٰ علیه السلام اختیار کښ نه وو له دے وجے نه هغه ته ئے نسبت اونه کړو ۔ او همساء خوزخول او بیا رانیول اختیاری کارونه دی معجزات نه دی نو دَ هغے نسبت ئے موسیٰ علیه السلام ته اوکړو ۔

سلا ۔ په دے آیت کښ دویمه معجزه ذکر کړے شوے ده ۔ جَنَاحِ ، په معنیٰ دَ متې دے بیا مراد دَ دے نه اړخ دے ۔ یعنی دَ متې دَ لاندے سُوٓءٍ په معنیٰ دَ داسے مرض او نقصان سره چه انسان لره خفه کوی په اوله معجزه کښ غلبے دَ حجت دَ موسیٰ علیه السلام ته اشاره ده او په دویمه کښ رنړا او وضاحت دَ دلیل ته اشاره ده ۔

سلا ۔ مراد دَ دینه هلاکت دَ فرعون او دَ قوم دَ هغه دے په سبب دَ انکار کولو دَ معجزاتو نه ۔ ځکه دا دَ قدرت او توحید دَ الله تعالٰی ښکاره دلیل دے ۔

اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ

لاړشه فرعون ته یقینًا دی

طَغٰى ﴿۲۴﴾ قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِیْ

سرکشي کړیده - اوئیل موسیٰ اے ربه پرانیزے ماله

صَدْرِیْ ﴿۲۵﴾ وَیَسِّرْ لِیْ اَمْرِیْ ﴿۲۶﴾

سینه زما - او آسان کړے ماته کار زما -

۲۴:- دے آیت کښ فرعون ئے خاص کړو په ذکرکولو سره اګر چه رسالت د موسیٰ علیه اسلام د هغه قوم ته هم عام وؤ - دا د دے وجے نه چه فرعون پابندی لګولے وه په هر دعوت کونکی د حق باندے او قوم ئے منع کړے وؤ د حق اوریدلو نه او دا د دهٔ طغیان وو -

اِنَّهٗ طَغٰى ، دا علت دے د پاره د رسول لیږلو خصوصًا -

۲۵:- خلاصه: د دے آیت نه دویم مقام شروع کیږی تر آیت ۳۶ پورے په یکښ دُعا د موسیٰ علیه اِلسلام ده په شپږ وغیرو سره او قبولیت د هغے دُعاګانو دے د الله تعالیٰ د طرف نه په طریقه د احسان سره - او ذکر د احسانونو مخکنو دے اجمالاً بیا حکم کول دی موسیٰ علیه السلام ته چه لاړشه فرعون ته سره د بهادرئ نه -

فائده: د سینے د پرانستلو نه مراد توفیق د صبر او د استقامت دے په وخت د مصیبتونو د رسالت کښ - او رفع د شکونو او شبهاتو ده او دا اشاره ده رفع د موانعو د دعوت نه -

۲۶:- په دے آیت کښ دویمه دُعا ده او مراد د دے نه اسباب ظاهری او باطنی حاصلول دی چه په هغے سره کار د رسالت آسانیږی -

وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِيْ ﴿۲۷﴾

او پرانیزے غوټه د ژبے زما

يَفْقَهُوْا قَوْلِيْ ﴿۲۸﴾ وَاجْعَلْ لِّيْ

چه پوهه شي دوي په وينا زما. او جوړ کړه ما لره

وَزِيْرًا مِّنْ اَهْلِيْ ﴿۲۹﴾ هٰرُوْنَ

ملګرے د کورنۍ زما نه. هارون

اَخِيْ ﴿۳۰﴾

ورور زما.

۲۷، ۲۸:- په دے آیاتونو کښ دریمه دُعا ذکر شوے ده او د هغې فائده ذکر شوی ده. او د ژبے د غوټے نه مراد ظاهري نقصان دے د هغه په ژبه کښ یا مراد دیته بندیدل د ژبے دي د وجے د هیبت نه- او دا د دعوت کوئنکی دپاره ضروري دي.

يَفْقَهُوْا قَوْلِيْ، اشاره ده چه په اقوالو او سنت د نبي باندے پوهیدلو نه فقاهت ویلے شي.

۲۹، ۳۰:- په دے آیاتونو کښ څلورمه دُعا ذکر ده په باره د ورور د موسیٰ علیه السلام کښ او دا نهایت احسان دے د یو ورور د بل ورور سره- او مراد د وَزِيْرًا نه شریک دے د نبوت په بوج کښ- یعني بوج د رسالت ګران دے په دیکښ قریبي مدد ګار پکار دے.

مِنْ اَهْلِيْ او اَخِيْ کښ اشاره ده. دا سے ملګرے پکار دے چه په هغه باندے اعتماد کیدے شي.

اشْدُدْ بِهٖٓ اَزْرِيْ ﴿۳۱﴾ وَ اَشْرِكْهُ فِيْٓ

کلکه کړې په ده سره ملا زما۔ او برخه دار کړې ده لره په

اَمْرِيْ ﴿۳۲﴾ كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيْرًا ﴿۳۳﴾ وَّ

کار زما کښې۔ دې د پاره چه ستا تسبیح وایو ډیره۔ او

نَذْكُرَكَ كَثِيْرًا ﴿۳۴﴾ اِنَّكَ كُنْتَ بِنَا بَصِيْرًا ﴿۳۵﴾

یاد دې تا لره ډیر۔ یقینًا ته مونږ لره ویني۔

قَالَ قَدْ اُوْتِيْتَ سُؤْلَكَ يٰمُوْسٰى ﴿۳۶﴾

او ئیل الله تعالیٰ درکړے شو غوښتلے شوي څیز ستا ته اے موسیٰ۔

وَ لَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً

او یقینًا احسان کړیدے مونږ په تا باندے بل

۳۱، ۳۲:۔ دا یتمه او شپږمه دُعا ده په دې کښې مقصد علت د تخصیص د ورور دے په دے دُعا سره ځکه چه ملا مضبوطیږي په ملګرتیا د ورور سره۔

وَ اَشْرِكْهُ، په دې کښې تصریح ده چه مراد د وزارت نه هسې ملګرتیا نه ده بلکه مراد ترینه پیغمبري ده۔ او دا آیت دلیل دے په دے خبره چه نبوت ورکول الله تعالیٰ نه سوا د بل چا اختیار کښې نشته دے۔

۳۳، ۳۴:۔ په دے آیتونو کښې د ملګرتیا د رسالت فائده بیانوي۔ د تسبیح نه مراد رد دے په شرک باندے او ذکر نه مراد دعوت د توحید دے۔

۳۵:۔ په دے آیت کښې ذکر د یو صفت د الله تعالیٰ دے د پاره د وسیلے د دُعا۔

۳۶:۔ په دے آیت کښې ئې قبولیت د دُعاګانو ذکر کړے دے۔ سُؤْلَ په معنیٰ د مسئول سره دے ټول مسئولات دُعاګانے مخکنۍ مراد دي۔

أُخْرَىٰ ﴿٣٧﴾ إِذْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّكَ مَا

کله چه خبر درکړو مونږ ستا مور ته هغه چه

يُوحَىٰ ﴿٣٨﴾ أَنِ اقْذِفِيهِ فِي التَّابُوتِ

خبر ورکیدې شو. چه واچوه دهٔ لره په صندوق کښې

فَاقْذِفِيهِ فِي الْيَمِّ فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ

بیا واچوه صندوق په دریاب کښې نو اویه غورځوي دهٔ لره دریاب

بِالسَّاحِلِ يَأْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّي وَعَدُوٌّ لَّهُ

په غاړه باندې اوبه نیسي دهٔ لره دُشمن زما او دُشمن د دهٔ،

وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي

او واچوله ما په تا باندې مینه د خلقو د طرف زما نه

وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِي ﴿٣٩﴾

او د پاره د دې چه پالنه او کړې شي ستا په سترګو زما باندې۔

۳۷۔ په دې کښې اشاره ده چه قبولیت د دعا احسان دے د طرف د الله تعالیٰ نه یعنی الله تعالیٰ د چا نه مجبوره نهٔ دے۔

۳۸ نه تر ۴۲ پورې په دې کښې بیان د احسان دوميتي دے په نجات د موسیٰ علیه السلام سره د قتل نه او په تربیت د هغه په غیرټ د مور کښې او نجات د غم د قتل کولو د قبطي نه۔ او ډیرو مصیبتونو او امتحانونو کښې مبتلا کیدل۔ او په مدین کښې د امن ژوند تیرول۔ او د دې نعمتونو تفصیل په سورة قصص کښې د ۷ نه تر ۲۸ پورې دے۔ او مراد د وحی نه په ۳۸ کښې الهام دے په واسطه د ملک (فرښتې) سره او دا کرامت د اولیاؤ دے۔

الْيَمِّ، دریابِ نیل مراد دے چه د مصر په مینځ کښې بهیدلے وؤ۔

او مراد د مَحَبَّةً نه په آیت ۳۹ کښې دا سے محبت دے چه چا به موسیٰ علیه السلام لیدلو نو مینه به ئې ورسره پیدا کیدله او خاص

إِذْ تَمْشِيٓ أُخْتُكَ فَتَقُوْلُ هَلْ

کله چه روانه ده ستا خور نو وے وئیل آیا

أَدُلُّكُمْ عَلٰى مَنْ يَّكْفُلُهٗ ۭ فَرَجَعْنٰكَ

او خایئم تاسو ته هغه څوک چه د دهٔ پالنه به کوي، نو واپس اوګرځولے مونږ ته

إِلٰٓى أُمِّكَ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ

ستا مور ته دے د پاره چه یخے شي سترګے د هغې او نه خفه کیږي

وَقَتَلْتَ نَفْسًا فَنَجَّيْنٰكَ مِنَ الْغَمِّ

او اووژلو تا یو تن پس بچ کړے مونږ ته د غم نه زیږے (خستلو ته)

وَفَتَنّٰكَ فُتُوْنًا ۣ فَلَبِثْتَ سِنِيْنَ

او ازمیښتو ته راوستل مونږ به تا پاندې ډیر ازمیښتو ته، بیا حصار شوے څو کاله

فِيٓ أَهْلِ مَدْيَنَ ۥ ثُمَّ جِئْتَ عَلٰى

په مدین والو کښې بیا راغلے ته په

قَدَرٍ يّٰمُوْسٰى ۝ وَاصْطَنَعْتُكَ

وخت مقرر باندې اے موسیٰ۔ او غوره کړے یے ما ته

طور باندے میده د بچے د فرعون ډیره وه او هغه سبب د تربیت او د حفاظت د هغه شو۔ او عَيْنِيْ د صفاتو د الله تعالیٰ نه دے چه معنیٰ د هغې معلومه ده سترګه او کیفیت د هغې معلوم نه دے۔ او تشبیه د مخلوق سره نه ده جائز او تاویل پکښې هم نه دے جائز۔

سئله: وَقَتَلْتَ نَفْسًا، حالات د څوانۍ د هغه ذکر کوی۔ او مِنَ الْغَمِّ پکښې دلیل دے چه په قتل د قبطي کښې ګناه نه وه صرف غم او ویره وه د فرعونیانو نه۔ فُتُوْنًا، او د دیته مراد قسما قسم تکلیفونه او مصیبتونه دی په موسیٰ علیه السلام باندے د وخت د ولادت نه تر وخت د نبوت پورے او تفسیر ابن کثیر کښې حدیث الفتون ذکر کړے۔

لِنَفۡسِیۡ ﴿۴۱﴾ اِذۡهَبۡ اَنۡتَ وَ اَخُوۡكَ بِاٰیٰتِیۡ

د پاره د ځان خپل - لاړشه ته او ستا ورور په معجزو زما سره

وَلَا تَنِیَا فِیۡ ذِكۡرِیۡ ﴿۴۲﴾ اِذۡهَبَاۤ اِلٰی

او مه سستي مه کوئ په بيان د توحيد زما کښې - لاړ شئ دواړه

فِرۡعَوۡنَ اِنَّهٗ طَغٰی ﴿۴۳﴾ فَقُوۡلَا لَهٗ

فرعون ته يقيناً هغه سرکشي کړې ده - نو اووايئ هغه ته

سِنِيۡنَ، مراد ترينه لس کلونه چه سورة قصص کښې هغې ته اشاره وشوې ده - او قَدَرٍ نه مراد ځلويښت کاله دي چه هغه تقرير دے د الله تعالیٰ د پاره د نبوت د اکثرو انبياؤ عليهم السلام - يا مراد د قَدَرٍ نه هغه ليتېه ده چه موسیٰ عليه السلام د شعيب عليه السلام سره مقرر کړې وه -

سلا :- مراد د دينه د نبوت او رسالت د پاره خوره کول دي - او دا دليل دے چه نفس هم د الله تعالیٰ د صفاتو نه دے - اول صرف منتخب کول وؤ د دے وجې نه يې اخترتك وئيلي وؤ - بيا په کارکښې لګول دي نو دلته يې وَاصۡطَنَعۡتُكَ اوئيل ځکه چه اصطناع وئيلے شي د يو کار د پاره تيارول او په کارکښې لګول -

سلا :- روستو د إجابت د دُعا کاتو نه بيا امر دے موسیٰ عليه السلام ته سره د ورور د هغه نه يعني ورور ته يې نبوت ورکړے شو ليکن هغه دغه وخت حاضر نه دے ځکه يې غائب ذکر کړو او په آيت کښې تشجيع ده موسیٰ عليه السلام او ورور د هغه ته چه د ملاهنت نه ځان بچ اوساتي - وَلَا تَنِيَا، دا ادب د دعوت دے -

سلا :- خلاصه: د دے آيت نه دريم مقام شروع کيږي ترسه پورے په دې کښې خطاب دے موسیٰ او هارون عليهما السلام ته او طريقه د دعوت ده ته ۴۳ ۴۴ ۴۵ کښې او تسلي ده دواړو ته په ۴۶ او ۴۷ کښې او جواب د دوؤ سوالونو د فرعون دے د ۴۹ نه تر ۵۲ پورے بيا څلور عقلي دليلونه دي د ۵۳ نه تر ۵۵ پورے -

فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهٗ يَتَذَكَّرُ اَوْ يَخْشٰى ﴿۴۴﴾

وینا په نرمۍ سره کیدایشي چه نصیحت قبول کړي یا او ویریږي.

قَالَا رَبَّنَآ اِنَّنَا نَخَافُ اَنْ يَّفْرُطَ عَلَيْنَآ

او وئیل دواړو اے ربه زمونږه یقیناً مونږه یریږو چه زیاتے به اوکړي په مونږ باندې

اَوْ اَنْ يَّطْغٰى ﴿۴۵﴾ قَالَ لَا تَخَافَآ

یا سرکشي به اوکړي- او وئیل الله تعالیٰ مه ویریږئ

تفسیر:- په دے ۳۳ آیت کښ دواړو ته خطاب ځکه اوشو چه موسیٰ علیه السلام مصر ته راغے او دواړه رونړه یوځائے شول- او هارون علیه السلام ته هم وحی شروع شوه-

۴۴:- په دے آیت کښ بیان د طریقې د دعوت دے چه نرمه لهجه دے وي او دعوت دې وي په دلیلونو سره او وعظ او نصیحت سره-

لَیِّنًا، نه مراد دا دے چه لهجه او طریقه نرمه وي او خبره په دلیلونو سره ځکه وي دوي ته د مداهنت کونکو د پاره استدلال صحیح نه دے- او ابن کثیر اشعار د امیه بن الصلت د دے د پاره ذکر کړے دي چه قول لیّن کښ دلیلونه عقلیه پیش کول مراد دي-

لَعَلَّهٗ، په معنیٰ د امید دے یعنې تاسو چه دعوت کوئ نو امید ساتئ چه فرعون به ایمان راوړي په سبب د تَذَكُّر یا په سبب د خشیت سره امید ئے ذکر کړو ځکه چه انبیاء علیهم السلام په غیب نه پوهیږي نو یقیني فیصله نشي کولے. یا لَعَلَّ په معنیٰ د کَیْ دے یعنې د دے د پاره چه فرعون ایمان راوړي نو مقصد د دعوت نه ایمان د فرعون دے- بیا فرق په مینځ د تذکر او د خشیت کښ دا دے چه کله وعظ او نصیحت او دلیلونه په انسان باندے اثر اوکړي او ایمان راوړي نو دیته تذکر وائي او کله چه تخویف په انسان باندے اثر اوکړي او ایمان راوړي نو دا خشیت دے-

۴۵:- په دے آیت کښ ذکر د خوف طبعي دے چه منافي نه دے د نبوت سره- او دا خوف په باره د مستقبل کښ د ګمان او امید

إِنَّنِي مَعَكُمَا أَسْمَعُ وَأَرَىٰ ﴿٤٦﴾ فَأْتِيَاهُ

يقيناً زه ستاسو سره يم اورم او وينم . پس لاړشئ دواړه هغه ته

فَقُولَا إِنَّا رَسُولَا رَبِّكَ فَأَرْسِلْ

نو اوايئ يقيناً مونږ رالیږلے شوی یو ستا د رب د طرف نه نو پريږده

مَعَنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلَا تُعَذِّبْهُمْ

زمونږ سره بني اسرائيل او تكليفونه مه وركوه دوی ته

قَدْ جِئْنَاكَ بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكَ وَالسَّلَامُ

يقيناً راوړے دے مونږ تاته نخه ستا د رب د طرفنه او د عذاب نه بچ كيدل دى

عَلَىٰ مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَىٰ ﴿٤٧﴾ إِنَّا قَدْ أُوحِيَ

هغه چا لره چه تابعداري د هدايت . يقيناً وحى كړے شويده

په ځاے کښ استعماليږي - او په معنیٰ د علم سره هم راځی . او فرق د فرط او طغيان په مينځ کښ دا دے چه بيان ته غوږ او نه نيسى او د اول سر نه انكار اوكړى نو دا فرط دے او هر كله چه غوږ او نيسى او بيا مخالفت اوكړى نو دیته طغيان وائي .

ف۴۶ :- دا تسلى ده د الله تعالىٰ د طرف نه په نصرت او امداد كولو سره . او معيت صفت د الله تعالىٰ دے او سلف صالحينو د هغے معنیٰ په نصرت او مدد سره كړيده او اَسْمَعُ وَ اَرٰی کښ معنیٰ د معيت ته اشاره ده او دا دواړه فعلونه ئے مطلق ذكر كړے دى اشاره ده عموم ته يعنى ستاسو او ستاسو د دښمنانو خبرے آورم او د دواړو حالات وينم .

ف۴۷ :- په دے آيت کښ بيان د طريقے د دعوت دے - او په دے کښ پنځه خبرے دى - اوله خبره بيان د رسالت دے د پاره د اثبات د ربوبيت د الله تعالىٰ او دا دواړه اصلى مقاصد دى - دويمه ازادول د بنى اسرائيلو د ظلم د فرعونيانو نه ځکه چه دوی نسلاً موحدين وو - دريمه خبره منع كول د فرعونيانو د ظلم كولو نه په بنى اسرائيلو باندے . څلورمه خبره كول په معجزے سره د پاره د اثبات د توحيد او د رسالت - او آيت

إِلَيْنَا أَنَّ الْعَذَابَ عَلَى مَنْ كَذَّبَ

موږ ته چه عذاب په هغه چا باندې راځي چه دروغژن کړي (حق لره)

وَتَوَلَّى ﴿٤٨﴾ قَالَ فَمَنْ رَّبُّكُمَا يٰمُوسٰى ﴿٤٩﴾

او مخ اوګرځوي۔ اوئیل فرعون پس څوک دے ستاسو رب اے موسٰی۔

قَالَ رَبُّنَا الَّذِیْٓ اَعْطٰی كُلَّ شَیْءٍ

اوئیل هغه رب زموږ هغه ذات دے چه ورکړے یې دے هر څیز ته

خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰی ﴿٥٠﴾ قَالَ فَمَا بَالُ

پیدائش د هغه بیا یې ورته لار خودلے ده۔ اوئیل فرعون پس څه حال دے

اسم جنس دے یوه مراد نه ده۔ پنځمه خبره بشارت مؤمنانو ته په سلامتیا سره د عذاب نه او په روستنۍ جمله کښې مقصد سلام کول نه دی۔ هاں د حدیث د هرقل نه په جامع صحیح د بخاری کښې معلومه شوې ده چه کافرانو ته سلام به هم په اسے طریقه کیدلے شي۔

۴۸:۔ په دے آیت کښې تخویف د عذاب دے متکرینو ته۔ روستو د بشارت نه متبعینو ته او بشارت او تخویف دواړه طریقے د دعوت دی۔

تَوَلّٰی، تولی کول مخه د تکذیب ده یا مراد د کذب نه د رسولانو نه انکارکول او مراد د تولی نه د توحید نه مخ اړول دی۔

۴۹:۔ په دے آیت کښې اول سوال د فرعون ذکر کړے شوے دے په باره د ربوبیت کښې هرکله چه هغوی ورته اوئیل رسولا ربك ځکه چه فرعون دعوٰی د ربوبیت د مصر کړے وه چه زهٔ د دے مدبر یم نو د دے وجے نه زهٔ حقدار د بندګۍ یم۔ لکه چه سوره نازعات ۲۴ کښې ذکر دے۔

۵۰:۔ حاصل د جواب دا دے چه رب هغه څوک کیدے شي چه پیدا کوونکے وی او هدایت نه مراد عام دے یعنی هر څیز ته فطری طور باندے د هغه د ژوند د تیرولو طریقے خودل۔ او په لفظ د اَعْطٰی کښې اشاره ده چه خلق (وجود) نعمت او عطیه ده د طرف د الله تعالٰی نه او په دے کښې چه د خلق د پاره کومو مرادونو او اسبابو ته ضرورت دے هغه ټول الله تعالٰی ورکوی۔

الْقُرُوْنِ الْاُوْلٰى ﴿۵۱﴾ قَالَ عِلْمُهَا عِنْدَ

دَ پیړو مخکنو ـ اُوئیل موسیٰ خبر دَ هغې زما دَ

رَبِّيْ فِيْ كِتٰبٍ ۚ لَا يَضِلُّ رَبِّيْ وَلَا

سره دے په کتاب کښ نه غافل کیږی رب زما او نه

يَنْسَى ﴿۵۲﴾ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ

ترینه هیریږی څه څیز ـ هغه ذات دے چه جوړه کړیده ستاسو دپاره زمکه

مَهْدًا وَّسَلَكَ لَكُمْ فِيْهَا سُبُلًا وَّاَنْزَلَ

دَ آرام ځائے او تیارے کړیدی تاسو لره په هغې کښ لارے دَ تللو او را اورولے دی

ف۵۱ ـ په دے آیت کښ دویم سوال دَ فرعون ذکر دے ـ مطلب دَ سوال
دا دے که ستا خبره حقه دی نو تیرو شوو مشرانو خو دَ هغې خلاف کړے
دے او بندګی دَ غیرالله ئې کړے ده نو دَ هغې په باره کښ ته څه وائې ـ
او دا سوال دَ فرعون یوه دهوکه ورکول وُو موسیٰ علیه السلام ته
یعنی که چرے موسیٰ علیه السلام دَ دے په جواب کښ اُووائی چه
هغه ټول ګمراهان وو نو عوام خلق به ترینه ټول ناراض شی ـ

ف۵۲ ـ په دے آیت کښ جواب دے دَ موسیٰ علیه السلام دَ طرف نه
په حکمت سره چه علم دَ هغوئ ئې الله تعالیٰ ته اوسپارلو او په
خپله ئې دَ هغوئ په باره کښ هیڅ فیصله اونکړه ـ او دا ادب دے
دَپاره دَ دعوت کوونکو ـ لکه چه اوس هم مخالفین داسے تپوس نه
کوی نو دَ هغې جواب په داسے طرز سره ورکول پکار دی ـ دَپاره دَ دے
چه هغوی په ضد کښ اخته نشی ـ او په دے آیت کښ دوه صفتونه
(چه هغه صفات سلبیه دی) دَ الله تعالیٰ نه نفی کړے شوی دی ـ

لَا يَضِلُّ ، ضلال په معنیٰ دَ غفلت دے یا په معنیٰ دَ خطاء
کیدلو دے ـ

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخۡرَجۡنَا بِهٖۤ اَزۡوَاجًا

دَ طرف دَ آسمان نه اوبه نو راویستلے دی مونږ په هغے سره جوړے

مِّنۡ نَّبَاتٍ شَتّٰى ﴿۵۳﴾ كُلُوۡا وَارۡعَوۡا اَنۡعَامَكُمۡ ؕ

دَ بوټو مختلفو نه - خورئ او څروئ څاروی خپل

اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِى النُّهٰى ﴿۵۴﴾ ع

یقینًا په دېکښ شته دیرے نخے دَ پاره دَ عقل والو -

مِنۡهَا خَلَقۡنٰكُمۡ وَفِيۡهَا نُعِيۡدُكُمۡ وَمِنۡهَا

دَ دے زمکے نه مونږ پیدا کړی یئ تاسو او په دېکښ به دوباره بوځو تاسو او دَ دینه به

نُخۡرِجُكُمۡ تَارَةً اُخۡرٰى ﴿۵۵﴾ وَلَقَدۡ اَرَيۡنٰهُ

را اوباسو تاسو بل ځل - او یقینًا او خودل مونږ فرعون ته

۵۳:- په دے آیت کښ دلیل عقلی دے په توحید باندے او دیته تنویر وئیلے شی په طریقه د ادخال الٰهی سره یعنی هرکله چه موسیٰ علیه السلام دَ الله تعالیٰ دوه صفتونه سلبیه ذکر کړل په طریقه دَ دلیل سره نو دَ نور وضاحت دَ پاره الله تعالیٰ دَ خپل طرف نه نور دلیلونه دَ توحید ذکر کوی په ذکر دَ صفات فعلیه ثبوتیه سره - او په دېکښ څلور کارونه دَ قدرت دَ الله تعالیٰ ذکر کړے شوی دی- اَزۡوَاجًا جوړے په نر او ماده چه او نو او بوټو کښ هم شته یا ازواج په معنیٰ دَ قسمونو دے.

۵۴:- په دے آیت کښ بل دلیل عقلی دے په ذکر دَ بعضے نعمتونو سره په انسانانو او په څناورو باندے- او دا ئے په صیغه دَ امر سره ذکر کړل ځکه چه خوراک او دَ څارو حق اداکول دَ واجباتو نه دی او په دېکښ مراد

فائده احتمال دی دَ هغه څیزونو نه چه په مخکښ آیت کښ ذکر شوی دی،

النُّهٰى، جمع دَ نهیة یا نهوة ده هغه څیز چه په هغے سره دَ بد کارونو نه منع کیدل کیږی نو هغه عقل او عدل دے په دے شرط چه دَ منع کولو دَ پاره سره استعمال کړے شی۔

۵۵:- په دېکښ بل دلیل عقلی دے او دَ انسانانو دریے حالاتونه ئے ذکر

اٰيٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَاَبٰى ﴿۵۶﴾ قَالَ اَجِئْتَنَا

نخے زموږ ټولے نو دروغژنے کړے او انکار ئے اوکړو۔ اوئیل آیا ته راغلے ئے موږ ته

لِتُخْرِجَنَا مِنْ اَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يٰمُوْسٰى ﴿۵۷﴾

چه اوباسے موږ د وطن زموږ نه په جادو خپل سره اے موسیٰ۔

فَلَنَاْتِيَنَّكَ بِسِحْرٍ مِّثْلِهٖ فَاجْعَلْ بَيْنَنَا

پس راوړه ولو تا ته جادو د دے پشان پس مقرر کړه په مینځ زموږ

وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا لَّا نُخْلِفُهٗ نَحْنُ وَلَآ اَنْتَ

او ستا کښ مقرر وخت چه خلاف به نه کوو موږ او نه ته

مَكَانًا سُوًى ﴿۵۸﴾ قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّيْنَةِ

ځائے برابر۔ اوئیل موسیٰ علیہ السلام مقرر وخت ستاسو ورځ د خوشحالئ ستاسو ده

کړیږی۔ او په هغے د رے وارو حالاتو کښ د وی الله تعالیٰ ته محتاج دی۔ اول ژوند ورکول بیا مرګ بیا دوباره ژوند (بعث بعد الموت)۔

۵۶:۔ خلاصه:۔ د دے آیت نه خلورم مقام شروع کیږی تر آیت ۷۶ پورے په یکښ ذکر کیږی مقابله د موسیٰ علیه السلام د ساحرانو سره او غلبه موندل په هغے باندے، بیائے ذکر کړیدے ایمان راوړل د ساحرانو په شجاعت د هغوی بیا تخویف دے په ۷۴ کښ بیا بشارت دے مومنانو ته په ۷۵، ۷۶ آیت کښ۔

په دے ۵۶ آیت کښ ذکر د ټولو معجزاتو د موسیٰ علیه السلام دے په اجمالی طریقو سره او هغه نهه دی لکه چه سورة بنی اسرائیل کښ په آیت ۱۰۱ کښ تیر شویدی۔ او تفصیل د هغے په سورة اعراف کښ ذکر کړے شویدے۔ فَكَذَّبَ، دا ذکر د اسبابو د عذاب دے د تکذیب نه مراد دا دے چه دا آیت ئے د طرف د الله تعالیٰ نه نه منل او اَبٰى داده چه د توحید او رسالت منلو نه ئے انکار اوکړو۔

۵۷:۔ دا اعتراض د فرعون بناء دے په وهم د هغه باندے یا دهوکه ورکوی قوم ته چه دا موسیٰ علیه السلام زموږ نه وطن قبضه کوی۔ او آیا تونو ته ئے سحر اوئیل۔

۵۸:۔ په دے آیت کښ وعده کول دی د فرعون د موسیٰ علیه السلام سره

وَاَنْ يُّحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى ﴿۵۹﴾ فَتَوَلّٰى

او چه راجمع کړے شي خلق په وخت د ساخت کښ - پس مخ واړوو

فِرْعَوْنُ فَجَمَعَ كَيْدَهٗ ثُمَّ اَتٰى ﴿۶۰﴾ قَالَ

فرعون نو راجمع يې کړل خپل چل والا بيا راغے - او وئيل

په مقابله کولو په جادو سره او اختيار يې ورکړو موسیٰ عليه السلام ته چه تاريخ او ځاے د مقابلے کولو ته پخپله مقرر کړه -

مَوْعِدًا وخت او مکان دواړو ته شامل دے نو مَكَانًا سُوًى د دينه بدل بعض دے او مراد د سُوًى نه دا دے چه د دواړو فريقو په مينځ کښ وي او راتلل ورته د دواړو آسان وي يا سوی په معنیٰ د جدا ميدان دے.

۵۹ :- په دے آيت کښ مقرر کړو موسیٰ عليه السلام وخت او تاريخ د مقابلے تاريخ ته يې يَوْمُ الزِّيْنَةِ ووئيل يعنی هغه ورځ چه په هغې کښ جشن کيدو د فرعون د پيدائش يا د هغه د تاج پوشئ او په دے لفظ سره د مکان تعين هم اوکړے شو ځکه چه زينت په دار الخلافه کښ کيږي - دا ورځ د دے وجے نه مقرره شوه چه د خلقو به هم چهټی وي نو ګڼړ خلق به ښار ته راجمع کيږي تماشه به اوکړي - او وخت د ساخت يې ځکه مقرر کړو چه خلق د لرے لرے ځايونو نه را اورسی او بيا هم د شپے د پاره واپس خپلو کورونو ته اورسی خلقو ته به آسانه وي او په فرعون باندے به د خلقو د خوراک تکليف نه راځي -

۶۰ :- يوه معنیٰ دا ده چه فرعون د حق نه مخ واړوو او په ضد باندے اودريدلو.

دويمه معنیٰ دا ده چه روان شو خپل ځاے ته د پاره د تيارے کولو د مقابلے او د كَيْدَهٗ نه مراد ساحران دي يعنی اهل کيد يا مراد دا چه پوخ يې کړو تد بير خپل -

اَتٰى راغے ميدان د مقابلے کولو ته -

لَهُمْ مُّوسٰى وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوا عَلَى اللّٰهِ

دوی ته موسیٰ علیه السلام تباه به شئ مه جوړوئ په الله تعالیٰ بانډې

كَذِبًا فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ ۚ وَقَدْ خَابَ

دروغ نو بیخ به اوباسي ستاسو په عذاب سره او یقیناً نا امیده شو

مَنِ افْتَرٰى ﴿٦١﴾ فَتَنَازَعُوْٓا اَمْرَهُمْ

هغه څوک چه دروغ یې جوړ کړل - نو اختلاف اوکړو دوی په باره د هغوی کښ

بَيْنَهُمْ وَاَسَرُّوا النَّجْوٰى ﴿٦٢﴾ قَالُوْٓا اِنْ

په مینځ خپل کښ او پټه جرګه یې اوکړله - اوئیل دوی یقیناً

هٰذٰنِ لَسٰحِرٰنِ يُرِيْدٰنِ اَنْ يُّخْرِجٰكُمْ

دا دواړه خامخا جادوګران دي، غواړي دوی چه اوباسي تاسو لره

مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا

د وطن ستاسو نه په سبب د جادو خپل او ورانه کړي زلزلے کړي

سلا :- موسیٰ علیه السلام ساحرانو ته نصیحت اوکړو چه شرک مه کوئ او یره یې ورکړه هغوی ته په عذاب سره - معلومه شوه چه عام خلق د مصر مشرکان وو دهریان نه وو - فَيُسْحِتَكُمْ، سُحت بیخ کندئ ته وئیلی شي او مراد د دینه عذاب دنیوی دے - وَقَدْ خَابَ کښ مراد عذاب اخروی دے یا بِعَذَابٍ نه مراد عام دے دنیوی او اخروی او قَدْ خَابَ نه مراد ناکامی ده په مقابله کښ -

سلا :- یعنی د موسیٰ علیه السلام پدے نصیحت کولو سره په ساحرانو کښ اختلاف پیدا شو چا وئیل چه دا خبرے د ده د نبوت دي او بعضو وئیل چه دا په مونږ باندے دباؤ کوی او پټه جرګه یې اوکړه که دے نبی وی نو غالب به شي نو مونږ به پدهٔ باندے ایمان راوړو -

۶۳۔ دا قول دَ فرعونیانو دے او هغوی درے خبرے اوکړے یو ئې حکم اوکړو چه دوی دواړه جادوګر دی۔ دویم حکومت والائې اوېرول چه دوی ستاسو نه بادشاهي اخلی۔ دریم عوام خلق ئې اوېرول چه دوی ستاسو حق دین خرابوی۔

اِنْ هٰذٰنِ، ابن کثیر وئیلی دی چه دا هم دَ بعض عربو لغت دی چه دَ اِنَّ په ځائے اِنْ او اسم دَ هغے مرفوع وائی او بعضو وئیلی دی چه دا مخفف دے دَ مُثَقَّل نه او ضمیر شان (اسم) ئې حذف دے او هٰذٰن مبتداء ده او بعضو وئیلی دی چه ان نافیه دے او لام په معنیٰ دَ اِلّا سره دے۔

۶۴۔ صَفًّا، دَ دے یوه معنیٰ دا ده چه صفونه جوړ کړئ دَ یاره دَ دے چه په موسیٰ علیه السلام باندے رُعب راشی۔ دویمه معنیٰ دا ده چه راشئ عیدګاه ته یعنی ځائے دَ جشن کولو ته۔

وَقَدْ اَفْلَحَ، دَ دنیا پرستو خیال دے چه دَ دنیا کامیابی فلاح ګنړی۔

اِسْتَعْلٰی ئې دَ دے وجے نه اوئیل چه علو خو دوی اصل دَ فرعون دَ یاره ګنړله او په مقابلے سره چه علو حاصلیږی نو هغه عارضی وی نو هغے ته ئې استعلاء اوئیل۔

وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَلْقٰى ﴿٦٥﴾ قَالَ

او یا په مونږ شو اول د غورځوونکو نه۔ اوویل هغه

بَلْ اَلْقُوْا ۚ فَاِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ

بلکه اوغورځوئ تاسو نو ناڅاپه وخت رسئ د هغوی او همسا ګانې د هغوی

يُخَيَّلُ اِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰى ﴿٦٦﴾

په خیال کښې راتلې موسٰی ته د وجې د جادو د هغوی نه چه یقیناً دا منډې وهي

فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى ﴿٦٧﴾

پس تیره کړه په زړه کښې ویره موسٰی علیه السلام۔

۶۵:۔ په دې آیت کښې اشاره ده چه ساحرانو د موسٰی علیه السلام ادب کړیدې او د دې په وجه هغوی له ایمان نصیب شو۔ او په حدیث د بخاری کښې اَسْلَمْتَ عَلٰى مَا سَلَفَ لَكَ مِنَ الْخَيْرِ کښې هم دیته اشاره ده او دا سې په سورة اعراف ۱۱۵ کښې تیر شوې دی هرکله چه مقصد اصلي اول القاء کوونکې دې د دې وجې نه دلته لفظ د اول یې ذکر کړو۔

۶۶:۔ په دې آیت کښې اشاره ده چه سحر د هغوی نظر بندي کول وو۔ او دا دلیل دې په دې خبره باندې چه د سحر اثر په پیغمبرانو باندې هم کیږي لیکن د هغوی عقل او دین ته نقصان نشي رسولې۔ صرف قوت خیال باندې اثر پریوځي او دا یو مرض دې چه د نبوت سره منافات نه لري د دې تفصیل په تفسیر د سورة فلق کښې راځي۔

۶۷:۔ یره کول د موسٰی علیه السلام د ماراتو نه طبعي یره وه او د دې د نبوت سره منافات نیشته یا موسٰی علیه السلام د دې نه اویریدلو چه عام خلقو باندې د سحر د وجې نه حق ګډ وډ نشي۔ د دې وجې نه چه معجزه خو د ده په اختیار کښې نه وه نو کیدې شي چه په دې وخت کښې د الله تعالٰی د طرف نه امر او نشي څکه یره وربانديې راغله۔

قُلْنَا لَا تَخَفْ إِنَّكَ أَنتَ الْأَعْلَىٰ ﴿٦٨﴾ وَأَلْقِ

اوتیل موږ مه ویریږه یقیناً ته بره یې - او و غورځوه

مَا فِي يَمِينِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوا ۖ إِنَّمَا

هغه چه ستا په ښي (لاس کښ دی تیر به کړی (په یو ځل) هغه څه ډی جوړ کړیدي. یقیناً هغه څه

صَنَعُوا كَيْدُ سَاحِرٍ ۖ وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ

دوی جوړ کړیدی چل ول د جادوګر دے، او نه کامیابیږي جادوګر

حَيْثُ أَتَىٰ ﴿٦٩﴾ فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجَّدًا

هر ځائے چه راشي - پس او غورځولے شو جادوګران سجده کوونکي

۶۸:- په دے آیت کښ تسلی ده موسی علیه السّلام ته په اوچت والی د مرتبے سره په دُنیا او آخرت کښ او دلیل دے په دے خبره چه د اعلیٰ اطلاق په مخلوق باندے هم کیدے شي - لیکن دا د مخلوق دپاره مطلق نه دے اعلیٰ د هر څیز نه مراد نه دے او د الله تعالیٰ دپاره دا صفت مطلق او کامل دے -

۶۹:- په دے آیت کښ تسلی دی موسی علیه السلام ته په ذکر د سبب د غلبے د هغه په دوه طریقو سره - اوله طریقه په تَلْقَفْ سره ده. او دویمه طریقه په وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ سره ده - او په لفظ د مَا فِي يَمِينِكَ کښ اشاره ده چه ستا معجزه بے تکلیفه کار دے او اشاره ده چه ستا همساء سره د ویروکوالی نه ښتے رسئ او همساګانے به تیرے کړي - د تَلْقَفْ دوه معنے دی اوله معنیٰ مشهوره ده چه هغے مار د موسیٰ علیه السلام هغه ټولے رسئ او همساګانے د یو نوړئ پشان تیرے کړے او دویمه معنیٰ سقرانی وئیلی دی چه دا کنایه ده د هغے د اثر ختمولو نه یعنی د همساګانو او رسو نه شکل د مارانو ختم شو لیکن اوله معنیٰ صحیح ده إِنَّمَا دا مرکب دے د إِنَّ او مَا موصوله نه حَيْثُ أَتَىٰ یعنی هر مقام کښ نشی کامیاب کیدے او خصوصاً د معجزے په مقابله کښ هیڅ کله نشی کامیاب کیدے -

قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ هٰرُوْنَ وَمُوْسٰى ﴿۷۰﴾

اُوئیل دوی ایمان راوړے دے موږ په رب د هارون او موسیٰ علیهما السلام

قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۭ

او وئیل فرعون آیا ایمان راوړلو تاسو په دهٔ باندې مخکښ د دینه چه اجازت کړے وے ما تاسو ته

اِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ ۚ

یقینًا دا ستاسو مشر دے هغه چه خودلے دے تاسو ته جادو

فَلَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ

نو ضرور پرے به کړم لاس ستاسو او خپے ستاسو

خِلَافٍ وَّلَاُصَلِّبَنَّكُمْ فِيْ جُذُوْعِ النَّخْلِ ۡ

ادل بدل او ضرور پهانسي به کړم تاسو په تنو د کجورو کښ

وَلَتَعْلَمُنَّ اَيُّنَآ اَشَدُّ عَذَابًا وَّاَبْقٰى ﴿۷۱﴾

او خامخا بوهه به شئ چه کوم یو زمونږ نه ډیر سخت عذاب والا دے او همیشه عذاب والا دے

سنک ۱:- لفظ د اُلْقِیَ دلالت کوی په دے باندے چه معجزه د موسیٰ علیه السلام ښکاره دلیل وو په توحید د الله تعالیٰ چه په وجه د هغے سره دوی مجبوره شو سجدے کولو ته او ایمان راوړلو ته۔ د دے وجے نه صیغه د مجهول ئے راوړله آمَنَّا اشاره ده چه دا سجده د دوی د ایمان د وجے نه ده سجده طبعي یا عادتي نه وه۔

فائده :- په نورو سورتونو کښ موسیٰ علیه السلام مخکښ او هارون علیه السلام روستو ذکر شوی دی او دلته ئے هارون علیه السلام مخکښ راوړو یو خو د آیاتونو د فواصلو د وجے نه۔ دویم په دے سورت کښ د هارون علیه السلام شان ذکر کول مقصد دے لکه چه د هغه د نبوت سوال او کړے شو بیا دوی ته ئے رَسُوْلَا په تثنیه سره اوئیل او روستو د هارون علیه السلام صفاتي ذکر کوی۔ لقد قال لهم هارون سره۔

سک ۱:- په دے آیت کښ ذکر کړے ده اول زورنه د فرعون ساحرانو ته

قَالُوْا لَنْ نُّؤْثِرَكَ عَلٰى مَا جَآءَنَا

دوی اوئیل هیچرې نه غوره کوو مونږ تا په مقابله د هغه چه راغلی د مونږ ته

مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالَّذِیْ فَطَرَنَا فَاقْضِ

د ښکاره معجزاتو نه او هغه چه مونږ یې پیدا کړی یو تو فیصله اوکړه

مَآ اَنْتَ قَاضٍ ؕ اِنَّمَا تَقْضِیْ هٰذِهِ الْحَيٰوةَ

هغه چه ته څه فیصله کوونکے یې، یقینًا ستا فیصله چلیږی صرف په دے ژوند

الدُّنْيَا ؕ ﴿۷۲﴾ اِنَّآ اٰمَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا

دنیوی کښ. یقینًا مونږ ایمان راوړی په رب خپل باندے د دے د پاره چه بخنه اوکړی مونږ ته

خَطٰيٰنَا وَمَآ اَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ السِّحْرِ ؕ

د گناهونو زمونږ او هغه چه زور کړی دے تا په مونږ باندے په هغے کښ د جادو کولو نه

په ایمان راوړلو بے اجازته او بیا یې ذکر کړے دے دروغژن دلیل د هغه چه موسیٰ علیه السلام ستا سو استاذ دے۔ حال دا دے چه د موسیٰ علیه السلام د مصر د راتلو نه مخکښ دا ساحران موجود وو۔ سحر و ته یې کول او موسیٰ علیه السلام خو د مصر نه غائب وو۔

اَيُّنَآ اَشَدُّ مراد د دینه څان د فرعون او رب د موسیٰ علیه السلام دے۔ او بیا یې ذکر کړے دے په دریو جملو کښ د باؤ کول په ساحرانو په عذاب ورکولو سره۔

مسئله:- په دے آیت کښ یې ذکر کړے دے شجاعت د ساحرانو پس د ایمان راوړلو نه۔ د وَالَّذِیْ فَطَرَنَا دوه معنے دی۔

اوله معنیٰ دا ده چه نه غوره کوو مونږ تا لره په مقابله د هغه ذات کښ چه مونږ یې پیدا کړی یو۔

دویمه معنیٰ دا ده چه قسم دے په هغه ذات چه مونږ یې پیدا کړی یو۔ او د آخری جملے مطلب دا دے چه ستا زور صرف په دنیا کښ چلیږے شی او په آخرت کښ نه چلیږی۔

وَاللّٰهُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ﴿۷۳﴾ اِنَّهٗ مَنْ يَّاْتِ

او الله تعالیٰ غوره دے او همیشه دے۔ یقینًا څوک چه راشی

رَبَّهٗ مُجْرِمًا فَاِنَّ لَهٗ جَهَنَّمَ ط لَا يَمُوْتُ

رب خپل ته مجرم نو یقینًا ده لره جهنم دے نه به مری

فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ﴿۷۴﴾ وَمَنْ يَّاْتِهٖ مُؤْمِنًا

په هغې کښې او نه به ژوندے وی (په فائده مند ژوند سره) او څوک چه راشی هغه ته مؤمن

قَدْ عَمِلَ الصّٰلِحٰتِ فَاُولٰٓئِكَ لَهُمُ

حال دا چه نیک عملونه ئے کړی وی نو دغه خلق دوی لره

سلا :- په دے آیت کښې دلیل دے چه په ایمان راوړلو سره ټول تیر شوی ګناهونه معاف کیږی۔

وَمَآ اَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ نه مراد دا دے چه هرکله ساحرانو د مقابلے کولو نه مخکښې چه د موسیٰ علیه السلام پیغمبری او پیژندله نو دوی انکار اوکړو د مقابلے نه نو فرعون په دوی باندے اکراه اوکړه په سحر کولو سره یا مراد د دینه دا دے چه فرعون پخپل ملک کښې تعلیم د سحر په زور جاری کړے وو۔

وَاللّٰهُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ، یوه معنیٰ دا وه چه د الله تعالیٰ اطاعت غوره دے او ثواب د هغے همیشه دے۔ دویمه معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ غوره دے کله چه د هغه اطاعت اوکړے شی او عذاب د هغه باقی او همیشه دے کله چه د هغے عصیان اوکړے شی۔

سلا :- په دے آیت کښې تخویف اخروی دے منکرینو ته او لفظ د مُجْرِمًا کښې اشاره ده چه په میدان د قیامت کښې به ګناهګار روباندے د هغوی ګناهونه په بنکاریږی۔ وَلَا يَحْيٰى ، مراد دا دے چه په ژوند سره به فائده نشی حاصلولے۔ او دا سے په سورة اعلیٰ ۱۳ کښې دی۔ او لَا يَمُوْتُ دلیل دے چه اهل جهنم به همیشه دی۔

الدَّرَجٰتُ الْعُلٰى ﴿٧٥﴾ جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِيْ

درجې اوچتې دي۔ جنتونه د همېشوالي بهېږي په

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۗ وَذٰلِكَ

د لاندې د هغې نه ویالې همېشه به وي دوی په هغې کښې او دا

جَزٰٓؤُا مَنْ تَزَكّٰى ﴿٧٦﴾ وَلَقَدْ اَوْحَيْنَآ

بدله ده د هغه چا چه ځان يې پاک ساتلے دے (د شرک نه)۔ او یقیناً وحي اوکړه مونږ

اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِيْ فَاضْرِبْ

موسیٰ ته چه د شپې بوځه بندګان زما پس اووهه (دریاب)

لَهُمْ طَرِيْقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا ۙ لَّا تَخٰفُ

(جوړه کړه) دوی لره لارې په دریاب کښې اوچې نه به یرېږې

دَرَكًا وَّلَا تَخْشٰى ﴿٧٧﴾ فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ

د لاندې کولو نه او نه به یرېږې د غرقېدلو نه۔ پس لاړو په دوی پسې فرعون

ف ۷۶۔ په دے آیتونو کښې بشارت اخروي دے۔ قَدْ عَمِلَ الصّٰلِحٰتِ کښې اشاره ده استقامت او شجاعت ته پشان د هغه د ساحرانو۔ الدَّرَجٰتُ الْعُلٰى په حديث سره ثابت دي چه په جنت کښې سل درجې دي او هر دوارو درجو په مینځ کښې د آسمان او زمکې پشان فاصله ده۔

تَزَكّٰى۔ ابن کثير وشيلي دي چه ځان پاک کړي د خيرې او پليتۍ د شرک نه او بندګي د الله تعالیٰ کوي او د رسولانو اتباع کوي۔ خو په دے جمله کښې اشاره ده چه جنت د پاکو ځائے دے او پاکوالے حاصلېږي په ايمان او نيک عمل سره۔

ف ۷۷۔ (خلاصه) د دے آيت نه پنځم مقام شروع کيږي تر آيت ۸۲ پورې په دے کښې ذکر د نجات موسیٰ او د بنی اسرائيلو دے او غرق کېدل د فرعون دي سره د قوم نه بيا ياداشت ورکول دي بنی اسرائيلو ته په نعمتونو سره او تخويف او بشارت دے۔

بِجُنُوۡدِهٖ فَغَشِيَهُمۡ مِّنَ الۡيَمِّ مَا

دَ لښکرو سره تو را ګیر کړو دوی لره دَ دریاب نه هغه څه

غَشِيَهُمۡ ﴿۷۸﴾ وَاَضَلَّ فِرۡعَوۡنُ قَوۡمَهٗ

چه دوی ئې پټ کړل۔ او بے لارے کړو فرعون قوم خپل لره

وَمَا هَدٰى ﴿۷۹﴾ يٰبَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ قَدۡ اَنۡجَيۡنٰكُمۡ

او هیڅ لارے ئې او نه خودله دوئیه۔ اے بنی اسرائیلو یقیناً بچ کړی مونږ تاسو

مِّنۡ عَدُوِّكُمۡ وَوٰعَدۡنٰكُمۡ جَانِبَ الطُّوۡرِ

دَ دشمن ستاسو نه او وعده کړے وه مونږ تاسو سره دَ طرف دَ طور

الۡاَيۡمَنَ وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكُمُ الۡمَنَّ وَالسَّلۡوٰى ﴿۸۰﴾

حق طرف او رالیږلی دی مونږ په تاسو باندے من او سلوٰی

فائدہ: پدے آیت کښ هجرت دَ بنی اسرائیلو ذکر کوی او حکم دَ هجرت کولو دَ شپے په وخت کښ دَ دے وجے نه دے چه مفسران خلق دَ شپے په غفلت کښ وی او دا هجرت دَ دوی په وحی دَ الله تعالیٰ سره وو۔ او په هغے کښ اختصار کړے شوے تفصیل دَ هغے په سورۃ شعراء کښ دی۔ طَرِيۡقًا اسم جنس دے په معنیٰ دَ جمع سره دے یعنی دولس لارے۔ دَ رَكًا لاندے کول دَ فرعونیانو تاسو لره او دَ اوبو نه وَلَا تَخۡشٰى، دَ غرقیدلو نه په دریاب کښ۔

۷۸:۔ پدے آیت کښ ذکر دَ غرقیدلو دے دَ فرعون، سرهٔ دَ لښکر نه په طریقه دَ اختصار سره۔ مَا غَشِيَهُمۡ دا ابهام دَ پاره دَ ډیر عظمت او هیبت دے لکه په سورۃ نجم ۵۴ کښ۔

۷۹:۔ پدیکښ رد دے په دعویٰ دَ فرعون باندے چه هغه ذکر شویده په سورۃ مومن آیت ۲۹ کښ۔

۸۰:۔ پدے آیت کښ ذکر دَ نعمتونو دے په بنی اسرائیلو باندے۔ په سر کښ دا لفظ (چه او ئیل مونږ دَ غرق دَ فرعون نه ورسته) پټ دے۔ اول نعمت نجات دَ دشمن نه۔ او دویم نعمت وعده دَ کتاب الله ورکول وو۔

كُلُوا مِن طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَلَا تَطْغَوْا

(او ویل مونږ) خورئ دَ حلال پاک هغې نه چه مونږ درکړی دی تاسو ته او سرکشي مه کوئ

فِيهِ فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِي وَمَن يَحْلِلْ

په دې کښې نو نازل به شي په تاسو باندې غضب زما او هغه څوک چه نازل شو

عَلَيْهِ غَضَبِي فَقَدْ هَوٰى ﴿۸۱﴾ وَإِنِّي لَغَفَّارٌ

په هغه باندې غضب زما نو یقینًا هلاک شو. او یقینًا زه خاماخا بخښونکے یم

لِّمَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ثُمَّ

هغه چا ته چه توبه ئے کړې وه او ایمان ئے راوړے وی او عمل ئے کړے وی په تابعداری دَ سنت بیا

اهْتَدٰى ﴿۸۲﴾ وَمَا أَعْجَلَكَ عَن قَوْمِكَ

کلک وی په دین باندې. (او ویل الله تعالیٰ) او څه څیز زر راوستلے ته دَ قوم خپل نه

او دریم نعمت دَ مَنّ سَلْوٰی وو. اول نعمت دَ امن دے دویم روحانی نعمت دریم جسمانی نعمت دے.

سلا:- دَ كُلُوا نه مخکښ (رَزَقْنٰا) پټ مراد دے او طغیان په خوراک کښې څلورو طریقو سره دے. اوله طریقه ناشکری کول. دویمه طریقه په بدال دَ اعلیٰ کښې ادنیٰ غوښتل. دریمه طریقه دَ هغې ذخیره کول په خلاف کولو دَ حکم دَ الله تعالیٰ سره. او څلورمه طریقه په هغې کښې دَ ځان نه حرام حلال جوړول او دا ټولې طریقې اسباب دَ غضب الٰهی دی او دَ آیت په آخر کښې تخویف اُخروی ذکر دے. فَقَدْ هَوٰى لفظ کښې اشاره ده چه والی دَ نعمتونو دَ دنیا سره دَ ناشکرئ نه سبب دَ تنزل دے اگرچه دنیا پرست خلق دیته ترقی وائی او دا تنزل په آخرت کښې پوره ښکاره کیږی.

سلا:- په دے آیت کښې بشارت دے په مغفرت دَ گناهونو سره. اِهْتَدٰى، هدایت په پنځو طریقو سره حاصلیږی. اوله طریقه استقامت په ایمان باندې تر مرګه پورې او دویمه طریقه دَ شکونو نه بچ کیدل. او دریمه طریقه په سنت دَ نبی مضبوط کیدل. ابن کثیر وئیلی دی چه مستقیم شی په سنت او جماعت باندې او دا درجه (استقامت) دَ ایمان او عمل صالح نه روستو ده ځکه ئے دا روستو ذکر کړیده.

يٰمُوْسٰى ﴿٨٣﴾ قَالَ هُمْ أُولَآءِ عَلٰٓى أَثَرِيْ

اے موسیٰ۔ اوویل هغه هغوی دغه دي زما په نقش قدم باندې روان دي

وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضٰى ﴿٨٤﴾ قَالَ فَإِنَّا

او زر راغلم زه تا ته اے ربه زما دے دپاره چه ته رضا شے۔ اوویل الله تعالیٰ پس تحقیق

قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْ بَعْدِكَ وَأَضَلَّهُمُ

ازمیښت اوکړو موږ په قوم ستا باندې روستو ستا نه اوګمراهي ته راوبلل دوی

سـ۸۳:۔ خلاصه:۔ دَ دے آیت نه شپږم مقام شروع دے تر سـ۹۸ آیت پورے په یکښ ذکر دَ غضب دَ موسیٰ علیه السلام دے خپل قوم ته، او بیا ورور ته، او بیا سامری ته او جواب کول دَ هر یو بخپلے طریقے سره او په آخر کښ سوځول دَ سخي دي چه ماده دَ شرک وه، او دعوت دے توحید ته.

فائدے په سـ۸۳ آیت کښ ذکر کوي اول میقات دَ موسیٰ علیه السلام دَ پاره دَ اخستلو دَ کتاب چه تفصیل دَ هغے په سورة اعراف سـ۱۴۲ کښ تیر شوے دے او په دے آیت کښ دَ موسیٰ علیه السلام نه دوه تپوسونه ذکر دي په یو لفظ سره چه ما اعجلك دے اول داچه قوم دے په کوم حالت کښ پریخودلے دے. او دویم داچه دَ میقات دَ مقرر وخت نه وړاندے ولے راغلے.

سـ۸۴:۔ په دے آیت کښ دَ دواړو سوالونو جوابونه دي۔ اول جواب داچه قوم زما تابعدار دے. یعنی په هغوی کښ شرک نیشته. لفظ دَ أثری په دے معنیٰ باندے دلالت کوي. دویم جواب دا دے چه دَ وخت نه مخکښ راتلل دَ دے دَ پاره چه ته زما نه ډیر رضا شے دا ما په خپل اجتهاد سره کړي دي. لکه چه یو مؤمن مسجد ته دَ وخت دَ داخلیدلو نه مخکښ دَ مونځ دَ پاره لاړشي بعضے مفسرینو دَ أثری معنے سره لیکلے دي چه قوم ما پسے طور ته راروان دے لیکن زه تر بته مخکښ راغلم او دا ئے دَ دویم میقات سره لګولے دے دا قول دَ سورة اعراف دَ ترتیب نه خلاف دے ځکه چه په اول میقات کښ دَ موسیٰ علیه السلام سره نور خلق نشته هغوی (او ریا کسان) خو په دویم میقات کښ دو او واقعه دَ ورکولو دَ کتاب او دَ عبادت دَ عجل دَ دویم میقات نه وړاندے شوے وه.

السَّامِرِيُّ ﴿٨٥﴾ فَرَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ

سامري - نو واپس لاړو موسٰی قوم خپل ته

غَضْبَانَ أَسِفًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ أَلَمْ يَعِدْكُمْ

غصه غمژن او ئيل هغه اے قومه زما آیا وعده نه ده کړے تاسو سره

رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا ۚ أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ

رب ستاسو وعده ښائسته آیا نو اوږده شوه په تاسو باندے وعده

أَمْ أَرَدتُّمْ أَن يَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ

یا اراده اوکړه تاسو چه نازل شي په تاسو باندے غضب

مِّن رَّبِّكُمْ فَأَخْلَفْتُم مَّوْعِدِي ﴿٨٦﴾

د طرف د رب ستاسو نه نو خلاف اوکړو تاسو د وعدے زما نه -

۸۵ :- په دے آیت کښ خبر ورکول دی موسٰی علیه السلام ته چه ستا قوم په شرک کښ اخته شوے دے - او سبب د هغے سامري ګرځیدلے دے. او فَتَنَّا کښ اشاره ده چه شیطان انسي یا جني په یو قوم باندے مسلط کول امتحان د الله تعالٰی دے او أَضَلَّهُمُ په معنٰی د دعوت کولو د ګمراهۍ دے ځکه اضلال په اصل کښ فعل د الله تعالٰی دے - په آیت کښ دلیل دے په دے خبره چه موسٰی علیه السلام په غیب باندے خبر نه وو - او په دے کښ اختصار دے چه څلویښت ورځے په میقات کښ تیرے شوے او کتاب ئے ورله په تختو کښ ورکړه بیا ئے ورله خبر ورکړو - فَإِنَّا قَدْ فَتَنَّا آه -

فائده :- سامري د سامره قبیلے نه وو - اسرائیلي وو یا قبطي وو - دا دوه قولونه دی اول قول ډیر مشهور دے - سامري په دین د موسٰی علیه السلام کښ داخل شوے وو په طریقه د منافقت سره او بیا مرتد شو نو بني اسرائیل ئے شرک ته راوبلل.

۸۶ :- په دے آیت کښ اشاره ده چه د دین کار په لیدلو سره غصه کیدل د انبیاء علیه السلام طریقه ده - غَضْبَانَ ظاهري غصے ته وئیلے شی.

قَالُوْا مَا أَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا

دوی اوئیل خلاف نه دے کړے مونږ ستا د وعدے نه په اختیار خپل سره

وَلٰكِنَّا حُمِّلْنَا أَوْزَارًا مِّنْ زِيْنَةِ

او لیکن بوج کړے شو په مونږ باندے ګناهونه (دخیانت) د وجے د کالو

الْقَوْمِ فَقَذَفْنٰهَا فَكَذٰلِكَ أَلْقَى السَّامِرِيُّ ﴿٨٧﴾

د قوم د فرعون نه نو اوغورځول مونږ هغه لره نو دارنګ اوغورځول سامری هم.

او آسفًا د زړه خفګان نه وئیلے شی او هغه زیات غضب دے- وَعْدًا حَسَنًا، د دینه مراد مسئله د توحید ده- هغه چه الله تعالیٰ ثابت کړی په دلیلونو او معجزاتو سره او دینه وعده د الله تعالیٰ وئیلے شی- حاصل دا دے چه تاسو خلاف اوکړو د وعدے د توحید نه نو د دے وجے نه چه وخت په دے باندے ډیر تیر شوے دے زړګے شوه نوستا نه هیره شوه- اویا قصدًا مو خلاف اوکړو- نو د الله تعالیٰ غضب نازلیدل غواړئے- دویم دا چه وَعْدًا حَسَنًا نه مراد وعده د تورات د ورکولو ده- حاصل دا چه تاسو خلاف اوکړو د وعدے نه یعنی د وعدے انتظار مو او نکړو) د دے وجے نه چه موده ډیره شوه نو ستاسو نه وعده هیره شوه یا مو اراده اوکړه چه د الله تعالیٰ غضب در باندے نازل شی نو ځکه تاسو خلاف اوکړلو- او ترتیب د جملو په اصل کښ دا سے دے- أَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا فَأَخْلَفْتُمْ مَوْعِدِي أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ أَمْ أَرَدْتُمْ أَنْ يَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ- یعنی د وعدے د مخالفت د پاره اوله وجه ده یا دویمه وجه ده-

سک ۸۷- یعنی دوی د خلاف د وعدے د پاره دریمه وجه بیان کړله سوا د هغه دوه وجو نه چه په وړاندے آیت کښ تیر شوے دے- د دریمے وجے حاصل دا دے چه مونږ لره سامری په مسئلے سره پوره کړلو او مجبوره ئے کړو ځکه چه هغه راته اوئیل چه تاسو سره د قوم فرعون زیورات دی- او دا مال غنیمت دے- او مال د غنیمت نه فائده اخستل حلال نه دی ځکه چه دا حکم وړُ په تیر شوی امتونو کښ) نو دا په اُور سوځول لازم دی

فَاَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ

پس جوړ ئې کړو دوی لره سخے جوسه چه هغے لره آواز وۀ

فَقَالُوْا هٰذَآ اِلٰهُكُمْ وَاِلٰهُ مُوْسٰى فَنَسِيَ ﴿۸۸﴾

نو دوی اُوئیل خلقو ته دا ستاسو دَ ټولو حق اِلٰه دے او اِلٰه دَ موسیٰ هم دے پس هیر کړے دے

تو مونږ دَ دے ګناه نه ځان دَ ټیج کولو دَ پاره زیورات اُور ته اوغورځول او سامری هم دَ دهوکے راکولو دَ پارهِ خپل زیورات اُور ته اوغورځول. او دا بهانه دَ دے خلقو په حقیقت کښې غلطه وه، دَ دے وجے نه که دَ دے زیوراتو سوځول لازم وے تو موسیٰ علیه السلام ولے دا حکم نه کوؤ چه نبی دَ یو څیز حرمت نه وی بیان کړے نو امتی له هیڅ اختیار نیشته چه هغه حرام کړی. نو دوی تقلید اوکړو دَ سامری په خلاف دَ موسیٰ علیه السلام کښې.

فائده:- ابن کثیر لیکلی دی دے خلقو ځان دَ ویرے ګناه نه رد دَ دوی په ګمان کښې) بچ ساتلو او لویه ګناه چه دَ عجل عبادت کول وؤ دَ هغے نه ئې ځان. بچ نه ساتلو دا دَ بے عقلو کار دے.

زِيْنَةِ په معنیٰ دَ کالو دے. او اَوْزَارًا نه مراد ګناهونه دی. حُمِّلْنَا نه مراد دَ ګناه دَ خیانت کولو دے ځکه چه تحمیل کله په معنیٰ دَ خیانت راځی.

۸۸:- جَسَدًا دلالت کوی چه دغه سخے دَ خوښے او هډوکو او دینو ته نه وؤ بدل شوے بلکه دَ سرو زرو وؤ او کیدیشی چه دَ آواز کولو دَ پاره ئې پکښې څه آله لګولے وه. او دا روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه مفسرینو نقل کړیدے. فَقَالُوْا اشاره ده چه دَ سامری نور ملګری هم وؤ. او هغه ټولو دَ سخی دَ عبادت کولو ته دعوت شروع کړے وو. او دوی ورته الله دَ دے وجے نه وئیل چه دَ دوی عقیده وه چه الله تعالیٰ په دے جسد کښې دننه حلول کړے دے او الله تعالیٰ دَ دے سخی په صورت کښې ښکاره شوے دے. او دَ سخی نه چاپیره طوافونه اوکړل ئې کوله او دا ئې عبادت ګڼلو لکه بعض متصوفه اوس هم ګډیدل او ګڼا کولو ته عبادت وائی او وائی چه دا چشتیه طریقه ده. او دا دَ ټولو حلولیه، اتحادیو عقیده ده.

فَنَسِيَ ضمیر دَ نَسِيَ راجع دے موسیٰ علیه السلام ته نو دا داخل دے

أَفَلَا يَرَوْنَ أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا

آیا دوی نه پوهیږی چه دا سخے دوی ته نشی گرځولے هیڅ جواب

وَلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ﴿۸۹﴾

او نه اختیار لری دوی لره دَ ضرر او نه دَ فائدے ورکولو۔

وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هَارُونُ مِنْ قَبْلُ

او یقینًا ویلی وو دوی ته هارون علیه السلام دَ دینه مخکښ

يَا قَوْمِ إِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهِ ۖ وَإِنَّ رَبَّكُمُ

اے قومه زما یقینًا فتنه (شرک) کښ او غورځولے شوی په سبب دَ دے سخی سره او یقینًا ستاسو رب

الرَّحْمَٰنُ فَاتَّبِعُونِي وَأَطِيعُوا أَمْرِي ﴿۹۰﴾

رحمٰن دے پس زما دَ عمل تابعداری کوئ او اطاعت کوئ دَ خبرے زما۔

لاندے دَ قالوا نه او یا راجع دے سامری ته نو دا قول دَ الله تعالیٰ دے چه سامری خپل اِله هیر کړے دے۔

۸۹:۔ په دے آیت کښ رد دے په دغه مشرکینو باندے په نفی کولو دَ صفتونو دَ الوهیت سره دَ سخی نه۔ یو صفت کلام کول او جواب ورکول دی نو معلومه شوه چه کلام دَ الله تعالیٰ صفت دے۔ دویم صفت اختیار دَ نفع او ضرر دے۔ ځکه چه اِلٰه حق اختیارمند دَ نفعے او ضرر وی۔

فائده:۔ دا دواړه صفتونه په هغه مرده کانو او اولیاء کرامو کښ هم نه دی موجود چه دے خلقو دَ هغوی نه معبودان جوړ کړے دی۔ نه خبرے کولے شی۔ او نه جواب ورکولے شی۔ او نه اختیار دَ نفع او ضرر دَ چا لرلے شی۔

۹۰:۔ په دے آیت کښ ذکر دَ هارون علیه السلام دے قوم خپل ته په څلورو جملو کښ۔ په اوله جمله کښ رد دے په شرک باندے۔ او اشاره ده چه معامله دَ سامری ټوله فتنه ده۔ او په دویمه جمله کښ بیان دَ توحید دے۔ او په دریمه جمله کښ امر دے په اتباع سره۔ او په څلورمه جمله کښ امر دے په اطاعت سره او دا خلاصه ده دَ دعوت

قَالُوْا لَنْ نَّبْرَحَ عَلَيْهِ عٰكِفِيْنَ حَتّٰى

دوی اوئیل همیشه به یو مونږ په دے سخی منجوران (عبادت کوونکی) تر دے

يَرْجِعَ إِلَيْنَا مُوْسٰى ﴿٩١﴾ قَالَ يٰهٰرُوْنُ مَا

چه واپس راشی مونږ ته موسیٰ۔ اوئیل موسیٰ علیه السلام اے هارون څه شئ

مَنَعَكَ إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوْٓا ﴿٩٢﴾ أَلَّا تَتَّبِعَنِ

منع کړه تا لره هر کله چه تا دوی اولیدل چه گمراه شول۔ چه تا زما تابعداری اونکړه

أَفَعَصَيْتَ أَمْرِيْ ﴿٩٣﴾ قَالَ يَبْنَؤُمَّ لَا تَأْخُذْ

آیا تا فرمانی اوکړه تا د حکم زما نه۔ اوئیل هغه اے د مور ځویه مه نیسه

د حق۔ او دائے د دے وجے نه ذکر کړو چه څوک دا استدلال یا اعتراض اونکړی چه هارون علیه السلام مداهنت کړے نو معلوم شو چه مداهنت جائز دے

فائده :- فرق په مینځ د اتباع او د اطاعت کښ دا دے، چه اتباع په عمل او په طریقه کښ ده او اطاعت په وینا او په حکم کښ دے یعنی هارون علیه السلام قوم ته اوئیل چه زما پشانتے عمل کوئ په طریقه د توحید سره او زما د حکم اطاعت اوکړئ په شرک پریخودلو سره۔

ملاف :- دا جواب دے د قوم د طرف نه هارون علیه السلام ته ځکه چه دوی هغه کمزورے گنړه، او د موسیٰ علیه السلام واپس کیدل ئے شرط کړه ځکه د دوی خیال وو چه موسیٰ علیه السلام به عبادت د سخی کښ زمونږ موافقت اوکړی۔

فائده :- د عکوف معنیٰ دا ده چه یو شئ لازم اونیسی، او هغے ته توجه اوکړی په طریقه د تعظیم او د عبادت سره دوی هم د هغے سخی عبادت او تعظیم شروع کړو او د هغے نه به ئے طواف کوو او گړا به ئے کوله۔

ملاف ملف :- هر کله چه تیر شوو آیتونو نه معلومه شوه چه هارون علیه السلام مینځ مداهنت نه دے کړے لیکن موسیٰ علیه السلام خبر نه وو نو د غصے د وجے نه د هغوی د ږیرے نه ئے د نیولو اراده اوکړله او سر ئے ورله اونیولو او ځان ته ئے راښکه او ورته ئے اوئیل هغه خبره چه پناسے دوا پر

بِلِحْيَتِيْ وَلَا بِرَاْسِيْ ۚ اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ تَقُوْلَ

ګیره زما او نه سر زما یقینًا زه ویریدلے یم چه ته به اُووایے

فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَلَمْ تَرْقُبْ

ډلے ډلے پیدا کړے په مینځ د بنی اسرائیلو کښ او لحاظ دِ نۀ کوؤ

قَوْلِيْ ﴿۹۴﴾ قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يٰسَامِرِيُّ ﴿۹۵﴾

زما د خبرے۔ اووئیل موسٰی څه سبب وؤ (ستا د دے کار) اے سامری۔

آیتونو کښ ده۔ اَلَّا تَتَّبِعَنِ، دوه معنے دی۔ اوله معنٰی دا ده چه تا د دوی سره جنګ ولے نه کوو یعنی په لاس سره منع کول دِ ولے نه کول پشانته زما۔ دویمه معنٰی دا ده چه ته ولے زما د خبرو د پاره نۀ راتلے میقات ته۔ او د اَمْرِيْ نه مراد هغه دے چه سورةِ اعراف کښ ذکر کړے شوے دے۔ په آیت ۱۴۲ کښ۔ او دا زورته د موسٰی علیه السلام بناء وه د هغه په اجتهاد باندے ګنی تو هارون علیه السلام خپله ذمه واری ادا کړے وه۔

۹۴:۔ په دے آیت کښ بیان د عذر دے د هارون علیه السلام په جواب د دے قول کښ چه اَلَّا تَتَّبِعَنِ، یعنی که ما د دوی سره قتال کولے یا تا پسے در غلے وے او دوی مے پریخودلے وے نو د دوی په مینځ کښ افتراق او ډلے پیدا کیدے۔

وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِيْ ، د دے جملے دوه احتماله دی۔ اول احتمال دا دے، چه دا قول د هارون علیه السلام دے یعنی که بنی اسرائیل ډلے ډلے شوے وے۔ او ما تا ته عذر پیش کولے، نو تا به زما عذر نه قبلولو۔ دویم احتمال دا دے چه دا داخل دے په قول د موسٰی علیه السلام کښ او د قَوْلِيْ نه مراد هغه دے چه سورةِ اعراف ۱۴۲ کښ تیر شوے دے۔

فائده:۔ د دے آیت نه معلومه شوه چه ږیره او سر دومره ساتل چه نیولے کیدے شی، سنت د پیغمبرانو دے۔ نو څوک چه وائی چه د ګیرے مقدار مقرر نشته که هر څومره تر ینه پریکولے شی نو جائز ده او دلیل نیسی په حدیث د سنن ترمذی سره چه نبی صلی الله علیه وسلم به د خپلے ګیرے د اطرافو نه اخستل کول نو هغه حدیث ضعیف دے او د دے آیت نه خلاف دی۔

۹۵:۔ مراد د دے تپوس نه دا دے چه څۀ باعث وو په تا باندے او څه

قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوا بِهٖ

اووئيل سامري زه پوهه شوم په هغه څه چه نه دي دوي پوهه په هغې باندې

فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ اَثَرِ الرَّسُوْلِ

پس راواخستله لږه دَ نقش قدم دَ رسول نه

فَنَبَذْتُهَا وَكَذٰلِكَ سَوَّلَتْ لِيْ نَفْسِيْ ﴿۹۶﴾

بيا م اوغورځوله او دا رنګ خائسته کړې دے ما ته نفس زما.

دليل ووستا چه دَ سخي نه دے معبود جوړ کړے.

س۹۶: حاصل دَ جواب دا دے چه ما سره هيڅ دليل نه وو صرف زما دَ نفس خبره وه او دا رنګ زيا تولے دَ علم زما وو دَ بني اسرائيلو نه پټ دے آيت کښ غوره تفسير دا دے چه مراد دَ بصيرت نه علم دے په حقانيت دَ موسیٰ عليه السلام او مراد دَ اَثَرِ الرَّسُوْلِ نه تابعداري دَ موسیٰ عليه السلام ده. او مراد دَ قَبْضَةً نه لږه تابعداري ده او مراد دَ فَنَبَذْتُهَا نه پريښودل دَ تابعدارئ دَ موسیٰ عليه السلام دي په طريقه دَ مرتد کيدلو سره او سبب دَ هغې دَ نفس وسوسے دي. اويل قول مشهور دے په نيز دَ مفسرينو چه مراد دَ مَا لَمْ يَبْصُرُوْنه خاوره ده دَ لاندے دَ قدم دَ آس دَ جبرائيل عليه السلام او دَ هغې نه سامري يو موټے راخستلے وه او سخي کښ اوغورځوله نو دَ هغه نه غوښه جوړه شوه او اوازونه يې شروع کړل ليکن دا قول بناء دے په اسرائيلي روايتونو باندے چه هغه ليدل دَ سامري دي جبرائيل عليه السلام سره او دا رنګ په عبادت کښ ډير تقدير راځي اثر حافر فرس الرسول او دا دَ فصيح کلام سره نه خائيږي او دا رنګ دَ سخي نه غوښه جوړيدل هم صحيح ثابت نه دي نو معلومه شوه چه اول قول غوره دے هغه خطيب شربيني او امام رازي او آلوسي پخپل تفسيرونو کښ ليکلے دے.

قَالَ فَاذْهَبْ فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيٰوةِ أَنْ

اوئیل موسیٰ پس ځه (د دے قوم نه) پس یقیناً تا لره په ژوند د دنیا کښ

تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ وَإِنَّ لَكَ مَوْعِدًا

وینا ستا ده چه ما له لاس مه راوړئ او یقیناً ستا د (هلاکت) د پاره مقرر وخت دے

لَّنْ تُخْلَفَهٗ وَانْظُرْ إِلٰى إِلٰهِكَ الَّذِيْ

چه خلاف نشی کیدے ستا د هغے نه، او اوګوره خپل معبود (جوړ کړے شوے) ته هغه چه ته

ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا لَنُحَرِّقَنَّهٗ ثُمَّ

هر وخت ئے په هغه باندے منجور. خامخا او به سیزو مونږ دے بیا

لَنَنْسِفَنَّهٗ فِي الْيَمِّ نَسْفًا ﴿٩٧﴾ إِنَّمَا إِلٰهُكُمُ

به ئے او نو لو په دریاب کښ په نوستلو سره. یقیناً ستاسو حقدار د بندګۍ

اللّٰهُ الَّذِيْ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ وَسِعَ

الله تعالیٰ هغه ذات دے چه نشته واکدار رسوا د هغه نه، راګیر کړے دے

سک۹:- یعنی موسیٰ علیه السلام دۀ ته اوئیل چه زمونږ نه جدا شه او د هیچا سره به لاس هم نه لګوے، او نۀ به تا سره څوک لاس لګوی یعنی بنی اسرائیل ئے منع کړل چه د دۀ سره به هیڅ تعلق نۀ ساتئ او نه به د دۀ سره خبرے کوئ۔

فائده عا:- دا دلیل دے پدے خبره چه مشرکان او بدعتیان او ګنهګارو خلقو سره قطع تعلق پکار دے د پاره د دے چه ګناه د هغوی اثر او نکړی په نورو خلقو کښ او دا رنګ په تفسیر القرطبی کښ ذکر کړیدی۔

فائده عا۲:- موسیٰ علیه السلام هغه سخے او سیزو او ایرے د هغه ئے دریاب ته او غورځولے دا دلیل دے پدے خبره چه کوم څیز باندے شرک کړے شوے وی نو د هغے نه فائده اخستل نۀ وی پکار۔

كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴿۹۸﴾ كَذٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ

هر څیز لره په علم خپل کښ۔ دغسې بیا لوو مونږ په تا باندې بعضې

مِنْ أَنْبَآءِ مَا قَدْ سَبَقَ ۚ وَقَدْ اٰتَيْنٰكَ

دَ خبرو دَ هغې نه چه مخکښ تیر شوي دي۔ او یقینًا درکړې دې مونږ تا ته

مِنْ لَّدُنَّا ذِكْرًا ﴿۹۹﴾ مَنْ أَعْرَضَ عَنْهُ

دَ خپل طرف نه یادداشت (قرآن)۔ چا چه مخ اوګرځوو دَ دینه

۹۸:۔ په دے آیت کښ بیان دَ توحید دے په رد دَ هغې کسانو کښ چه عبادت دَ سخي ئې کړے وو۔ او رد دَ شرک فی العلم ئې دلیل ذکر کړے دے دَ پاره دَ رد دَ شرک فی الالوهیت۔

۹۹:۔ خلاصه:۔ دَ دے آیت نه دَ سورت تر آخره پورے دویمه حصّه ده۔ پدیکښ تخویف اخروي ئې تفصیلًا شپاړس وجوهو سره او بشارت دے او ترغیب دے قرآن ته او شجاعت در رسول دی، په بیان کولو دَ توحید باندے بیا واقعه دَ آدم علیه السلام ده دَ ابلیس سره دَ پاره دَ بچ کولو دَ نسیان نه بیا تخویف اخروي او تخویف دنیوي دے بیا آداب دي دَ پاره دَ دعوت سره دَ مسئلے دَ توحید نه بیا زجر دے او بیان دَ حکمت دے دَ رالیږلو دَ رسول او په آخري آیت کښ تخویف دے۔

تفسیر:۔ پدے آیت کښ تشجیع ورکول دي په واقعاتو دَ پیغمبرانو سره اجمالًا چه په هغه ټولو واقعاتو کښ تذکیر او تشجیع مقصد دے هغې نه ذکر وئیلے شي دا رنګ ذکر په معنیٰ دَ وحی او دَ قرآن سره دے۔

أَنْبَآءِ مراد تر دَ غټې غټې خبرے دي ټول جزئیات دَ قصوئې نه دي ذکر کړي۔

فَإِنَّهُ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا ﴿١٠٠﴾ خٰلِدِيْنَ

پس یقیناً پورته کوی به په ورځ د قیامت پیټے د ګناه - همیشه به وی

فِيْهِ ۖ وَسَاءَ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حِمْلًا ﴿١٠١﴾ يَوْمَ

په هغې کښ، او بد دے دا دوی د پاره په ورځ د قیامت لوے بار - په کومه ورځ چه

يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ

پوکے او کړے شی په شپیلئ کښ او راجمع به کړو مونږ مجرمان په دغه ورځ

زُرْقًا ﴿١٠٢﴾ يَّتَخَافَتُوْنَ بَيْنَهُمْ إِنْ لَّبِثْتُمْ

شین سترګی - خُوس خُوس به کوی په کورنی کښ چه نه یئ حصار شوی تاسو

إِلَّا عَشْرًا ﴿١٠٣﴾ نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُوْلُوْنَ

مګر لس ورځے - مونږ ښه خبر یو په هغه چه دوی وائی

إِذْ يَقُوْلُ أَمْثَلُهُمْ طَرِيْقَةً إِنْ لَّبِثْتُمْ

کله چه اوبه وائی هوښیار د دوی په رائے کښ نه وئ حصار شوی تاسو

إِلَّا يَوْمًا ﴿١٠٤﴾ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ

مګر یوه ورځ - او (که) تپوس او کړی دوی ستا نه په باره د غرونو کښ نو ورته او وایه

سند نه تر ښکتا پورے په دے آیتونو کښ تخویف اُخروی دے د پاره د اعراض کونکو د ذکر د قرآن نه وِزْرًا غټ بوج ته وائی او حِمْلًا مطلق بار ته وائی زُرْقًا خړوالی د سترګو ته وائی سره د تورِوالی د مخ نه او دویمه معنیٰ زُرْقًا ړانده ته وائی۔ او دریمه معنیٰ زُرْقًا تږو ته وائی۔

اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا عَشْرًا مطلب دا دے چه عام مشرکان د ډیر هیبت د وجے نه ژوند د دنیا به لس ورځے اوګڼړی او مشران د دوی د ډیر هیبت د وجے نه یوه ورځ به ئے اوګڼړی۔ عَشْرًا ئے ځکه او وئیلو چه دا د جمع قلت آخری حد دے۔

اَمْثَلُهُمْ، غوره او هوښیار د دوی، د هوښیار په نیز صرف یو ورځ د

بِنَسِفُهَا رَبِّيْ نَسْفًا ﴿۱۰۵﴾ فَيَذَرُهَا قَاعًا

وا به لوځوي دا رب زما په الوځولو سره - نو پرېږدي به دا زمکه میدان

صَفْصَفًا ﴿۱۰۶﴾ لَّا تَرٰى فِيْهَا عِوَجًا وَّلَآ

خوړیه - نه به وینې ته په هغې کښې خکته والے او نه

اَمْتًا ﴿۱۰۷﴾ يَوْمَئِذٍ يَّتَّبِعُوْنَ الدَّاعِيَ

دېرئ - په دغه ورځ به روان وي داخلق په بلنه کوونکي پسې

دے وجې نه ده چه څومره هوښيار وي نو د هيبت احساس به ورباندے ډیر وي او چه غافل او کم عقل وي نو مصيبت به په هغه باندے لږ وي او مطلب د دے ټولو دا دے چه زموږ زمانه او عمر لږ دے نو موږ په کفر او شرک کولو کښې معذور یو او دا عذر د دے د واقع نه خلاف دے.

۱۰۵ تا ۱۰۷ :- دا هم تعلق لري د تخويف اُخروي سره او په دے كښې بيانوي حال د ميدان حشر په ختميدلو د غرونو سره د ځمکې.

فائده :- قرآن كريم كښې كوم ځايونو كښې چه يَسْئَلُوْنَكَ ذكر دے د هغې په جواب كښې ئې (قل) نه دے راوړے او په دے آيت كښې ئې راوړے دے - وجه دا ده چه دے آيت كښې (اِنْ) شرطيه مراد دے يعني كه دا خلق تپوس او كړي د غرونو په باره كښې نو ته ورته دا سے جواب وركړه - نو معلومه شوه چه دا تپوس منكرينو تر دغه وخته پورے نه وو كړے - او كوم ځايونو كښې چه (قل) نشته نو هغه تپوسونه واقع شوي وو - نو مقصد په دې كښې جواب د وهم د منكرينو دے كه هغوي اُوائي چه قيامت به څه رنګ قائم كيږي ځكه غرونه ډير غټ او كلك دي نو دا به څه رنګ فنا كيږي نو جواب ئې اوشو په تفصيل سره.

فَيَذَرُهَا دا ظاهرًا دلالت كوي چه زمكه به بټوله نه فنا كيږي بلكه د دے هيئت او شكل به بدل شي - دا قول ډيرو علماؤ خوره كړے دے يا هَا ضمير راجع دے هغه ځائے زمکے ته چه روستو د فنا د دے زمکے نه به پيدا كيږي او دغه د نورو علماؤ قول دے.

لَا عِوَجَ لَهٗ ۚ وَخَشَعَتِ الْاَصْوَاتُ لِلرَّحْمٰنِ

نه به وي کږلیچ هغه لره او چپ به شي آوازونه د ویرې د رحمٰن نه

فَلَا تَسْمَعُ اِلَّا هَمْسًا ﴿۱۰۸﴾ يَوْمَئِذٍ لَّا تَنْفَعُ

نو نه به آورې ته مګر کشار - په دغه ورځ به نفع نه ورکوي

الشَّفَاعَةُ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ

سفارش مګر د هغه چا چه اجازت ورکړي هغه ته رحمان

وَرَضِيَ لَهٗ قَوْلًا ﴿۱۰۹﴾ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

او رضا وي د هغه په وینا - خبر دے په هغه حالا توجه د دوینه وړاندې دي

س۱۰۸ :- مراد د داعي نه پیشوا د قوم دے یعني پیشوا به نیغ روان وي او تابعدار به ورپسے وي - یا مراد د داعي نه اسرافیل علیه السلام دے - یا مراد د داعي نه امر کوونکے دے په ورځ د قیامت کښ یعنې په هغه ورځ به دوی د داعي امر ادمنی لیکن نن یے نه مني دا قول ابن کثیر ذکر کړے دے -
او لفظ د لَهٗ په معنیٰ د عَنْهُ دے راجع دے داعي ته یا لَهٗ ضمیر په اعتبار د کل واحد سره راجع دے فاعل د یتبعون ته -
هَمْسًا آواز د قدم اخستلو ته وائي یا ساه اخستلو ته وائي - دواړه قولونه صحیح دي -
س۱۰۹ :- په دے آیت کښ رد د شفاعت قهریه شرکیه دے او قَوْلًا نه مراد کلمه د توحید ده - د آیت یو مطلب دا دے چه مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ نه مراد شفاعت کوونکے دے - یعنی شَفَاعَةُ اَحَدٍ اِلَّا مَنْ - یا مراد د دینه هغه څوک دے چه هغه د پاره شفاعت کیږي او د لفظ د مَنْ نه مخکښ حرف د (ل) پټ دے - او الشفاعة په معنیٰ د شفاعت احد دے الاشفاعة من ---- آه - او په عبارت کښ تقدیر دے الشفاعة لاحد الا لمن اذن آه - وَرَضِيَ لَهٗ قَوْلًا ، مراد دا دے چه هغه په دنیا کښ توحید طرف ته دعوت کړے دے یا د توحید کلمه یے

وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا ﴿۱۱۰﴾

او هغه چه دَ دوی نه روستو دی او نه شي راګیرولے دوی هغې (حالاتو لره) پخپل علم کښې.

وَعَنَتِ الْوُجُوهُ لِلْحَيِّ الْقَيُّومِ ۖ وَقَدْ خَابَ

او عاجز به شي ټول مخونه ژوندی ذات دَ ټول عالم ساتونکي ته او یقیناً نا امیدہ دی دَ

مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا ﴿۱۱۱﴾ وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ

هر څوک (نه) هغه څوک چه اوچت یې کړو بارونه (پیټي) دَ شرک. او هر چا چه عمل اوکړو دَ

الصَّالِحَاتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا يَخَافُ ظُلْمًا

نیک عملونو نه او حال دا چه دے مؤمن وي نو نه ویریږي دَ زیاتي نه

وَلَا هَضْمًا ﴿۱۱۲﴾ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَاهُ قُرْآنًا

او نه دَ کمي نه. او دغسے مونږ نازل کړیدے دا قرآن

پس اسے طریقے سره وئیلے دہ چه الله تعالیٰ په هغے باندے راضي شو یوځ.

۱۱۰:- دا دلیل دے دَ تیرشوي آیت یعني دا شفعاء بے اجازتہ شفاعت نشي کولے ځکه چه الله تعالیٰ دَ دوي په حال او په عجز عالم دے. پس په کښې اثبات دَ صفت دَ علم دے الله تعالیٰ لره او رد دَ شرک في العلم دے په ضمیر راجع دے مَا حرف ته.

۱۱۱:- دا هم دلیل دے دَ مخکښې چه دوي بلا اجازته شفاعت نشي کولے ځکه چه په ورځ دَ قیامت به ټول الله تعالیٰ ته عاجز دي او دا هم په تخویف کښې داخل دے. وُجُوهُ نه مراد مخونه او تندي دي یا مراد دَ دے نه لوے لوے خلق دي او دَ ظُلْمًا نه مراد پس دے آیت کښې شرک دے.

۱۱۲:- دے آیت کښې بشارت دے. او فرق په مابین دَ ظُلْمًا او دَ هَضْمًا کښې دا دے چه ظلم ټول حق منع کولو ته وائي او هضم منع کول دَ بعضے حق ته. یا ظلم نه مراد زیاتے کول دي په ګناهونو کښې او مراد دَ هضم نه کمول دَ نیکو دي او ظلم په لغت کښې دَ اضداد و نه دے په معنیٰ دَ زیاتي او کمي دواړو سره استعمالیږي.

عَرَبِيًّا وَّصَرَّفْنَا فِيهِ مِنَ الْوَعِيدِ

صاف بیان والا او قسم قسم بیان کړی دی مونږ په دیکښ عذابونه

لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ أَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا ﴿۱۱۳﴾

د دے د پاره چه دوی بچ شی یا په پیدا کړی دوی لره یادداشت۔

فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ وَلَا تَعْجَلْ

نو اوچت دے الله تعالیٰ چه بادشاه حق دے او تادی مه کوه

بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّقْضٰۤى اِلَيْكَ

په قرآن سره مخکښ د دینه چه پوره کړیشی تا ته

وَحْيُهٗ وَقُلْ رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا ﴿۱۱۴﴾

وحی د ده او وایه اے ربه زیاتی کړے زما علم۔

۱۱۳ :- په دے آیت کښ ترغیب دے، قرآن ته او په دیکښ د قرآن پاک دوه فائدے ذکر دی په طریقه د مانعة الخلو سره یعنی د دے دواړو فائدو نه په خالی نه وی او جمع د دواړو فائدو هم امکان لری او دواړو فائدو کښ فرق دا دے چه د تقوی نه مراد عمل کول دی په قرآن د وجے د یرے د عذاب د الله تعالیٰ نه۔ او د احداث ذکر نه مراد وعظ قبلول دی، په وجه د رغبت سره۔ یا مراد د تقوی نه شرک کفر او گناهونه پریخودل دی او مراد د ذکر نه توحید او ایمان او طاعات پیدا کیدل دی۔

۱۱۴ :- په دے آیت کښ اول بیان د توحید دے چه هغه نتیجه ده د صداقت د قرآن چه مخکښ آیت کښ ذکر شو۔ او په دے آیت کښ اثبات د علو دے د پاره د الله تعالیٰ چه صفت حقیقیه د الله تعالیٰ دے په غیر د تشبیه او تمثیل او په غیر د تحریف او تاویل نه۔ او بیا بیان د ادب د لوستلو د قرآن دے۔ او د دے ادب اول مطلب دا دے چه کله جبرائیل علیه السلام قرآن نازلوی د هغه د فارغ کیدلو نه مخکښ تلوار مه کوه په قرآن لوستلو کښ او دا سے په سورة قیامة کښ هم ذکر دی۔

وَلَقَدْ عَهِدْنَآ إِلَىٰٓ ءَادَمَ مِن قَبْلُ

او یقیناً حکم کړے وو موږ آدم علیه السلام ته مخکښ د دینه

فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُۥ عَزْمًا ﴿۱۱۵﴾ وَإِذْ قُلْنَا

نو هغه هیر کړو او نه وو موندلے موږ د هٔ لره قصد کول (د ګناه) او کوم وخت چې اوئیل موږ

لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا۟ لِءَادَمَ فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ

ملائیکو ته سجده اوکړئ آدم علیه السلام ته پس سجده اوکړه دوی مګر

او دویمه معنیٰ د آدب داده، چه څوک د قرآن په مراد باندے نه ئې پوهه نو د هغے نه مخکښ ئې مهٔ بیانوه، نو مراد د وحی نه بیان او تفسیر د هغے دے - او دا معنیٰ هم قرطبی د مجاهد نه نقل کړیده - او په آخر د آیت کښ تعلیم د دُعا دے د پاره د زیاتوالی د علم چه وحی ده - دا دلیل دے پدے خبره چه نبی صلی الله علیه وسلم زیاتوالی د علم ته محتاج وو - نو اُمت د هغه ضرور محتاج دے - او د دے نه معلومه شوه چه علم د پیغمبرانو کُلی او محیط نهٔ دے ځکه چه زیاتوالی ته محتاج دے - او دا دلیل دے په فضیلت د علم باندے ځکه چه الله تعالیٰ د هغے د زیادت دُعا خوښه کړے ده - او هر کله چه نبی صلی الله علیه وسلم دا دُعا لوستله د دے وجے نه په هغه باندے تر وفات پورے وحی نازلیدله او دا په حدیث د مسلم کښ وارد دی -

ف۱۱۵ :- پدیکښ ابتداء د واقعے د آدم علیه اسلام ده او بیان د عذر د آدم علیه السلام دے - او ربط د آیت د مخکښ سره دا دے چه مخکښ آیت کښ ترغیب وو په یاره د قرآن کښ نو پدیکښ تحذیر دے (یره ورکول) د نسیان نه په شان د آدم علیه السلام او عزم په معنیٰ د قصد سره دے - یعنی آدم علیه السلام قصد د ګناه نه وو کړے - دلته نسیان په خپله معنیٰ حقیقی سره دے په معنیٰ د ترک سره نه دے او ابن کثیر دا روایت د ابن عباس رضی الله عنهما نه په نقل د سعید بن جبیر رضی الله عنه او ابن ابی طلحه رضی الله عنه سره راوړے دے - او هر کله چه نسیان پخپله معنیٰ سره دے نو دا دلالت نه کوی په ګناه

إِبْلِيسَ أَبَىٰ ﴿١١٦﴾ فَقُلْنَا يَا آدَمُ إِنَّ هَٰذَا

ابلیس انکار اوکړو۔ نو اووئیل مونږ اے آدم یقیناً دا

عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا

دشمن ستا دے او ستا د بی بی پس او نه باسی تاسو دواړه

مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰ ﴿١١٧﴾ إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ

د جنت نه پس په تکلیف به شې۔ یقیناً تا لره دا رتکلیف د ابلیس د وسوسے منلو نه) چه نه به اوږے کیږے

فِيهَا وَلَا تَعْرَىٰ ﴿١١٨﴾ وَأَنَّكَ لَا تَظْمَأُ

په دیکښې او نه به بربنډ یږے۔ او یقیناً ته نه به تږے کیږے

فِيهَا وَلَا تَضْحَىٰ ﴿١١٩﴾ فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ

په دیکښې او نه به دے گرمی کیږی۔ پس لمسه اوکړه هغه ته

کولو د آدم علیه السلام بانـدے ځکه چه نسیان گناه نه ده۔

۱۱۶:۔ تفسیر د سجدے او انکار د ابلیس په سورة بقره او اعراف او حجر او سورة کهف کښې تیر شوے دے۔ اَبٰی دلیل دے چه سبب د سجدے نه کولو انکار د اطاعت د امر د الله تعالیٰ نه او دا کفر دے۔

۱۱۷:۔ په دے آیت کښې تنبیه ده آدم علیه السلام ته په دُشمنۍ د ابلیس سره او منع ده د هغهٔ د تابعدارۍ نه چه هغه سبب گرځی د جنت نه د وتلو د پاره او سبب گرځی د پاره د مشقت نو په فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا کښې نسبت ابلیس ته مجازی سببی دے۔

فَتَشْقَىٰ د مشقت نه ماخوذ دے د دنیا مشقتونه او تکالیفو ته اشاره ده. دا د شقاوت نه ماخوذ نه دے۔

۱۱۸، ۱۱۹:۔ په دے آیتونو کښې څلور نعمتونه د جنت ذکر دی۔ لیکن دا مشروط دی په دے شرط سره چه د حکم د الله تعالیٰ نه خلاف اونکړی۔ اول نعمت دا دے چه په جنت کښې لوږه نشته۔ او دویم نعمت دا دے چه بربنډ کیدل نشته او دا دواړه ئے یو ځائے ذکر کړل ځکه چه د جوع تعلق د باطن سره دے او بربنډ والی تعلق د ظاهر سره دے

الشَّيْطٰنُ قَالَ يٰٓاٰدَمُ هَلْ اَدُلُّكَ عَلٰى
شیطان اوئیل ئے اے آدم آیا او دښایم تاته
شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلٰى ﴿۱۲۰﴾ فَاَكَلَا
ونه د همیش والی او د بادشاهئ چه نه په زړیږي - نو او خوړو
مِنْهَا فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا وَطَفِقَا
دے دواړو د دغه وني نه پس ښکاره شول دوی ته عورتونه د دوی او شروع شول
يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ ز
لګولے ئے په ځان پانړے د پاڼړو د جنت نه

او دواړه ذلت دے او دا رنګ اول حاجت د انسان طعام او بیا جامے ته دے - او دریم نعمت دا دے چه جنت کښ تنده نشته - او څلورم نعمت دا دے چه ګرمی نشته ، او د دے اول تعلق د باطن سره دے او د دریم تعلق د ظاهر سره دے او دواړه ګرمی ده نو ځکه ئے یو ځائے ذکر کړل - او سبب د ترتیب د دے څلورو دا دے چه انسان اول د طعام طلب کوی او بیا د جامے طلب کوی ، بیا د اوبو طلب کوی ، بیا د ګرمئ نه د بچ کیدلو طلب کوی -

فائده :- په جنت کښ ګرمی او یخنی دواړه نشته لیکن دُنیا کښ د ګرمئ تکلیف زیات او عام وو خاص په حجاز کښ نو ځکه ئے هغه خاص ذکر کړو -

۱۲۱ :- په دیکښ وسوسه ده په دوه طریقو سره اول دا چه د دے ونے په خوراک سره همیشوالے حاصلیږی یعنی د مرګ نه به بچ شے - دویم دا چه په دے سره هغه نعمتونه حاصلیږی چه د هغے فنا نشته - یعنی ته به هم همیشه ئے او نعمتونه به هم همیشه وی - او شَجَرَةِ الْخُلْدِ په حقیقت کښ په جنت کښ یله او نه وه ابن کثیر په روایت د احمد سره ذکر کړیده او شیطان په دروغه سره دے شجرے (چه آدم علیه السلام ته ئے منع شوے وه) ته دا نوم کیخودلو -

وَعَصٰۤى اٰدَمُ رَبَّهٗ فَغَوٰى ﴿۱۲۱﴾ ثُمَّ

او خلاف اوکړو آدم د حکم د رب نه رب په هیره سره) نو مراد نه اورسیدو بیا

اجْتَبٰهُ رَبُّهٗ فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدٰى ﴿۱۲۲﴾

غوره کړو دهٔ لره رب د دهٔ نو رحمت نه یې پرې راواوګرځول او کلک یې کړو۔

۱۲۱:۔ په دے آیت کښ لفظ د سَوْاٰتُهُمَا او خصف کول صریح دلیل دے چه د هغوئ نه لباس لرے شو او بربنډ شول او عورتونه یې ښکاره شول لیکن تثنیه مقابل د تثنیه کښ تقاضا کوی چه هر یو ته خپل عورت ښکاره شو د بل د عورت د لیدلو دلیل نشته او دا عیب نه دی لیکن طبع نه خلاف دی او د دے صریح الفاظو تاویل کول او دا سے وئیل چه د جنت لباس تریته لرے شو او نورے جامے ورپورے وے او سَوْاٰت په معنی د نقصانات سره دے نو دا تحریف دے۔
عصیان مخالفت د امر ته وائی، که په قصد سره وی، او که په هیرے سره وی۔ هر کله چه قصداً وی نو هغه گناه ده، او چه په هیره وی نو ګناه نه ده۔ او مخالفت د آدم علیه السلام په هیرے سره وو۔ نو دا دلیل نهٔ دے د هغه په ګنهګار کیدلو باندے۔ او غوایت په معنیٰ د محروم کیدلو دے د مقصد نه یعنی آدم علیه السلام چه په سبب د وسوسے د ابلیس سره خوراک د ونے د کوم مقصد د پاره اوکړو نو هغه مقصد ورته حاصل نهٔ شو۔ امام قرطبی په خپل تفسیر کښ دوه ضروری خبرے لیکلے دی۔ اول دا چه هیچا له دا نه دی جائز چه د آدم علیه السلام په باره کښ په طریقه د اخبار مستقل سره دا جمله استعمالوی مګر هغه وخت جائز ده چه تلاوت د قرآن کوی، یا حدیث نقل کوی۔ دویمه خبره دا ده چه هیچا له دا نهٔ دی جائز چه دا سے اووائی چه آدم علیه السلام عاصی یا غاوی وو۔ ځکه چه صیغه د فعل مستلزم نه ده اطلاق د اسم فاعل لره۔
۱۲۲:۔ مراد د اجتباء او د هدایت نه ترقی د مرتبے ده او کلکول دی دا دلیل نه دے په دے خبره چه دا کار آدم علیه السلام د نبوت نه مخکښ کړیدے لکه چه معتزله وائی۔ تفصیل یې په سورة بقره کښ تیر شوے دے۔

قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ

اوئيل الله تعالى كوز شئ د دے ځايه نه ټول بعضے ستاسو د بعضو

عَدُوٌّ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى

دشمنان به وى پس كه چرے راغے تاسو ته زما د طرف نه هدايت

فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ

نو چا چه تابعدارى اوكړه د هدايت زما نو نه به بے لارے كيږى

وَلَا يَشْقَى ﴿١٢٣﴾ وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي

او نه به بدبخت كيږى - او چا چه مخ واړوو د يادداشت زما نه

فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ

پس يقينًا هغه لره ژوندن تنګ دے او راپورته به كړو دے

يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى ﴿١٢٤﴾ قَالَ رَبِّ

په ورځ د قيامت ړوند - او به وائى اے ربه

س ١٢٣ :- خوره دا ده چه خطاب په دے آيت كښ آدم عليه السلام او ابليس دواړو ته دے او حوا تابع د آدم عليه السلام ده - ځكه چه روستو جمله د دے دليل دے -

فائده :- سورة اعراف كښ اول اهبط ذكر شويو د پاره د ابليس او هغه د هبوط نه مخكښ وسوسه اوكړه بيا الله تعالى دواړه مخاطب كړل په دے آيت كښ او كوم ځائے چه جمع ذكر كړے ده هغه د دے وجے نه چه حوا عليها السلام پكښ داخل ده - او عبد الله ابن عباس رضى الله عنهما نه روايت دے چه دا آيت د فمن اتبع نه قرآن والا ته هم شامل دے - ځكه چه هُدَايَ كښ ټول رسولان او كتابونه داخل دى - فرمائيلى ئے دى چه چا قرآن اولوستلو او تابعدارى ئے اوكړه د هغے نو نه به شى د ګمراهئ نه په دنيا كښ او د بدبختئ نه په آخرت كښ -

س ١٢٤، س ١٢٥ :- په دے آيتونو كښ تخويف دے او د ذِكْرِ نه مراد كتاب الله

لِمَ حَشَرْتَنِيْٓ اَعْمٰى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيْرًا ﴿۱۲۵﴾

ولې راپورته کړه تا ما لره ړوند او حال دا چه زه وم لیدونکې۔

قَالَ كَذٰلِكَ اَتَتْكَ اٰيٰتُنَا فَنَسِيْتَهَا ۚ وَكَذٰلِكَ

او به وائي الله تعالىٰ دغسې راغلې وې تا ته آیاتونه زمونږ نو هیر کړه تا هغې لره او دا رنګ به

الْيَوْمَ تُنْسٰى ﴿۱۲۶﴾ وَكَذٰلِكَ نَجْزِيْ مَنْ اَسْرَفَ

نن ته هیر کړې شې۔ او دغسې سزا ورکوو مونږ هغه چا ته چه د حد نه تیر شوی

وَلَمْ يُؤْمِنْۢ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ؕ وَلَعَذَابُ

(په شرک کولو سره) او ایمان ئې نه دې راوړې په آیاتونو د رب خپل، او خامخا عذاب

الْاٰخِرَةِ اَشَدُّ وَاَبْقٰى ﴿۱۲۷﴾ اَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ

د آخرت ډیر سخت دې او همیشه دې۔ آیا پس نه ده ښکاره شوې دوی ته

اودین حق او سنت د رسول الله صلی الله علیه وسلم دې۔ لکه دې ته اشاره کړیده تفسیر القرطبي۔ او د تنګ ژوند نه مراد د دنیا ژوند دې یا عذاب د قبر دې۔ او دا روایت کړې شوې دې د ابوسعید خدري او عبدالله ابن مسعود او ابو هریره رضی الله عنهم نه۔ او په لفظ د معیشة کښې اشاره ده چه سامان د خوراک څښاک او مزې د دنیا به وې لیکن زړه به ئې تنګ وي په پریشانۍ او غمونو سره او قبر به ئې تنګ وي۔ او د ړوند نه مراد بې دلیله سړې دې۔ او د بَصِيْرًا نه مراد خاوند د دلیل دې په خپل ګمان سره یعنی اګر چه په دنیا کښې باطل دلیلونه ئې پیش کول لیکن په ورځ د قیامت هغه هم نشي پیش کولې لکه چه ذکر شوې دي سورة قصص ۶۶ کښې او سورة اسراء ۷۲ کښې۔ او یا مراد د ړوند نه حقیقتاً ړوند دې لکه سورة اسراء ۹۷ کښې لیکن دا ړوند والې په یو خاص حالت کښې به وي نه به وي همیشه لکه سورة قٓ ۲۲ کښې۔

۱۲۶:۔ په دې آیت کښې ذکر کړې دې سبب د تیر شوي عذاب۔ او مراد د نسیان نه ترک دې ( پریښودل قصداً )۔ او تُنْسٰى نه مراد پریښودل په عذاب همیشه کښې په شان د نَسْيًا مَّنْسِيًّا۔

۱۲۷:۔ په دې آیت کښې ذکر د تعمیم د عذاب دې هر مشرک ته ځکه چه

كَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ

چه څومره هلاک کړي دي موږ مخکښې د دے نه د پیړو نه

يَمْشُوْنَ فِيْ مَسٰكِنِهِمْ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

چه ګرځي دوی په کورونو د هغوی کښې یقینًا په دیکښې

لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي النُّهٰى ﴿۱۲۸﴾ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ

خامخا نخے دی عقلونو والو لره - او که نه وے فیصله

سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا وَّاَجَلٌ

چه وړاندے ده ستا د رب د طرف نه خامخا وو به عذاب لازم او که نه وے نیټه

مُّسَمًّى ﴿۱۲۹﴾ فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ

مقرر - پس صبر کوه په هغه باندے چه دوی یې وائي

مراد د اسراف نه شرک کول دی - وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَدُّ وَاَبْقٰى نه مراد دا دے چه عذاب د آخرت ډیر سخت دے په نسبت د عذاب د دنیا او د عذاب د قبر نه او همیشه باقي دے ځکه چه عذاب د دنیا او د قبر همیشه نه وی -

۱۲۸ :- په دے آیت کښې تخویف دنیوي دے سره د زجر نه - یهدِ نه مراد هدایت د عقل دے چه دوی د عقل نه کار نه اخلی چه مخکنی قومونه په څه سبب سره هلاک شوی دی -

۱۲۹ :- په دیکښې هم تخویف دنیوي دے - او مراد د کلمے نه مهلت ورکول دی د عذاب چه په تقدیر کښې یې لیکلی دی یا دا فیصله ده چه بغیر د الزام د حجت نه عذاب نه ورکوی - لَكَانَ ضمیر اهلاک (عذاب) ته راجع دے چه مخکښې آیت کښې ذکر دے - وَاَجَلٌ مُّسَمًّى دا عطف دے په کلمه باندے - لِزَامًا مراد د دیته واقع کیدل د عذاب دی -

وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ

او تسبيح وايه سره د حمد د رب ستا نه مخكښ د ختلو د نمر نه

وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا ۚ وَمِنْ اٰنَآئِ الَّيْلِ فَسَبِّحْ

او مخكښ د پټيدلو د هغې نه او د وختونو د شپې نه نو تسبيح وايه

وَاَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرْضٰى ﴿١٣٠﴾ وَلَا تَمُدَّنَّ

او د غاړو د ورځ نه د دے د پاره چه ته خوشحاله شے۔ او مه اوږدوه

عَيْنَيْكَ اِلٰى مَا مَتَّعْنَا بِهٖٓ اَزْوَاجًا مِّنْهُمْ

سترګے خپلے هغې سامان د دنيا ته چه ورکړے دي مونږ مالدارانو ته د دوی نه

زَهْرَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ لِنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ ۭ وَرِزْقُ

د پاره د ډول د ژوند دنيوی، د پاره د دے چه ازميښت اوکړو مونږ د دوی په هغې کښ او روزي

رَبِّكَ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ﴿١٣١﴾ وَاْمُرْ اَهْلَكَ

د رب ستا غوره ده او هميشه ده۔ او حکم کوه خپلو تابعدارو ته

١٣٠:- په دے آيت کښ تشجيع ده په صبر کولو سره او په بيان د توحيد سره۔ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ د دے نه مراد عقيده د توحيد ده په زړه کښ او ذکر د تسبيح او د حمد دے په ژبے سره او عمل د تسبيح او د حمد دے چه هغه مونځ کول دي۔ او په دے آيت کښ پنځه اوقات د مونځونو ذکر کړے شوي دي۔ ځکه چه د نمر ختلو نه وړاندے مونځ د فجر دے او د پټيدلو د نمر نه وړاندے مونځ د مازيګر دے او د اوقاتو د شپے نه مراد مونځ د ماښام او د ماسختن دے او د اطراف النهار نه مراد مونځ د ماسپخين دے ځکه چه وخت د ماسپخين آخري طرف د اول نصف دے۔ او اول طرف د آخري نصف دے نو دے په دوؤ طرفونو کښ شو۔ او مراد د جمع نه دوه دي۔ لَعَلَّكَ تَرْضٰى، دا دليل دے چه عمل کول په دے آيت باندے سبب د خوشحالو دے۔ او په دے آيت کښ د دعوت کوونکی د پاره درے آداب ذکر شول

١٣١:- په دے آيت کښ تزهيد في الدنيا دے او دا څلورم آدب دے مراد

بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا ؕ لَا نَسْـَٔلُكَ رِزْقًا ؕ

دَ مونځ کولو　او کلک شه　په هغې باندې، نه غواړو مونږ تا نه ذمه وار د روزئ،

نَحْنُ نَرْزُقُكَ ؕ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى ﴿۱۳۲﴾

مونږ تا له روزي درکوو، او آخري خوشحالي د پاره د تقوى والا ده۔

وَقَالُوْا لَوْلَا يَاْتِيْنَا بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ اَوَلَمْ

او دوی وائی ولې نه راوړي دے مونږ ته　نخه د طرف د رب د هغه نه　آیا نه دے

تَاْتِهِمْ بَيِّنَةُ مَا فِى الصُّحُفِ الْاُوْلٰى ﴿۱۳۳﴾

راغلي دوی ته صفا بیان د هغې چه په صحیفو　مخکنو کښ وو۔

دا دے چه د دنیا دارو مالونو ته پسخیدل سبب د غفلت دے د مانځه نه۔ اَزْوَاجًا هغه مالداران چه یو بل ته په مالدارئ کښ نزدے دی او مشابه وی په دنیا پرستئ کښ۔

وَرِزْقُ رَبِّكَ، مراد د دینه رزق حلال دنیاوی دے۔ او اَبْقٰى معنیٰ دا چه د هغې برکات په همیشه وی یا مراد د دینه رزق د جنت دے۔

۱۳۲:۔ په دیکښ ذکر د پنځم ادب دے۔ او د اهل نه مراد ټول تابعداری دی. وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْـَٔلُكَ رِزْقًا، نه مراد دا دے چه مونږ ته ذمه وار د رزق نه یې گرځولے چه په سبب د هغې سره غفلت راځي د مونځ کولو نه۔ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى، په دیکښ اشاره ده چه په دے پنځو آدابو باندے عمل کول تقوی ده۔ لِلتَّقْوٰى لام اجلیه دے یا مراد د دینه لِاَهْلِ التَّقْوٰى دے۔ اَلْعَاقِبَةُ، په لغت کښ مطلق آخری حالت ته وئیلے شی لیکن په عرف کښ په معنیٰ د خائسته آخری حالت سره دے۔

۱۳۳:۔ په دے آیت کښ زجر دے منکرینو ته یعنی هر کله چه په دے سورت کښ بیان شوه معجزه د موسیٰ علیه السلام نو مشرکانو مطالبه او کړه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه چه مونږ له هغه معجزات راوړه کوم چه موسیٰ علیه السلام راوړے وو نو د هغې جواب ورکړے شو۔ حاصل د جواب دا دے چه قرآنکریم د مخکنو کتابونو الهیو خلاصه ده۔ نو دا معجزه د ټولو معجزاتو نه کامله ده لکه په سورة عنکبوت ۵۱ کښ ذکر دی۔ او په دے

وَلَوْ أَنَّآ أَهْلَكْنَٰهُم بِعَذَابٍ مِّن قَبْلِهِۦ لَقَالُوا۟

او كه چيرې هلاک کړي وي مونږ دا خلق په عذاب سره مخكښ د راليږلو د رسول نه خامخا دوئ به ويلي وو

رَبَّنَا لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ

اے ربه زمونږ ولے تا نه راليږلو مونږ ته رسول پس چه تابعدارى كړې مونږ د آيتونو ستا

مِن قَبْلِ أَن نَّذِلَّ وَنَخْزَىٰ ﴿۱۳۴﴾ قُلْ كُلٌّ

مخكښ د ذليل كيدلو او رسوا كيدلو نه. ته أووايه هر يو

مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوا۟ ۖ فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ أَصْحَٰبُ

انتظار كوونكے دے نو تاسو هم انتظار كوئ زر دے چه تاسو به خبر شئ چه څوک دي خاوندان

ٱلصِّرَٰطِ ٱلسَّوِىِّ وَمَنِ ٱهْتَدَىٰ ﴿۱۳۵﴾

د لارے برابر او څوک دي هدايت والا.

آيت كښ اشاره ده چه د قرآن په نوم بينة دے او دا رنګ معلومه شوه چه قرآن خلاصه د مخكنو كتابونو ده.

سا۱۳۴ ـ په دے آيت كښ جواب دے د يو سوال. سوال دا دے چه دا خلق د مخكښ نه مشركان وو نو په دوی باندے عذاب ولے نه راتلو؟ حاصل د جواب دا دے كه د رسول د راليږلو نه مخكښ عذاب راليږلے شوے وے نو دوی به عذر راويستلو نه پيش كولے. ليكن الله تعالى د دا عذر په ځان باندے نه پريږدی لكه سورة النساء سا۱۶۵ او سورة قصص آيت سا۴۷ كښ چه څنګه ذكر دی. نو په دے آيتونو كښ ذكر كړے شوے حكمت د ارسال الرسل او انزال د كتب الهيه مِن قَبْلِ أَن نَّذِلَّ دا دليل دے چه سبب د ذلت او د رسوائي د كتاب الله نه خلاف كول دے. وَنَخْزَىٰ كښ اشاره عذاب د دنيا او آخرت ته.

سا۱۳۵ ـ په دے آيت كښ تخويف دنيوی دے يعنى هر كله چه رسول راوليږلے شو او بيا هم تاسو انكار كوئ نو اوس د عذاب انتظار وكړئ. او په دے آيت كښ اشاره ده د خبرے ته چه د عذاب د دنيا نه پخكيدونكى هغه خلق دي چه لارے ئے صحيح دي يعنى لار د قرآن او د حديث او مقصد ئے صحيح لاره ته رسيدل دي يعنى توحيد او سنت. الصِّرَٰطِ السَّوِيِّ اشاره ده صحت د لارے ته او وَمَنِ اهْتَدَىٰ اشاره د صحت د مقصد ته.

سورة الانبیاء مکیة | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰیاتها ۱۱۲ رکوعاتها ۷

خاص په نوم د الله تعالیٰ (مدد غواړم) په شروع کوم کوم چه رحمٰن او رحیم دے

اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ

دیر نزدے راغے خلقو ته حساب د هغوی او دوی په غفلت کښ دی

مُّعْرِضُونَ ۝١ مَا يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ مِّن

مخ گرځوونکی دی۔ نه راځی دوی ته څه یاد اشت د طرفه د

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ربط د دے د سورة طٰهٰ سره دا دے۔ هغه سورت کښ تذکیر او تشجیع وه په ذکر د موسیٰ علیه السلام نو په دے سورت کښ تذکیر دے په واقعاتو د نورو انبیاء علیهم السلام سره۔ دا رنگ په هغه سورت کښ د قیامت هیبتونه ذکر شول نو دلته د هغے نزدیکت ذکر کوی۔

دعویٰ:۔ د دے سورت تذکیر د غافلینو په شپږ وجو سره۔ او ماخذ د دعویٰ ‌ے دے۔ اوله وجه:۔ ذکر د اوولس انبیاء علیهم السلام تفصیلاً چه دوی محتاج وو او عاجزی کوونکی وو الله تعالیٰ ته او اجمالاً په ۲۵ کښ۔

دویمه وجه:۔ رد د څلورو قسمونو د شرک او رد په عقیده د اتخاذ الولد باندے او شفاعت قهریه باندے په اوولس آیاتونو کښ۔

دریمه وجه:۔ عقلی دلیلونه شپږ د پاره د تذکیر۔

څلورمه وجه:۔ یوولس زجرونه منکرینو ته۔

پنځمه وجه:۔ ذکر د تعبیراتو د غفلت اته او لفظ د ذکر هم اته کرته

شپږمه وجه:۔ اسماء حسنیٰ اته۔

خلاصه د سورت:۔ په دے کښ پنځه بابونه دی اول باب تر ۱۵ پورے دے۔ په دے کښ تخویف دے سره د زجرته په ذکر د شپږو مرتبو د غافلینو غفلت اعراض، لعب، لهوا القلب، النجوی، ظلم او شپږ طعنونه د دوی په رسول باندے۔ بشریت، سحر، اضغاث احلام، افتراء، شعر، طلب د معجزے۔ او اعلان د نبی صلی الله علیه وسلم په رد د شرک فی العلم په ۴ کښ او جواب د آخری طعن په ۶ کښ۔ او د اول طعن په

رَّبِّهِم مُّحْدَثٍ إِلَّا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ

رب د دوی نه نوے مګر غوږ ورته کیدی او حال دا چه دوی

يَلْعَبُونَ ﴿٢﴾ لَاهِيَةً قُلُوبُهُمْ ۗ وَأَسَرُّوا

لوبې کوی۔ مشغوله دی زړونه د دوی او پټې

النَّجْوَى ۖ الَّذِينَ ظَلَمُوا ۖ هَلْ هَٰذَا

جرګې اوکړلے هغوی چا چه ظلم ئے کړیدے چه نه دے دا

إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۖ أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ وَأَنتُمْ

مګر بشر دے ستاسو پشان آیا قبلوئ تاسو جادو او حال دا چه تاسو

تُبْصِرُونَ ﴿٣﴾ قَالَ رَبِّي يَعْلَمُ الْقَوْلَ

پوهیږئ۔ وئیلے دی رسول چه رب زما خبر دے په هره وینا

ف ۱ نه ۸ پورې کښې او ترغیب قرآن ته نه کښې او تخویف دنیوی د ۹ نه تر ۱۵ پورې۔

ف ۱:۔ هر کله چه د سورة طٰهٰ په آخر کښې د انتظار د عذاب ذکر وو نو دے آیت کښې د هغې نزدیوالے بیانوی سره د زجر نه په غفلت او اعراض سره۔

اِقْتَرَبَ لفظ دلالت کوی په ډیر نزدیکت یا نزدے نزدے کېدلے وجه نه دے چه کوم شے راتلونکی وی نو نزدے وی۔ او بله وجه دا ده چه د دنیا راتلونکے عمر کم دے په نسبت د تیر شوی او مراد د غفلت نه بے پروائی ده یعنی د آخرت د پاره تیاری نه کوی۔

ف ۲:۔ دا هم زجر دے په لعب کولو سره په وخت د بیان د قرآن کښې۔ ذکر مُّحْدَثٍ عقیدهٔ د سلف صالحینو او تمام اهلِ سنت دا ده چه قرآنکریم مخلوق نه دے نو حادث نه دے او دلته محدث نه مراد دا چه په نازلیدلو کښې نوے دے، یا دا چه د نبی صلی الله علیه وسلم په بیانولو کښې نوے دے یا دا چه د منکرینو په زعم کښې نوے دے۔ يَلْعَبُونَ نه مراد دا دے چه مشغوله وی په دنیا سره یا مشغول شی په اعتراضونو کولو سره په قرآن باندې۔

ف ۳:۔ دا هم زجر دے په لهو د قلوبو یعنی مشغوله دی زړونه د دوی په دروغو قصو د شرک بیا زجر دے په پټو جرګو کولو د نبی په مخالفت کښې

فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ السَّمِيْعُ

کہ په آسمان کښں وی او که په زمکه کښں وی او هغه هر څه آوري

الْعَلِيْمُ ④ بَلْ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍۢ

او په هر څه پوهه دے - بلکه دوی وائي دا ګډ وډ خوبونه دي

بَلِ افْتَرٰىهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ ۚ فَلْيَاْتِنَا

بلکه دا څان نه ئې جوړ کړی دے بلکه دے شاعر دے نو مونږ له دې راوړي

بِاٰيَةٍ كَمَآ اُرْسِلَ الْاَوَّلُوْنَ ⑤ مَآ اٰمَنَتْ

یو نخښه لکه چه لیږلی شوی دی مخکښں رسولان - ایمان نه دے راوړے

او دا ظلم دے - دا شپږ مرتبې دی دَ عا فلیتو او س ذکر کوی شپږ طعنونه دَ هغوی په رسول پاندے - اول طعن په رسول پاندے په بشریت سره دَ هغوی کافرانو شریکه وینا ده په باره دَ هر یو نبی کښں او دویم طعن ئې په سحر سره اوکړو - اَفَتَاْتُوْنَ السِّحْرَ مراد دَ ایتان نه تابعداری کول دی - وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ، په یکښں اشاره ده چه کافرانو هم سحر بد ګنړلو -

ف :- په یکښں رد دَ شرک فی العلم دے یعنی هر کله چه دوی پټے جرګے کولے او نبی صلی الله علیه وسلم دوی له دَ هغے خبر ورکړو نو وهم راغے چه نبی په غیب پوهیږی نو جواب اوشو چه نبی صلی الله علیه وسلم دا صفت دَ الله تعالی دَ پاره خاص کړی دے - او دا رنګ نبی خو صرف دَ خپل رب صفت کوی په طریقه دَ توحید فی العلم سره نو په یکښں دلیل دے دَ هغه دَ رسالت څکه چه ساحران او کاهنان دَ علم دَ غیب څان له دعوی کوی او دا نبی نسبت دَ علم غیب الله تعالی ته کوی -

ف :- دا دریم طعن دے چه قرآن ته ئې ګډ وډ خوبونه ویلی دی - او اَضْغَاثُ ، بے تعبیره او دروغ خوبونو ته ویلے کیږی بیا دَ حیرانتیا دَ وجے انتقال ئې اوکړو څلورم طعن ته چه دا افتراء ده بیا بل طعن ته چه دے شاعر دے او آخری طعن مطالبه دَ معجزاتو په شان دَ تیر شوو انبیاؤ علیهم السلام -

قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنٰهَا ۚ أَفَهُمْ

مخکښ د دوی نه هیڅ یو کلی والو چه مونږ هلاک کړیدی آیا نو دوی به

يُؤْمِنُوْنَ ﴿٦﴾ وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ إِلَّا

ایمان راوړی۔ او نه دی لیږلی مونږ ستا مخکښ مګر

رِجَالًا نُّوْحِيْٓ إِلَيْهِمْ فَسْئَلُوْٓا أَهْلَ الذِّكْرِ

ناريڼه چه وحی کوله مونږ هغوی ته نو تپوس اوکړئ د علم والو نه

إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٧﴾ وَمَا جَعَلْنٰهُمْ

که چرې تاسو نه پوهیږئ۔ او نه وو پیدا کړی مونږ دوی

سلف۱۔ دا جواب دے د آخری طعن یعنی مطالبه د آیت حاصل دا چه مخکنو قومونو ته دغسے معجزات راغلے وو کوم چه دوی ئے غواړی هغوی ایمان نه وو راوړے لکه فرعونیان چه په سورة طه کښ ذکر شو نو دوی خو په ضد او عناد کښ د هغوی نه زیات دی نو دوی به کله ایمان راوړی۔ دا جواب ئے د دے وجے نه مخکښ راوړو چه د دوی دا سوال څه نه څه په دلیل باندے بناء وو چه رسولان خو مونږ منو لیکن دا رسول دے د هغوی پشان معجزه راوړی او نور طعنونه خو صرف په ضد او په جهل باندے بناء دی د هغے جواب ته حاجت نشته ماسوا د اعتراض اول نه د هغے جواب تفصیلی دے د دے وجے نه هغه ئے روستو ذکر کړو۔

اَهْلَكْنٰهَا، صفت دے د قریة یعنی قریه د مکن بیتو چه مستحق د عذاب وو۔

سک۱۔ دا جواب دے د اول طعن په باره د بشریت د نبی کښ۔ مطلب دا چه تیر شوی رسولان ټول ناريڼه وو۔ او رِجَالًا په وصف د ملائکو کښ نه راځی۔ نو معلومه شوه چه بشر وو۔ او اَهْلَ الذِّكْرِ، عام دے یهود او نصارٰی کښ چه د الله تعالٰی د کتابونو صحیح عالم وی او تحریف نه کوی۔ او قرآن او حدیث والا عالمان، یعنی انکار

مهٔ کوئ دَ بشریت دَ رسول نه بلکه عالمانو دَ کتاب وسنت له راشئ
چه تاسو ته ثابت کړی په دلیلونو سره چه بشر رسول کیدے شی۔

الذِّکر نه مراد وحی ده هغه عالمان چه په وحی باندے علم او عمل لری
او په هغې باندے استدلال کوی۔ او تفسیر قرطبی کښ ئے راوړے دی چه
په تواتر سره ثابت ده چه رسولان ټول بشر وو۔ دا سے آیت په سورة نحل
کښ هم تیر شوید ے۔

فائده ۱:- اعلام الموقعین عن رب العالمین دَ علامه ابن القیم الجوزیه
کتاب په صفحه ۱۲۹ او جلد دوئیم کښ سوال ذکر دے۔ چه دَ دے آیت نه
تقلید معلومیږی او بیا ئے جواب کړید ے دَ هغې (عربی عبارت) ....!
معنی دا ده چه الله تعالی بیا ذکر کړید ه دَ هغه چا اعراض کوی دَ ما انزل الله
(قرآن کریم او صحیح حدیث) نه او تقلید دَ مشرانو کوی نو دا تقلید
په اتفاق دَ امت سره مذموم او حرام دے او هغه شخص چه کوشش
کوی په اتباع دَ ما انزل الله کښ لیکن بعضے دَ هغې نه دَ ده علم او له رسی
نو دے دَ هغه چا خبره او منی چه د ده نه علم کښ زیات وی نو دا
تقلید محمود دے۔ حاصل دا دے چه اهل الذکر عالمانو دَ قرآن
او دَ حدیثو ته وائی یو شخص چه یو عالم لره دَ قرآن او سنت عالم
گنړی او دَ دهٔ سره علم دَ قرآن او سنت بالکل نه وی یا په یو مسئله
کښ نه وی او دے دَ دغه عالم نه مسئله او تپوسی نو دهٔ حقیقتاً
دَ قرآن او سنت تابع اونه کړله۔ لیکن پدے کتاب کښ هم او شاه
ولی الله په عقد الجید کتاب کښ هم لیکلے دی که دے سړی ته په
راتلونکی وخت کښ دَ قرآن او حدیث نه صحیح نص معلوم شو
او دَ هغه قول نه خلاف وؤ نو هغه قول په پریږدی او قرآن او
حدیث باندے په عمل کوی او که دا سے ئے اونکړل نو معلومه شوه
چه دے شخص تقلید مذموم او حرام کړیدے۔

هاں دَ دے آیت نه دَ تقلید شخصی په اثبات باندے دلیل نیول
صحیح نه دی ځکه دَ تقلید شخصی معنیٰ دا ده چه یو شخص
(عالم معین) پسے دَ تقلید کولو التزام اوکړی که دَ نورو علماؤ

جَسَدًا لَّا يَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَمَا كَانُوا
جوسے چه نه یې خوړلو خوراک او نه وو

خٰلِدِيْنَ ﴿٨﴾ ثُمَّ صَدَقْنٰهُمُ الْوَعْدَ
دوی همیشه - بیا پوره کړه موږ د هغوی سره وعده

فَاَنْجَيْنٰهُمْ وَمَنْ نَّشَآءُ وَاَهْلَكْنَا الْمُسْرِفِيْنَ ﴿٩﴾
پس بچ کړل موږ هغوی لره او هغه چا له چه موږ غوښتلو او هلاک کړل موږ د حد تیروونکی خلق.

اقوال د قرآن او سنت سره زیات موافق وی یا د دغه شخص قول د قرآن او سنت نه مخالف معلوم شی نو بیا هم دے د دغه شخص قول باندے عمل پریخودلو ته تیار نه وی. او په دے تقلید پاتے امام ابن قیم په اعلام الموقعین کتاب کښ په تفصیل سره ردکړے دے.

ف:- په دے آیت کښ د تیر شوی جواب دلیل دے یعنی رسولان بشر وو. ځکه چه هغوی د خوراک نه مستغنی (بے حاجته) نه وو او دارنګ د فنا او د مرګ نه هم بچ نه وو. او دا صفتونه د دوی د پاره هیڅ عیب نه دے او د رسالت سره منافات نه لری.

ف:- په دے آیت کښ اشاره ده تخویف دنیوی ته د پاره د منکرینو په اهلاک د منکرینو تیر شوو. او لفظ د مُسْرِفِيْنَ کښ اشاره ده چه په دغه خلقو کښ دغه مخکښ شپږ مرتبے د غفلت موجود وے. او بشارت دنیویه دے په نجات او نصرت د انبیاؤ او د تابعدارو د هغوی سره. او دا وعده په سورة یونس ۱۰۳ کښ او سورة الصافات ۱۷۱، ۱۷۲، ۱۷۳ کښ ذکر ده. په دے کښ اشاره ده چه دغه رسولان په نجات خپل او په هلاکت د دشمنانو کښ الله تعالیٰ ته محتاج وو.

لَقَدْ أَنزَلْنَا إِلَيْكُمْ كِتَابًا فِيهِ ذِكْرُكُمْ ۖ

بیشکه موږ نازل کړی دی تاسو ته کتاب په هغې کښې یادداشت ستاسو دے

أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿١٠﴾ وَكَمْ قَصَمْنَا مِن قَرْيَةٍ

نو ولې د عقل نه کار نه اخلئ. او ډیر هلاک کړی دی موږ کلی

كَانَتْ ظَالِمَةً وَأَنشَأْنَا بَعْدَهَا قَوْمًا

چه وو ظلم کوونکی او پیدا کړه موږ روستو د هغوی نه قوم

آخَرِينَ ﴿١١﴾ فَلَمَّا أَحَسُّوا بَأْسَنَا إِذَا هُم

نور . پس هر کله چه اولیدو هغوی عذاب زموږ نو دغه وخت دوی

مِّنْهَا يَرْكُضُونَ ﴿١٢﴾ لَا تَرْكُضُوا وَارْجِعُوا

د هغې نه منډې وهلې. (اوئیلې شو) منډې مه وهئ او واپس شئ

سنا :- په یکښې جواب د هغه طعنو دے چه د قرآن په باره کښې تیر شوی آیاتو کښې ذکر شوی دی په بیان د صداقت د قرآن سره چه دا ذکر دے او الله تعالیٰ نازل کړی دے. او ذکر نه مراد بیان د احکامو د شرعې او وعظ او نصیحت دے. او په دے باندې عمل کول سبب د شرافت دے نو ځکه بعض مفسرینو د ذِکر معنیٰ په شرافت سره کړیده. او د حسن بصری نه نقل دے چه ذکر په معنیٰ د دین سره دے (ابن جریر).

سلا :- د دینه تر آیت سفا پورې تخویف دنیوی دے د پاره د هغه چا چه اعراض کوی د دے ذکر نه. او په یکښې خاص واقعه مراد نه ده بلکه تیر شوی قومونه چه تکذیب ئے کړے وو د انبیاؤ هغه ټول مراد دی.

قَصَمْ په لغت کښې ماتولو ته وائی دلته مراد هلاکول دی. ظَالِمَةً دا سبب د عذاب دے ظلم د هغوی شرک کفر او تکذیب د رسولانو او په هغوی باندې طعنه کول وو.

سلا :- فَلَمَّا فاء د تفصیل د قَصَمْنَا د پاره ده. أَحَسُّوا ئے ځکه ذکر کړے دے که د احساس د عذاب نه مخکښې ئے توبه کړے وے نو قبوله شوے وه. ځکه چه احساس په معنیٰ د یقین د عذاب دے. رَکض اصل لغت

اِلٰى مَآ اُتْرِفْتُمْ فِيْهِ وَمَسٰكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ

هغه مالونو ته چې بې کچه مست کړې شوي يئ په هغې کښې او کورونو خپلو ته د دې دپاره چه تاسو ته

تُسْـَٔلُوْنَ ﴿١٣﴾ قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ اِنَّا كُنَّا

سوال او کړې شي . دوي او ئيل هلاکي تباهي ده زمونږ يقيناً وو مونږ

ظٰلِمِيْنَ ﴿١٤﴾ فَمَا زَالَتْ تِّلْكَ دَعْوٰىهُمْ

ظالمان . پس هميشه وې دغه چغې د دوي

حَتّٰى جَعَلْنٰهُمْ حَصِيْدًا خٰمِدِيْنَ ﴿١٥﴾

ترد ې پورې چه او کړځول مونږ دوي ډل ډول مړه شوي .

کښې پوند ه خوځول په زمکه باندې او په تيزئ سره کيخودلو ته وائي مراد تري نه منډه وهل او تختيدل دي .

سل۱۳ : دا قول د ملائکو د طرف نه دے مَآ اُتْرِفْتُمْ نه مراد سازوسامان او نعمتونه دي چه د هغې د وجې نه يئ د حدود والٰهيه نه تجاوز کوؤ . لَعَلَّكُمْ تُسْـَٔلُوْنَ ، دا په طريقه د استهزا سره دے يعنې چه ستاسو نه تپوس اوکړيشي چه ولې تيختنه کوئ او ولې ايمان نه راوړئ او ولې په تاسو باندې عذاب راغے ( دا دے تولو معانيو ته شامل دے . )

سل۱۴ : په دے آيت کښې دا اقرار او پښيمانتيا ده په ظلم او په ګناهونو باندې په داسې وخت کښې چه فائده نه ورکوي .

سل۱۵ : په دے آيت کښې مراد دا دے چه په دے اقرار باندې د دوي نه عذاب نه دے دفع کړے شوے .

حَصِيْدًا ، هغه فصل ته وئيلې کيږي چه لو کړے شي او ټکړے شي .

خٰمِدِيْنَ ، خمود په اصل کښې د اور مړ کيدل دي په دے کښې اشاره ده چه د دوي غرور تکبر او غصه د اور پشان وه خو لکه چه اور مړ شي د غسې د دوي زور شور او غصه هم مړه شوه .

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْاَرْضَ وَمَا

او نه دي پیدا کړي مونږ آسمان او زمکه او هغه چه

بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ ﴿۱۶﴾ لَوْ اَرَدْنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ

د دے په مینځ کښ دي لوبے کوونکي - که چرے غوښتلے مونږ چه او نیسو

لَهْوًا لَّاتَّخَذْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّآ ۖ اِنْ كُنَّا

مشغله خامخا نیولے به وے مونږ هغه د خپلے خوا نه که چرے داکار

فٰعِلِيْنَ ﴿۱۷﴾ بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى

مونږ کولے - بلکه وړګن اچوُ مونږ حق لره په

س۱۶:- خلاصه :- د دے آیت نه س۳۰ پورے دویم باب دے - په دے کښ دوه مختصر عقلی دلیلونه دی د پاره د تذکیر س۱۶ س۱۹ کښ او دوه نقلی دلیلونه دی د پاره د تذکیر - یو د ملائکو نه او دویم د تمام انبیاؤ نه اجمالاً س۱۹، س۲۰، س۲۱، س۲۵ کښ او څلور زجرونه دی س۱۷ س۱۸ س۲۱ س۲۲ س۲۶ س۲۷ س۲۸ س۲۹ کښ -

تفسیر په س۱۶ کښ دلیل عقلی دے یعنی آسمانونه او زمکه عبث او بے فائدے ندی پیدا کړے شوی بلکه پیدا کړے شوے دی د پاره د دلالت په وجود د الله تعالیٰ او په توحید باندے او دا رنګ ص س۲۷ کښ دی او سورة دخان س۳۸، س۳۹ کښ دی - او دا سے عقیده په صفت د اولوالالباب کښ ذکر ده په سورة آل عمران کښ -

س۱۷:- په دے آیت کښ یوه توجیه دا ده چه مراد د لَهْوًا نه عبث دے چه مشغولول کوی یعنی که مونږ اراده کولے چه آسمانونه او زمکه هم صرف د خپل مشغلا د پاره پیدا کولے نو ما یه د ځان سره ساتلے او تاسو ته به هم د دے دلیلونه نه ښکاره کولے - او دا توجیه د آیت تیر شوی او راتلونکی سره مناسبت او ربط لری او مِنْ لَّدُنَّا په معنیٰ د عِنْدَنَا دے -

دویمه توجیه دا ده که مونږ ولد نیولے نو د هغه ځا نه به هم ولد جوړ

الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهٗ فَاِذَا هُوَ زَاهِقٌ ؕ

باطل باندے نو زخمی کړی دماغ د هغه پس دغه وخت هغه روان شي

وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُوْنَ ۝١٨ وَلَهٗ مَنْ

او ستاسو د پاره تباهي ده د وجې د هغه خبرو چې وائي تاسو (په باره د الله تعالی کښې) او خاص د

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَمَنْ عِنْدَهٗ

الله تعالی په اختیار کښې دی هغه څوک چې په آسمانونو کښې دی او زمکه کښې دی او هغه څوک چې هغه ته نزدې دی

لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَلَا يَسْتَحْسِرُوْنَ ۝١٩

لویي نه کوي د بندګۍ د هغه نه او نه ستړي کیږي.

يُسَبِّحُوْنَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُوْنَ ۝٢٠

پاکي وائي د الله تعالی شپه او ورځ نه سستي شکاره کوي.

کړې وې چې زما سره دي او پخپله خوښه په رم نیولے ستاسو خوښې ته په رم نه پریخودلے - اِنْ كُنَّا ، اِنْ په معنیٰ د نفی دے یعنی نه یو مونږ کوونکی د دې کار کوونکي یا اِنْ شرطیه دے او جزاء یې د مخکښې په قرینے سره پټه ده یعنی که چرې مونږ دا کار کولے نو جنت جهنم جزاء سزاء وغیره به رم نه پیدا کولے یا معنیٰ دا ده یعنی که چرې مونږ کولے نو ستاسو خوښې ته رم نه پریخودلے.

۱۸:- دا اضراب دے د مخکښې نه یعنی لهو نه ده بلکه دا دلیلونه د حق د اثبات او د باطل د رد د پاره دي حق قرآن دے او باطل دروغ د هغوی او الله تعالی ته د عبث او د ولد نسبت کول دي. او حق حجت او دلیل دے او باطل شبهات د متکرینو دي.

مِمَّا تَصِفُوْنَ نه مراد نسبت د ولد او د لهوے دے الله تعالی ته.

۱۹:- په دے آیت کښې دویم مختصر عقلی دلیل دے او ذکر د عجز د ملائیکو دے د پاره د دلیل نقلی او نفی د الوهیت او ولدیت د ملائیکو نه. وَمَنْ عِنْدَهٗ مراد د دے نه ملائک دي.

۲۰:- دا هم بیان د حال د عبودیت د ملائکو دے. او کعب الاحبار نه

أَمِ اتَّخَذُوٓا ءَالِهَةً مِّنَ الْأَرْضِ هُمْ

آیا نیولے دی دوی معبودان دَ زمکے والو نه چه هغوی

يُنشِرُونَ ﴿٢١﴾ لَوْ كَانَ فِيهِمَآ ءَالِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ

ژوندی کول کولے شی۔ که چرے وے په زمکه آسمانو کښ معبودان برحق بیر سوا د الله تعالی

لَفَسَدَتَا فَسُبْحَٰنَ اللَّهِ رَبِّ الْعَرْشِ

خامخا خراب شوے به وُو انتظام دَ دے دواړو نو پاک دے الله تعالی چه مالک دَ عرش دے

عَمَّا يَصِفُونَ ﴿٢٢﴾ لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ

دَ هغه څه نه چه دوی یے بیانوی۔ تپوس نشی کیدے دَ الله تعالی نه دَ هغه کار چه هغه کوی

نقل دی چه دوام دَ تسبیح دَ ملائیکو داسے دے لکه چه انسان ساه اخلی۔ نه په هغے ستړے کیږی او نه پرے دَ نور کار نه مشغولیږی۔ پریخودلو دَ یو کار دَ پاره دَ دے سببونو نه یو سبب دی او استکبار دویم ستړے کیدل دریم ناراستی او سستی کول او په ملائیکو کښ دا درے واړه اوصاف نشته۔

سلا:۔ دا زجر دے په شرکا وُ جوړولو دَ زمکے والو نه یعنی بُتان، اولیاء مړی یا ژوندی۔

یُنشِرُونَ دَ نشور نه دے په معنی دَ ژوندی کولو اول ځل یا دوباره ژوندی کول لکه سورة الفرقان سے کښ دی۔

سلا:۔ پدیکښ رد دے په اتخاذ دَ آلِهو باندے چه مخکښ آیت کښ تیر شو او پدیکښ دوه توجیه دی۔ اول توجیه بناء ده پدے خبره باندے چه مراد دَ آلِهه نه مستقل قدرت او اختیار او تصرف والا دی او فساد نه مراد نیشت والے دے یا دَ انتظام بربادی ده۔ نو معنیٰ دا شوه چه په زمکه او آسمانو کښ مستقل تصرف کوونکی ډیر وے نو زمکه او آسمانونه به نه وُو۔ یا انتظام به یے برباد شوے وُو۔ او وجه دا ده چه ایجاد دَ دے به یا دَ دواړو په قدرت مستقله سره وی یا دَ یو تن په قدرت سره۔ اول خو ځکه باطل دے

وَهُمْ يُسْـَٔلُوْنَ ﴿۲۳﴾ اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ

اودوی مخلوق نه پوښتنه کیدے شی - آیا نیولی دی دوی سوا د

دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً ؕ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ ۚ

الله تعالیٰ نه حقدار د بندګئ، ته او وایه راوړئ پوخ دلیل خپل،

چه دوه مستقل قدرتونه دوه مستقل علتونه شو او په یو شی (معلول) بانسے دوه علتونه نشی جمع کیدے - او که د دواړو په قدرت سره موجود شی نو بل به عبث شی او ترجیح بلا مرجح به راشی - او دا الوهیت سره منافی دی - دا رنګ ویلے کیدے شی چه آلِهه کثیر شی نو عالم به غیر ممکن شی ځکه چه تمانع (یو بل منع کول په زور سره) به ممکنه نشی او تمانع سره الوهیت باطلیږی - او د دے ملازمه په سورۂ مومنون ملا کښ ده - د دے نه معلومه شوه چه دا دلیل د اثبات د توحید دپاره قطعی او یقینی دے - او قول د تفتازانی په شرح عقائد کښ بے مناسبه دے چه هغه وائی چه دا اقناعی او ظنی دلیل دے. تفسیر روح المعانی او نورو اهل علموهم پره بانسے رد کړے دے - دویم توجیه بناء ده په دے خبره چه مراد د آلِهو نه هغه آلِهه دی چه مشرکانو الله تعالیٰ سره شریک جوړول لکه په سورۃ اسراء ملا کښ دی.
او د هغوی آلِهه خو عاجز دی او عاجز خو د زمکے او آسمانونو نظام نشی سمبالولے نو معنیٰ دا شوه چه د دے مشرکانو دا آلِهه (چه ضعیف او کمزورے دی) که د زمکے او آسمانونو یعنی د دنیا تدبیر کوونکی شی لکه چه اوس هم مشرکان قطبان او غوثان د دنیا تدبیر کوونکی ګنړی - نو دا انتظام به خراب شوے وے ځکه چه هغوی کمزوری دی -
فَسُبْحٰنَ ، دا نتیجه ده د دلیل مخکنی - رَبِّ الْعَرْشِ، په دے کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ نظام چلوونکے دے او دا نظام یے یل چا ته سپارلے نه دے - يَصِفُوْنَ ولد او شریک
۲۳ :- دا بل دلیل د توحید دے چه آلِهه د دے مشرکانو د الله تعالیٰ نه سوا عاجز دی او الله تعالیٰ سره قدرت مستقله دے -
لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ ، اعتراض نشی کیدلے د هغه په هیڅ کار بانسے

هٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَّعِيَ وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِيْ ط

دا (ردّ د شرک) وعظ زما د ملګرو د ی او وعظ د هغه چا دے چه زما نه مخکښ دی،

بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ الْحَقَّ فَهُمْ

بلکه ډیر د دے خلقو نه نه پوهیږی په حق باندے نو دوی

مُّعْرِضُوْنَ ﴿۲۴﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ

مخ ګرځوی۔ او نه دے لیږلے موږ مخکښ ستا نه

مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِیْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ

هیڅ رسول مګر وحی کوله موږ هغه ته یقینًا

لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ ﴿۲۵﴾ وَقَالُوا

چه نشته حقدار د بندګئ سوا زما نه نو پس بندګی خاص ما لره کوئ۔ او دوی وائی

اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ط

نیولے دے رحمٰن ذات اولاد پاک دے هغه

ځکه چه د هغه په هر کار کښ حکمت دے او حساب ورسره هم نشی کیدلے وَهُمْ يُسْـَٔلُوْنَ ، لکه چه سورة اعراف ۶ کښ دی۔

۲۴:۔ هر کله چه مخکښ دلیل په توحید باندے ذکر شو نو اوس زجر دے چه په اتخاذ د آلهه باندے دوی لره دلیل نشته۔

هٰذَا ذِكْرُ آه ، نه مراد دا دے چه دا مسئله د توحید او ردّ د شرک د ټولو پیغمبرانو او د کتابونو الهیو مسئله ده۔

لَا يَعْلَمُوْنَ الْحَقَّ ، حق توحید دے او قرآن دے ۔ او دا دلیل دے چه جهل سبب د اعراض دے۔

۲۵:۔ دا تائید دے د تیر شوی آیت چه ذِكْرُ مَنْ قَبْلِیْ یعنی په مسئله د توحید باندے ټولو انبیاء علیهم السلام رالیږلے شوے دی او دا دلیل نقلی اجمالی یا اجماعی دے د ټولو انبیاؤ نه او دا سے په سورة نحل ۳۶ او سورة زخرف ۴۵ کښ هم دی۔

بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُونَ ﴿۲۶﴾ لَا يَسْبِقُونَهٗ

بلکه دوی (محتاج) بندګان دی عزت ورکړے شوی دی. نه وړاندے کیږی د الله تعالیٰ نه

بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِأَمْرِهٖ يَعْمَلُونَ ﴿۲۷﴾

په وینا کښې او دوی د هغه په حکم سره عمل کوی.

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ

خبر دے الله تعالیٰ په هغه حالاتو چه وړاندے د دوی دی او هغه چه روستو د دوی دی

وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى وَهُمْ

او سفارش نشی کولے مګر صرف هغه چا لره چه خوښ کړے وی او دوی

مِّنْ خَشْيَتِهٖ مُشْفِقُونَ ﴿۲۸﴾ وَمَنْ يَّقُلْ

د وجے د ویرے د الله تعالیٰ همیشه کوونکی دی د هغه سره یا هیبت زده کی او چا چه اُووئیل

۲۶:۔ په دے کښې زجر دے په نسبت کولو د ولد الله تعالیٰ ته او آیت عام دے هغه ټولو مشرکانو ته چه الله تعالیٰ ته د ولد حقیقی یا حکمی نسبت کوی او رد دے په مشرکینو یا ملائکه بانده او ولد نه مراد لور ده حکمی معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ ورله اختیار او تصرف ورکړے وی چه په هغے وجه دوی د بعضے حاجتونو پوره کولو ذمه واران دی. او د رد د پاره د دغه صالحینو بندګانو اته صفات د عجز ئے ذکر کړے دی. په دے آیت کښې دوه صفتونه دی. اول صفت عباد عاجزی کوونکی دی او محتاج دی. دویم صفت مُّكْرَمُونَ کرامت او عزت والا دی په تیز د الله تعالیٰ یعنی کرامت کښې الله تعالیٰ ته محتاج دی.

۲۷:۔ په دے آیت کښې دوه صفتونه دی یعنی په وینا کولو کښې د الله تعالیٰ نه خلاف نه کوی. ځکه چه سبقت په وینا کښې کنایه ده په عرف کښې د مخالفت کولو نه. او د الله تعالیٰ د امر موافق عمل کوی.

۲۸:۔ په دے آیت کښې د دوی درے صفات ذکر کوی یعنی الله تعالیٰ د دوی په ټولو حالتونو عالم دے. مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ کښې راتلونکی حالات او مَا خَلْفَهُمْ کښې تیر شوی حالات مراد دی یا مخه او شا

مِنْهُمْ اِنِّیْٓ اِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ فَذٰلِكَ

دَ دوی نه چه زهٔ هم دَ الوهیت څه صفت لرم سوا دَ الله تعالیٰ نه نو دغه کس له به

نَجْزِیْهِ جَهَنَّمَ ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِی

سزا ورکوو مونږ جهنم ، دغسې سزا ورکوو مونږ

الظّٰلِمِیْنَ ﴿۲۹﴾ اَوَلَمْ یَرَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْٓا

ظالمانو ته . آیا نه کوری کافران

اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا

چه آسمانونه او زمکه دواړه بند وو

فَفَتَقْنٰهُمَا ؕ وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ

نو پرانستل مونږ دواړه او پیدا کړی دی مونږ دَ اوبو نه هر

مراد دهٔ اواشاره ده ټولو زمانو او ټولو طرفونو ته - که په دوی کښ صفت دَ قدرت او اختیار مستقله موجود وے نو الله تعالیٰ ته به معلوم وے او دا رنګ دوی شفاعت دَ مشرکینو دَ پاره نشی کولے نو رد دے په مشرکانو باندے چه دَ دوی نه شفاعت کولو امیدونه مه لرئ -

اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰی مراد دَ دینه مؤمن مؤحد دے چه الله تعالیٰ غوره کړی دے په رضا خپلے سره لکه سورة طٰهٰ ۱۰۹ کښ تیر شوی دی - او دوی ویره کوونکی دی -

خَشْیَت ، ویره کول سرهٔ دَ تعظیم نه او اشفاق دَ ویرے دَ وجے نه زړهٔ نرمیدل دی -

۲۹ :- په دے کښ ذکر دے دَ اتم صفت چه دوی لره حق نشته چه دعویٰ دَ الوهیت اوکړی - تفسیر قرطبی کښ لیکلی دی اګرچه معصوم دی لیکن په عبادت سره مکلف دی نو دا رد دے په هغه چا باندے چه وائی چه بعضے بزرګان په بزرګئ کښ داسے حد ته اورسی چه هغوی لره جائز دی چه "انا الحق یا سبحانی ما اعظم شانی " وائی یا دَ الوهیت دَ یو صفت دعویٰ کوی دا قول کفر او ظلم دے ځکه چه الله تعالیٰ په دے آیت کښ هیڅوک دَ دے نه

شَیۡءٍ حَیٍّ ؕ اَفَلَا یُؤۡمِنُوۡنَ ﴿۳۰﴾ وَجَعَلۡنَا

څیز ژوندے ، آیا نو دوی ایمان نه راوړی - او جوړ کړیدی مونږ

مستثنیٰ کړی نه دی چه هغوی لره دعوٰی دَ صفت دَ الوهیت جائز وی۔

اِنِّیۡۤ اِلٰهٌ ، لفظ الله تعالیٰ یې نه دے وئیلے بلکه اله هر صفت دَ الوهیت ته شامل دے برابره خبره ده که دا دعوٰی په طریقه دَ شرکت سره وی او که په حلول او اتحاد سره وی۔

۳۰ خلاصه :- دَ دے آیت نه دریم باب دے تر ۴۸ پورے - په دیکښ تذکیر دے په څلورو عقلی دلیلونو سره بیا تسلی ده رسول ته سره دَ پنځم زجر نه ۳۳ ۳۵ کښ بیا شپږم زجر دے په ۳۶ کښ بیا اووم زجر دے په ۳۷ کښ بیا اتم زجر دے په ۳۸ کښ بیا تخویف اخروی ۳۹ ۴۰ کښ او تسلی رسول ته ۴۱ کښ بیا نهم زجر دے ۴۲ کښ او رد دے په شرک باندے په ۴۳ کښ بیا لسم زجر دے ۴۴ کښ او تسلی ده رسول ته ۴۵ کښ او تخویف اخروی دے په ۴۶ ۴۷ کښ۔

تفسیر :- په دے آیت ۳۰ کښ دریم عقلی دلیل دے۔

رَتۡقًا فَفَتَقۡنٰهُمَا ، یو تفسیر دا دے چه ټول آسمانونه یو جسم وو۔ او ټولے زمکے یو جسم وے نو دوی یې دَ یو بل نه جدا جدا کړل اود هر یو نه یې اووه اووه جوړ کړل۔ دویم تفسیر دا دے چه آسمان بند وو یعنی باران تری نه وریدلو او زمکه بنده وه یعنی بوټی تری نه راوتل نو الله تعالیٰ دَ آسمان دَ طرف نه بارانونه راووړول او په هغے سره یې دَ زمکے نه بوټی را او تو کول۔

وَجَعَلۡنَا مِنَ الۡمَآءِ دَ دے یو معنیٰ دا ده چه هر ژوندے څیز یې دَ اوبو نه پیدا کړے دے۔ دویمه معنیٰ دا ده چه ژوند ون دَ هر ژوندی مخلوق یې په اوبو سره ساتلے دے۔ دریمه معنیٰ دا ده چه هر ژوندے شے یې دَ اوبو دَ نطفے نه پیدا کړے دے۔ په اول دَ دواړه معانی سره - تازګی دَ زمکے او دَ بوټو نه هم عام دے۔

فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِهِمْ

په زمکه کښې کلک غرونه چه کښې وړو اوته خوځې په دوی پاندې

وَجَعَلْنَا فِيهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَعَلَّهُمْ

او جوړ کړی دی مونږ په هغې کښې فراخې لارې د دې د پاره چه دوی

يَهْتَدُونَ ﴿٣١﴾ وَجَعَلْنَا السَّمَاءَ سَقْفًا

مقصد ته اورسی۔ او جوړ کړې دے مونږ آسمان چت

مَحْفُوظًا ۖ وَهُمْ عَنْ آيَاتِهَا مُعْرِضُونَ ﴿٣٢﴾

ساتلے شوے او دوی د نخو د هغې نه مخ ګرځونکی دی۔

---

۳۱:۔ دا څلورم عقلی دلیل دے۔ تَمِيدَ د میں نه دے او میں په معنٰی د ښکته وړو ګردش سره دے۔ او فِجَاجًا کشاده ځایونو ته وائی په غرونو کښې دړے کنډے کله د تلو راتلو پکښې لار وی او کله نه وی نو د دے وجه نه سُبُلًا ورپسے ذکر کړو۔ او فِيهَا ضمیر زمکے او غرونو هریو ته راجع کیدے شی ځکه چه زمکه کښې هم فراخے لارے دی او غرونو کښې هم فراخے لارے دی۔ دویمه معنٰی غوره ده ځکه چه فِج د غرونو په مینځ کښې فراخے لارے ته ویلے کیږی۔ او يَهْتَدُونَ نه مراد دا چه خپل مقصد وتو ته اورسی او دویمه معنٰی دا چه هدایت او مولٰی د دے دلیلونو په سبب سره۔ او دا ﷺ په سورة نحل ۵ کښې هم ذکر دی په اول دلیل کښې د تربیت او رزق مواد ئے ذکر کړل آسمانو نه زمکه او اوبه۔ او په دویم دلیل کښې د رزق د طلب د پاره ئے انعامات ذکر کړل چه په ګرځیدلو سره زمکه نه خوږی او لارے پکښې دی۔

۳۲:۔ دا پنځم دلیل عقلی دے او په دویمه جمله کښې زجر دے اعراض کوونکو ته۔ او د آسمان حفاظت په ډیرو طریقو سره دے د پریوتلو نه محفوظ دے لکه سورة حج ۶۵ او سورة فاطر ۴۱ کښې۔ او د شیاطینو نه محفوظ دی لکه سورة صافات ۷ او سورة حجر ۱۷ کښې دی۔

وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ
او خاص الله تعالى هغه ذات دے چه پیدا کړے یې شپه او ورځ

وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ فِي فَلَكٍ
او نمر او سپوږمۍ، دا ټول په ځائے د چاپیره ګرځیدلو کښې

يَسْبَحُونَ ﴿٣٣﴾ وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن
لامبو وهي. او نه دے ورکړے موږ هیڅ بشر لره

قَبْلِكَ الْخُلْدَ ۖ أَفَإِن مِّتَّ فَهُمُ
ستا نه مخکښ همیشګیري، آیا نو که ته مړ شوے نو دوی په

او د شرک او د تورو ګناهونو نه محفوظ دی یعنی آسمانونو کښ ګناهونو والا نشته۔ او ایات د آسمانونو نمر، سپوږمۍ، ستوری او د هغې انقلابات او شپه او ورځ دی او هم دا رنګ په سورة یوسف ۱۰۵ کښ دی۔ او ورپسے آیت د هغې ذکر دے۔

۳۳:۔ دا شپږم دلیل عقلی دے۔ تیر شوی دلیلونه د مکانونو د قبیلے نه وو او دا دلیل په زمانو او د هغې د اسبابو سره متعلق دے دا رنګ هغه علوی او سفلی دلیلونه وو او دا دلیل وسطی دے۔ خَلَقَ دَ لَيْل او نَهَار ئے مخکښ ذکر کړو چه معلومه شی چه د شپے او ورځے بیان اُلٹ د نمر کار نه دے نمر او سپوږمۍ صرف علامات دی۔ كُلٌّ نه مراد نمر، سپوږمۍ او ستوری دی او د هغے په سبب سره شپه او ورځ ته هم نسبت کیدیشی۔ امام قرطبی ذکر کړے دی چه فَلَكٍ نه مراد مدار دے (یعنی ځائے د ګرځیدلو چاپیره) او دا افلاک د آسمانونو د لاندے دی یعنی د هریو نمر، سپوږمۍ او ستورو د پاره د آسمانونو د لاندے جدا جدا د ګردش ځایونه دی۔ او په کوم آیاتونو کښ چه ذکر کړے دی چه نمر، سپوږمۍ په آسمان کښ دی نو مراد تری نه طرف د آسمان دے۔ يَسْبَحُونَ، سبح په اصل کښ په اوبو کښ لامبو وهلو ته وئیلے شی نو اشاره ده چه افلاک پشان د سمندر دے او نمر، سپوږمۍ

الْخٰلِدُوْنَ ﴿۳۴﴾ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ط
همیشه وی۔ هر ساه والا څکونکے د مرګ دے،
وَنَبْلُوْكُمْ بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً ط وَاِلَيْنَا
او ازمیښت کوو موږ په تاسو پانډے په سختئ او په آرام سره په ازمیښت (امتحان) او خاص موږ ته به
تُرْجَعُوْنَ ﴿۳۵﴾ وَاِذَا رَاٰكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا
تاسو راګرځولے شئ۔ او هر کله چه اووینی تا لره کافران

ستوری او د هغے په واسطه سره شپه او ورځ په هغے کښں د مهیا تو
پشان لامبو وهی په آسانه طریقے سره رفتار کوی۔
۳۴:۔ ربط:۔ د مخکښں سره دا دے چه د آسمانونو زمکو وغیره انقلابات
په اختیار د الله تعالیٰ کښں دی نو د انسانانو مرګ او ژوند هم د
هغه په اختیار کښں دے۔
په دے آیت کښں رد دے په قول د مشرکانو پانډے چه دا شاعر دے
موږ د دهٔ د مرګ انتظار کوو لکه سورة طور ۳۰ کښں دی۔ حاصل
د جواب دا دے چه تاسو هم همیشه نشئ پاتے کیدلے نو ولے د دهٔ
مرګ ته خوشحالیږئ او دا رنګ په دے آیت کښں تسلی ده رسول الله
صلی الله علیه وسلم ته که ته وفات شوے نو الله تعالیٰ به ستا د دین
حفاظت کوی لکه چه مخکښی انبیاء وفات شول نو الله تعالیٰ د هغوی
د دین حفاظت کړے دے۔ او خُلْدَ نه مراد همیشه ژوند دے
چه مرګ پرے نه راځی نو سوال په باره د عیسیٰ علیه السلام کښں
نشی کیدلے ځکه چه هغه ژوندے دے لیکن پس د نزول د آسمان
نه به بیا مړکیږی نو هغه لره خُلْدَ نه دے ثابت شوے۔ او بعض
مفسرینو د خلد نه اوګد والے د ژوند اراده کړیدے او عیسیٰ علیه
السلام د هغے نه خاص کړے شوے دے په بل دلیل سره۔
۳۵:۔ دا متعلق دے د تیر شوی آیت سره یعنی د مرګ نه هیڅ ساه
والا نشی بچ کیدے دا سے سورة آل عمران ۱۸۵ کښں دی۔ نو آیت
انبیاؤ اولیاؤ ټولو ته شامل دے۔ او د مرګ نه وړاندے د خیر

اِنۡ یَّتَّخِذُوۡنَكَ اِلَّا هُزُوًا ؕ اَهٰذَا

نو نه نیسي تا لره مګر توقي (رواني) آیا دا

الَّذِیۡ یَذۡكُرُ اٰلِهَتَكُمۡ ۚ وَهُمۡ بِذِكۡرِ

هغه سړے دے چه بدي وائي ستاسو د معبودانو او حال داچه دوي د یاداشت

الرَّحۡمٰنِ هُمۡ كٰفِرُوۡنَ ﴿۳۶﴾ خُلِقَ الۡاِنۡسَانُ

د رحمان نه (په توحید سره) دوي ئے انکار کوي - پیدا کړے شویدے انسان

مِنۡ عَجَلٍ ؕ سَاُورِیۡكُمۡ اٰیٰتِیۡ

د تادئ نه ، زر دے چه او به ښائم تاسو ته نخے خپلے

او شر د راتللو حکمت ئے بیان کړو چه خیر او شر سره ستاسو امتحان کوي چه شکر په خیر او صبر په شر باندے کوئ او که نه ؟ د شر نه مراد تکالیف مصیبتونه مرضونه وغیره دي او خیر نه مراد نعمتونه وسعت د رزق ، صحت د بدن مال اړئ او دا رنګ معصیت او طاعت حلال او حرام ، هدایت او ضلال نه هم شامل دے -

۳۶ :- په دے آیت کښ زجر دے د استهزاء په رسول پورے - او مراد د كَفَرُوْا نه عنادي کافران دي -

يَذْكُرُ ، نه مراد په عیب او نقصان سره یادول دي ، مراد تریته کنځل کول دي او دا د مشرکانو د طرف نه افتراء ده په رسول باندے لکه اوس زمانه کښ هم د توحید بیانونکو په باره کښ مشرکان وائي چه دوي اولیاؤ او بزرګانو ته کنځل کوي یعنی بیان د توحید او د شرک د دوي په نیز باندے کنځل دي -

ذِكْرُ الرَّحْمٰنِ ، مراد د دے نه قرآن دے یا مسئله د توحید ده - یعني ذکر د الله تعالی په طریقه د توحید سره - او په لفظ رَحْمٰن کښ اشاره ده چه ټول نعمتونه د طرف د هغه نه دي او دوي د هغه ناشکري کوي -

فَلَا تَسْتَعْجِلُوْنِ ﴿٣٧﴾ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى

نو په تادي ئې مه غواړئ . ‏ او دوی وائي چه کله به وي.

هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٣٨﴾ لَوْ يَعْلَمُ

دا وعده ‏ که ‏ تاسو ‏ رښتني يئ . که چېرې خبر وې

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا حِيْنَ لَا يَكُفُّوْنَ

کافران (په تفصيل) ‏ د هغه وخت ‏ چه ‏ نه به شي ايړولے

عَنْ وُّجُوْهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ

د ‏ مخونو خپلو نه ‏ اور ‏ او نه د ‏ شاګانو خپلو نه

وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿٣٩﴾ بَلْ تَاْتِيْهِمْ

او نه به د دوی سره مرسته کيدی شي . ‏ بلکه راځي به دوی ته

٣٧:- په دے کښ زجر دے په استعجال (زر غوښتل) د عذاب سره.
او مراد د خلق د عجل نه دا دے چه د انسان په طبيعت کښ عجلت
پيدا کړے شوے دے لکه په سورة روم ٥٤ کښ دی بناء په يو
تفسير سره او په سورة اسراء ١١ کښ دی . او دا رنګ حديث دے
چه النساء خلقت من ضلع ايسر يعني د زنانو په خلقت او طبيعت
کښ کوږوالے دے پشان د ګيڼړے پوښتۍ چه نيغول يې غواړے نو
ماته به شي او يا به هميشه کږه وي .
اٰيٰتِيْ : مراد د دينه نمونے د عذاب دی او دليلونه د قدرت د
الله تعالٰی دی په انتقام اخستلو د منکرينو نه .
٣٨:- په دے آيت کښ زجر دے او بيان دے د استعجال چه
مخکښې آيت کښ تير شوے دے .
مَتٰى مراد په دے سره استبعاد او انکار کول دی د قيامت او عذاب نه.
٣٩:- په دے آيت کښ الزامي جواب دے يعني عذاب چه راشي نو
بيچ کيدے ترينه نشئ نو ولے يئ په تلوار سره غواړئ . او په ذکر
د وجوه او ظهور کښ اشاره ده چه اور د جهنم به په دوی باندے

بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ

ناګهانه نو حیران به کړي دوی لره پس طاقت به نه لري

رَدَّهَا وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٤٠﴾ وَلَقَدِ

د واپس کولو د هغې او نه به دوی لره مهلت ورکیدلی شي. او یقیناً

اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ

توقې کړې شوې دي په ډیرو رسولانو پورې ستا نه مخکښې

فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم

نو راګیر کړو هغه چا لره چه مسخرې یې کولې د دوی نه

مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٤١﴾ قُلْ

هغه عذاب چه دوی ورپورې توقې کولې. ته اُووایه

د هر طرف نه احاطه کړې وي - او جزاء د لَوْ شرطیه محذوف ده یعني لَمَا اسْتَعْجَلُوا الْعَذَابَ (نو عذاب به یې په تلوار سره نه غوختلې).

وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ. یعني د دوی معبودان (باطله) او د دوی د لې د دوی سره هیڅ امداد نشي کولې او الله تعالیٰ خو ورسره امداد نه کوي.

سلگ :- د هم متعلق دے د مخکښې آیت سره چه دوی لره د عذاب د راتلو مقرر تاریخ او وخت نه دے معلوم بلکه ناګهانه به راځي.

تَأْتِيهِمْ، ضمیر قیامت ته راجع دے یا اور د جهنم ته.

فائده :- د عذاب سره مناسب نصرت دے د هغې د دفع کولو د پاره. او د راتلو د عذاب سره مناسب مهلت دے د هغې نه د بچ کیدلو د پاره - د دے وجې نه په اول آیت کښې يُنصَرُونَ او په دویم آیت کښې يُنظَرُونَ ذکر کړے شو.

سلگ :- دے آیت کښې زجر دے په استهزاء په رسولانو پورې او تسلي ده نبي صلی الله علیه وسلم ته او دا سے په سورة انعام سلا کښې هم تیر شویدي او سورة رعد ۳۲ کښې په لږ فرق سره دے.

مَنْ يَّكْلَؤُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ مِنَ
څوک ساتنه کوي ستاسو د شپې او د ورځې د
الرَّحْمٰنِ ؕ بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ
رحمان د عذاب نه، بلکه دوی د یاداشت د رب خپل نه
مُّعْرِضُوْنَ ﴿۴۲﴾ اَمْ لَهُمْ اٰلِهَةٌ تَمْنَعُهُمْ
مخ اړونکی دي. آیا دوی لره معبودان شته چه او به ساتي دوی لره
مِّنْ دُوْنِنَا ؕ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَ
سوا زمونږ نه، وس نه لري د امداد
اَنْفُسِهِمْ وَلَا هُمْ مِّنَّا يُصْحَبُوْنَ ﴿۴۳﴾
د ځانونو خپلو او نه د دوی سره زمونږ د طرف نه ملګرتیا کیدی شي.

۴۲:- د دے آیت په آخره جمله کښ زجر دے په اعراض د توحید او د قرآن نه سره د بیان د دیته چه د الله تعالیٰ د عذاب نه هیڅوک ساتونکے نشته.

مِنَ الرَّحْمٰنِ، اوله معنیٰ دا ده د عذاب د رحمان نه یعنی مضاف پټ دے- دویمه معنیٰ دا ده چه مِنْ کله په معنیٰ د بدل سره راځي لکه سورۃ زخرف ۶۰ کښ یعنی بدل د رحمان ذات نه- او دا معنیٰ ابن کثیر کړیده لیکن د بدل تفسیر ئے په غیر سره کړیدے

۴۳:- دا بیان د مَنْ يَّكْلَؤُكُمْ دے- په طریقه د استفهام انکاري سره یعنی ستاسو آله ستاسو ساتنه کولے نشي- بیا رد دے په شرک باندے په نفي د شرک فی التصرف سره- تو دویمه جمله علت دے د پاره د اولے جملے او ضمیر د لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ او اَنْفُسَهُمْ راجع دے اٰلِهَة ته او دویم هُمْ ضمیر راجع دے مشرکینو یا الهه ته-

يُصْحَبُوْنَ د دے دوه معانے دي اوله معنیٰ دا چه دوی لره زمونږ د عذاب نه پناهي نشي ورکیدے- او ضمیر د هُمْ راجع دے مشرکانو ته- دویمه معنیٰ دا ده چه دوی سره ملګرتیا په مدد کولو سره)

بَلْ مَتَّعْنَا هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰى

بلکه فائدے د دنیا ورکړې دي مونږ دوی ته او مشرانو د دوی ته تر دې پورے

طَالَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ۗ اَفَلَا يَرَوْنَ اَنَّا

چه اوږده شول په دوی باندے عمرونه آیا دوی نه ګوري چه راتلل کوو مونږ

نَأْتِي الْاَرْضَ نَنْقُصُهَا مِنْ اَطْرَافِهَا ۗ

وطن د دوی ته چه کموو هغې لره د غاړو د هغې نه،

اَفَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿۴۴﴾ قُلْ اِنَّمَآ اُنْذِرُكُمْ

آیا پس دوی په زور آور شي - ته اووایه یقینًا ویره درکوم تاسو ته

بِالْوَحْيِ ۖ وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَآءَ

په وحی سره او نه آوري کوڼ بلنے لره

اِذَا مَا يُنْذَرُوْنَ ﴿۴۵﴾ وَلَئِنْ مَّسَّتْهُمْ

کوم وخت چه دوی لره ویره ورکیږي - او که اورسی دوی ته

نشی کیدے - په اوله معنیٰ ضمیر راجع دے مشرکانو ته او په دویمه معنیٰ راجع دے الهه ته -

۴۴ :- په دے آیت کښ سبب د استهزاء او د انکار ذکر کوی یعنی سره د شرک کولو او انکار کولو د رسول نه دوی ته د دنیا ډیر نعمتونه ورکړے شویږی او عمرونه ئے ډیر په شرک او د دنیا په مزو کښ تیر شول نو د غفلت د وجے نه په استهزاء د رسولانو کښ اخته شول - اَفَلَا يَرَوْنَ ، په یکښ تخویف د منکرینو ته مراد دا دے چه الله تعالیٰ د دوی په ملک باندے نبی صلی الله علیه وسلم او اسلام ته غلبه او تسلط تدریجًا ورکوی یا د دوی په ملک باندے لږ لږ عذابونه راځی نو دوی په کله غالب شی - او داسے په سورة رعد ۴۱ کښ دی او د دے آیت تفسیر په سورة احقاف ۲۷ کښ دے -

۴۵ :- په دے آیت کښ زجر دے - بِالْوَحْيِ ، نه مراد قرآن دے -

وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ ، دا جواب سوال دے هر کله چه قرآن وحی ده نو

نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُولُنَّ

څه پکره د عذاب د رب ستا نه خامخا دوی وائی

يٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا ظٰلِمِينَ ﴿۴۶﴾ وَنَضَعُ

هائے تباهی ده زمونږه یقینًا مونږ ظالمان وو۔ او کیږدو مونږ

الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ

تلې انصاف والا په ورځ د قیامت کښې نو ظلم به نشي کیدے

نَفْسٌ شَيْئًا ۖ وَإِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ

په هیڅ نفس باندې هیڅ قسم، او که چرته وی (عمل) په قدر د دانې

مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفٰى بِنَا حٰسِبِينَ ﴿۴۷﴾

د اوړی رابه اوړو هغې لره، او بس دی مونږ حساب کوونکی۔

په دوی باندې ددے اثر نه کوی جواب اوشو چه دوی د قرآنکریم نه کانړه دی۔

۴۶:- پدے آیت کښې تخویف دنیوی دے سره د زجر نه۔ نَفْحَةٌ، لږ خیز ته ویلې شی او یو حصې ته هم وائی۔

یعنی په عذاب سره به د دوی کونړوالے لرې شی او بیا به آرمانونه کوی لیکن فائده به نه ورکوی لکه چه د دے سورت په سك کښې ذکر شول۔

۴۷:- پدے کښې تخویف اخروی دے په ذکر د موازینو په وزن د عملونو سره او حساب سره۔

اَلْمَوَازِيْنَ۔ د اهل علمو یو قول دا دے چه د هر یو نوع د عملونو په جدا جدا میزان وی د دے وجے نه ئې جمع ذکر کړے ده۔

دویم قول دا دے چه میزان یو دے لیکن په اعتبار د موزوناتو سره جمع ذکر کړیده او د مخکښې آیاتونو په قرینه سره معلومیږی چه وزن د اعمالو د کافرانو به هم کیږی۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ الْفُرْقَانَ

او بېشکه ورکړي وو موږ موسٰی او هارون ته فرقان

وَضِيَآءً وَّذِكْرًا لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٨﴾ الَّذِيْنَ

او ډېره رڼا او یاداشت د پاره د متقیانو. هغه کسان

يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَهُمْ مِّنَ السَّاعَةِ

چه وېرېږي د رب خپل نه په حال د نه لیدلو کښ او دوی د قیامت نه

مُشْفِقُوْنَ ﴿٤٩﴾ وَهٰذَا ذِكْرٌ مُّبٰرَكٌ

هیبت زده دي. او دا یاداشت دے برکتونو والا

اَلْقِسْطَ. لفظ د ذوات حذف دے او دا صفت دے د موازین یا مفعول لهٗ دے - یعني لاجل القسط ( د پاره د انصاف قائم کولو )

حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ، د عربو په عرف کښ دا په مثال د لږ والي کښ ذکر کېږي او دا رنګ سورة لقمان ١٦ کښ هم ذکر دی او کله لفظ د ذرة په سورة النساء ٤٠ کښ ذکر دے.

٤٨: خلاصه:- د دے آیت نه تر ٩٢ پورے څلورم باب دے په دے کښ ذکر د اوولس انبیاؤ دے تفصیلاً د پاره د تذکیر د غافلانو د توحید نه په ذکر د احتیاج د هغوی او عاجزي کول د هغوی الله تعالٰی ته او ذکر د حال د انبیاؤ اجمالاً په ٩١ کښ بیا یوولسم زجر دے په ٩٣ کښ.

تفسیر:- په دے آیت کښ دلیل نقلي دے د موسٰی او هارون علیهما السلام نه او تفصیل یې په سورة طٰهٰ کښ تیر شوے د دے وجے نه دلته یې مختصر ذکر کړو. د کتاب الٰهي کمال دا دے چه په هغې کښ دلیلونه د پاره د فرق د حق او باطل وي. نو هغې ته فرقان وائي په هغې کښ ښکاره مسائل او احکام وي نو هغې ته ضیاء وائي او په هغې کښ مواعظ او امثال او واقعات وي د پاره د تثبیت د ایمان والو او هغې ته ذکر وائي او دا درے صفات په تورات کښ هم وو.

لِلْمُتَّقِيْنَ، تخصیص د دوی د وجے د انتفاع اخستلو نه دے.

٤٩:- دا هغه صفات د متقیانو دي چه د هغې په وجه د الله تعالٰی د کتاب نه ذکر

أَنزَلْنَٰهُ ۚ أَفَأَنتُمْ لَهُۥ مُنكِرُونَ ﴿٥٠﴾ وَلَقَدْ

نازل کړے مونږ دے، آیا تاسو دا ناآشنا گڼړئ۔ او یقینًا

ءَاتَيْنَآ إِبْرَٰهِيمَ رُشْدَهُۥ مِن قَبْلُ

ورکړے وه مونږ ابراهیم علیه السلام ته پوهه د دین د مخکښ نه

وَكُنَّا بِهِۦ عَٰلِمِينَ ﴿٥١﴾ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ

او وُو مونږ د دهٔ په حال باندے پوهه لرونکی۔ کوم وخت چه اُوئیل ئے پلار

حاصله وی۔ خَشْیَة، ویره د زړه ده سره د تعظیم د مخشی نه رچه د چا نه ویره کوی) او اشفاق، نرمی د زړه ده د وجے د ویرے او د محبت او خیرخواهئ نه چه د هغے اثر په اندامونو باندے ښکاره کیږی۔ بِالْغَیْبِ نه مراد دا دے چه د خلقو نه غائب او پټ وی نو ویره کوی د الله تعالیٰ نه او ښکاره کښ خو ضرور کوی۔ دویم مراد دا دے چه الله تعالیٰ ئے لیدلے نه دے او حال دا چه د هغه نه ویره کوی۔

ﻣﻨﻪ ۵۰۔ دا ترغیب دے قرآن کریم ته مطلب دا دے لکه څه رنګ چه تورات د ذکر د پاره نازل کړے شوے وُو نو قرآن هم د ذکر د پاره نازل شوے دے نو ولے د دینه انکار کوئ۔

ﺳﻠﻪ ۵۱۔ د دے آیت نه تر ۷۳ پورے دلیل نقلی دے د ابراهیم علیه السلام نه د پاره د تن کیر د غافلینو د توحید نه په بیان د مجاهدے کولو د ابراهیم علیه السلام په مقابله د مشرکینو کښ او صبر کول د هغه۔ د رُشْدَهٗ نه مراد نبوت دے او اٰتَیْنَآ کښ اشاره ده چه دے په حصول د رشد کښ الله تعالیٰ ته محتاج وُو۔ او مِنْ قَبْلُ نه مراد دا دے چه د موسیٰ او هارون علیهما السلام نه مخکښ۔ یا د رشد نه مراد ایمان او توحید دے او مِنْ قَبْلُ نه مراد مخکښ د بالغ کیدلو نه۔ او د دے نه معلوم شوه چه هغه قصّے چه بعض مفسرینو لیکلے دی چه ابراهیم علیه السلام په غار کښ وُو او بیا را ووتلو او رب ئے نه پیژندلو نو کله به ئے ستوری ته رب وئیلو او کله سپوږمئ او نمر ته نو دا ټول اسرائیلیات دی او د دے آیت نه خلاف دی۔

وَقَوْمِهٖ مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ الَّتِيْٓ

او قوم خپل ته څه دلیل دے دَ دے شکلونو دَ پـه عبادت کولو باندے

اَنْتُمْ لَهَا عٰكِفُوْنَ ﴿۵۲﴾ قَالُوْا وَجَدْنَآ

چه تاسو دے لره همیشه عبادت کوئ ۔ دوی اووئیل موندلی دی. موږ

اٰبَآءَنَا لَهَا عٰبِدِيْنَ ﴿۵۳﴾ قَالَ لَقَدْ كُنْتُمْ

مشران خپل دوی لره عبادت کوونکی. اووئیل ابراهیم یقیناً وئ

اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۵۴﴾

تاسو او مشران ستاسو پـه ګمراهئ ښکاره کښ.

قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ اَمْ اَنْتَ

دوی اووئیل آیا تا موږ ته حق راوړے دے او که ته یئ

ف۵۲ :- پـه دے آیت کښ بیان دَ رشد دے چه هغه رد کول دی پـه شرک باندے اګرچه هغه پـه پلار کښ موجود وی۔ دَ مَا هٰذِهٖ، نه مراد تپوس دَ دلیل او دَ علت دَ عبادت کولو دَ هغوی دے یا مراد تربینه بیان دَ حقیقت دَ هغوی دے چه دا مصنوعات او مخلوقات دی حقدار دَ بندګئ نشی کیدلے۔ تَمَاثِیْل، جمع دَ تمثال ده هغه څیز ته وائی چه جوړ کړے شی مشابه دَ یو مخلوق سره او قوم دَ ابراهیم علیه السلام څه تماثیل دَ ستورو جوړ کړے وو او څه دَ نیکانو بندګانو۔ عٰکِفُوْنَ، عکوف پـه معنیٰ دَ لازم نیول دَ یو څیز دے او توجه کول هغه ته پـه طریقه دَ تعظیم او دَ بندګئ سره۔

ف۵۳ :- یعنی دوی پـه شرک کښ صرف تقلید کوؤ دَ مشرانو خپلو او هیڅ دلیل ورسره نشته۔ او دا زوړ دلیل دے دَ مشرکانو پـه هره زمانه کښ۔

ف۵۴ :- لفظ دَ اَنْتُمْ دلیل دے چه پـه تقلید دَ باطل سره مقلد هم ګمراه شو نو دا سبب دَ نجات نه دے ۔ ابن کثیر وئیلی دی حاصل دا دے چه ستاسو دَ آباؤ نه هم دلیل غواړو لکه چه ستاسو نه غواړو۔

مِنَ اللّٰعِبِيْنَ ﴿٥٥﴾ قَالَ بَلْ رَّبُّكُمْ رَبُّ

د ټوقو کوونکو نه - دهٔ اوویل بلکه رب ستاسو رب

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الَّذِيْ فَطَرَهُنَّ ۖ

د آسمانونو او د زمکے دے هغه ذات چه دا ئے د اول نه پیدا کړیدی

وَاَنَا عَلٰى ذٰلِكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿٥٦﴾

او زه په دے باندے تاسو ته د خبردرکوونکو نه یم.

وَتَاللّٰهِ لَاَكِيْدَنَّ اَصْنَامَكُمْ بَعْدَ

او قسم په الله تعالیٰ خامخا چل جوړومه ستاسو معبودانو ته روستو د دینه

اَنْ تُوَلُّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿٥٧﴾ فَجَعَلَهُمْ جُذٰذًا

چه اوګرځئ تاسو شا کوونکی. پس کړل ئے هغه ټکړے ټکړے

۵۵ :- یعنی آیا ته په دلیل سره خبرے کوے او که خبرے عبث (بے دلیله) کوے - یعنی ته مونږ ته دلیل اوښایه.

۵۶ :- یعنی ما سره دلیل دے په توحید د الله تعالیٰ یو دا چه هغه مالک د آسمانونو او د زمکے دے - دویم دا چه خالق د دوی دے - او توحید د ربوبیت مستلزم دے توحید د الوهیت لره شرعًا او عقلًا - شٰهِدِیْنَ ته مراد بیان کوونکے په دلیل سره.

۵۷ :- ابراهیم علیه السلام د دعوت د ژبے نه بعد انتقال اوکړو جهاد عملی ته د وجے د ډیر وثوق (اعتماد) نه په الله تعالیٰ باندے او د وجے د ډیر غیرت نه په دین باندے - اویل سبب دا هم کیدے شی چه قوم د ابراهیم علیه السلام دعوت ته هیڅ توجه نه کوله نو دا عمل ئے د دے وجے نه اوکړو چه هغوی د دهٔ طرف ته توجه اوکړی نو دے به ئے په توحید باندے بنهٔ پوهه کړی - لکه روستو آیت کښ د لَعَلَّهُمْ اِلَيْهِ يَرْجِعُوْنَ، یوه توجیه دا ده - او دا قسم تالله ابراهیم علیه السلام د ځان سره په پټه باندے وئیلے وو او بعض کسانو د هغوی اوریدلے وو.

مُدْبِرِیْنَ ، نه مراد دا دے چه تاسو خپلے میلے ته لاړ شئ - او د دغه

إِلَّا كَبِيرًا لَّهُمْ لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ ﴿٥٨﴾

بغیر دَ غټ دَ هغوی نه دَ دے دَ پاره چه دوی هغه ته را اوګرځی ۔

قَالُوا مَن فَعَلَ هَٰذَا بِآلِهَتِنَا إِنَّهُ

اوئیل دوی چا کړیدے دا کار زمونږ دَ معبودانو سره یقینًا دے

لَمِنَ الظَّالِمِينَ ﴿٥٩﴾ قَالُوا سَمِعْنَا فَتًى

دَ ظالمانو نه دے ۔ دوی اوئیل اوریدلے دی مونږ دَ یو ځوان نه

يَذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهُ إِبْرَاهِيمُ ﴿٦٠﴾ قَالُوا

چه دَ دوی بدی ځی وئیله وئیلے کیږی هغه ته ابراهیم ۔ اوئیل دوی

دَ معبودانو ستا سو خالی شی ځکه چه دوی خپل سالانه جشن یا عرس له تلل او ابراهیم علیه السلام تر بیه پاتے شو په عذر دَ سقیم سره ۔

۵۸ :۔ دَ دے واقعے بعضے حصه په سورة صافات کښ ذکر شوے ده ۔

کَبِیرًا ، کښ اشاره ده چه دوی خپل معبودان په تفاوت سره جوړ کړیوو بعضے واړه او بعضے غټ یا دا چه بعضے ئے دَ ډیر کارونو ذمه وار کنټرل او بعضے ئے دَ غټو حاجتو پوره کوو نکو کنټرل ۔

لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ ، یو معنی دا چه دا کار ئے دَ دے دَ پاره اوکړو چه دوی دَ ابراهیم علیه السلام دین ته یا دَ هغه دعوت ته رجوع اوکړی او هغه ته غوږ کیږدی ۔ بنا په دے دا متعلق دے دَ جعلهم سره ۔

دویمه معنی دا چه دا لوے ئے دَ دے وجے نه پریخودلو چه دوی دغه لوے ته رجوع اوکړی او دَ هغه نه تپوس اوکړی نو دَ دوی جهل به ښه ښکاره شی او دا پدے دا متعلق دے الا کبیرا سره ۔)

۵۹ :۔ دوی دَ خپلے عقیدے باطلے په وجه مؤحد ته ظالم اوئیل او تفتیش او بحث ئے شروع کړو دَ دے عمل کوونکی ۔

۶۰ :۔ دا جواب دَ هغه کسانو دے چه هغوی دَ ابراهیم علیه السلام نه قال لاکیدن اوریدلے وو ۔ او یَذْکُرُهُمْ نه مراد هم دغه قسم دے په لاکیدن سره ۔ یا دا جواب دَ ټولو دَ طرف نه دے چه ابراهیم

فَأْتُوا بِهِ عَلَىٰ أَعْيُنِ النَّاسِ لَعَلَّهُمْ
(نو راولئ هغه مخامخ د سترګو د خلقو د پاره د دے چه دوی)
يَشْهَدُونَ ﴿٦١﴾ قَالُوا أَأَنتَ فَعَلْتَ هَٰذَا
(ئے تماشه اوکړی - دوی اوئیل آیا تا کړیدلے دا کار)
بِآلِهَتِنَا يَا إِبْرَاهِيمُ ﴿٦٢﴾ قَالَ بَلْ فَعَلَهُ
(زمونږ د معبودانو سره اے ابراهیمه - اوئیل هغه بلکه کړے دے)
كَبِيرُهُمْ هَٰذَا فَاسْأَلُوهُمْ إِن كَانُوا
(لوے د دوی نه چه دا دے پس تپوس اوکړئ د دوی نه که)
يَنطِقُونَ ﴿٦٣﴾ فَرَجَعُوا إِلَىٰ أَنفُسِهِمْ
(خبرے کولے شی - پس اوګرځیدل دوی د خپلو ځانونو ته (په سوچ کولو سره))

علیه السلام د دے معبودانو عیبونه او نقصانونه ذکر کول نو معلومیږی چه دا کار به هغه کړے وی۔

بَلْ كَبِيرُهُمْ نه مراد ننځل کول او عیبونه بیانول دی۔ او فَتًى، دلیل دے چه ابراهیم علیه السلام د ځوانئ په عمر کښ وو یا دا چه دا کار د قوت او زور والو دے۔

۶۱ :- يَشْهَدُونَ نه مراد شهادت د خلقو دے د پاره د اثبات د دے دعوے یعنی هغوی هم په خپل قانون کښ د دعوے د ثبوت د پاره ګواهی لازم ګنړله لکه چه شرعًا هم دا حکم دے۔ یا مراد دا دے چه دا خلق د دهٔ سزا ته حاضر شی او تماشه اوکړی چه عبرت واخلی او دا مقصد وو د ابراهیم علیه السلام لکه چه مخکښ ذکر شول۔

۶۲ :- اول تپوس د هغه نه د دے وجے نه کوی که دے اقرار اوکړی نو شهادت ته به حاجت رانشی ځکه چه مدعیٰ علیه په اقرار سره نیولے کیږی۔

۶۳ :- حدیث د صحیحین او ترمذی کښ ذکر شویدی چه دا لفظ د ابراهیم علیه السلام د کذباتو (یعنی معاریض او توریه) نه دے۔ یعنی د دوه معاتے

# فَقَالُوْٓا اِنَّكُمْ اَنْتُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۶۴﴾

| نو اوئیل دوی یقیناً | تاسو | ظالمان یئ ۔ |
|---|---|---|

لری یو معنیٰ ظاهری دَ مخاطبینو دَ فهم مطابق او بله معنیٰ دَ متکلم دَ مراد موافق او داسے کلام کذب (دروغ) نه وی ځکه دروغ گناه ده او انبیاء علیهم السلام دَ گناهو نو نه پاک دی ۔ نو دَ کذب تعبیر په دے حدیث کښ دَ راوی دَ طرف نه دے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه نه دے لکه چه دا قول امام رازی کړے دے او دے نه روایت بالمعنیٰ وئیلے کیږی ۔ یا دَ کذب اطلاق په اعتبار دَ ظاهر سره دے فقط مجازًا نه په معنیٰ حقیقی سره ۔ دلیل په دے باندے قول دَ ابراهیم علیه السلام دے خپلے بی بی ته روستو دَ قول دَ هغه نه (انك اختی) اختی فی کتاب الله یا فی دین الله ۔ او په دے جمله کښ کثیر توجیهات دی. اوله توجیه چه فعل دَ کبیرهٔ معلق او مشروط کړے دے په نطق دَ نورو معبودانو سره او شرط ئے روستو ذکر کړے دے دَ پاره دَ توریے کولو او هغوی خو دَ نطق نه عاجز دی نو شرط موجود نه شو ۔ نو په دے کښ حجت دے دَ پاره دَ رد دَ شرک دَ هغوی او په ضمن دَ دے کښ اقرار دے په ځان باندے چه دا ما کړے دے ۔ دویمه توجیه دا ده چه بَلْ په معنیٰ دَ استفهام دے یعنی آیا دا کړیدے دے غټ ۔ نو هم ضمنًا اعتراف دے ۔ دریمه توجیه دا ده چه فاعل دَ فعله محذوف دے او داحذف په غیر دَ قائم مقام نه جائز دے په نیز دَ کسائی باندے ۔ او دَ کَبِیْرُهُمْ نه دَ سره جمله شروع ده ۔ څلورمه توجیه ۔ کبیر نه مراد دَ ابراهیم علیه السلام په نیز الله تعالیٰ دے او دا قوم هم قائل وو په کبریا دَ الله تعالیٰ باندے لکه چه شعرانی په الیواقیت والجواهر کښ ذکر کړے دی یعنی دا کار الله تعالیٰ کړیدے (یعنی نبی په امر دَ الله تعالیٰ سره کړیدے ۔)

مسئله ۔ دَ دے نه مراد دا دے چه دوی دَ ځانو نو سره سوچ او فکر شروع کړو په شان دَ هغهٔ چا چه په بحث کښ دَ حجت نه عاجز شی او دَ خصم دلیل صحیح اوگڼری نو په ځان باندے ئے اقرار دَ ظلم او کړو ځکه چه شرک ظلم دے ۔ یا دَ الظالمون نه مراد کَ دوی دا دے چه تاسو دا معبودان بغیر دَ خوکیدار نه بریخودلے وو څوک حفاظت کوو نکے ئے نه وو دا ظلم دے ۔

ثُمَّ نُكِسُوا عَلَىٰ رُءُوسِهِمْ لَقَدْ عَلِمْتَ

بیا اړول شول په سرونو باندې (او وئیل ئې) یقینًا ته پوهیږې

مَا هَٰؤُلَاءِ يَنطِقُونَ ﴿٦٥﴾ قَالَ أَفَتَعْبُدُونَ

چه دوی خبرې نشي کولې - اووئیل ابراهیم آیا پس بندګي کوئ تاسو

مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكُمْ شَيْئًا وَلَا

سوا د الله تعالی نه د هغه چا چه نفع نشي درکولې تاسو ته هیڅ او نه

يَضُرُّكُمْ ﴿٦٦﴾ أُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُونَ مِن

نقصان دررسولې شي - بدګنړم زۀ تاسو او بندګي د هغه چا چه بندګي کوئ د هغوی

دُونِ اللَّهِ ۖ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾ قَالُوا

سوا د الله تعالی نه ، آیا پس عقل نه لرئ . اووئیل دوی

او مشهوره جمله ده - من لا یرد عن رأسه الفأس - کیف یدفع عن عابدیه البأس.
ترجمه :- څوک چه د ځان نه تبر نشي واپس کولې نو هغه به د خپلو عبادت کوونکو سختئ څه رنګ دفع کړي -

۶۵ :- دا شیطاني تسلط دے او عدم توفیق د ایمان دے چه روستو د پوهې نه په ضد او عناد کښې اودرېدل - او په کوز سرونو روانیدل کنایه ده د ضدن کولو نه یا د ملامتیا نه یا د حیرانتیا نه -

۶۶ :- هرکله چه دوی اقرار اوکړو چه دا معبودان خبرې نشي کولې نو ابراهیم علیه السلام په دوی باندې حجت او دلیل قائم کړو چه په نطق قدرت نه لري نو اختیار منډ د نفعې او ضرر هم نشي کیدے نو حقدار د عبادت نشي کیدے -

۶۷ :- اُفٍّ ، دا لفظ په اصل کښې استعمالیږي په وخت د لیدلو د ګندګئ خیزونو کښې نو بیا مستعملیږي په ګنده رباطلو) خبرو کښې یعنی د هغې نه په نفرت کولو او خفګان کولو او بیان ارګکیدلو کښې - او دلته مراد دا دے چه بیزاریم زۀ ستاسو نه او د بندګئ د هغه معبودانو نه چه تاسو د هغوی بندګي کوئ سوا د الله تعالی نه نو دا کلمه د براءت ده کنځل نه دی معبودانو نه لکه چه په سورة زخرف ۲۶ او سورة ممتحنه ۴ کښې دی.

حَرِّقُوْهُ وَانْصُرُوْٓا اٰلِهَتَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ

اوسیزئ دهٔ لره او بدل واخلئ دَ معبودانو خپلو که تاسو

فٰعِلِيْنَ ﴿٦٨﴾ قُلْنَا يٰنَارُ كُوْنِيْ بَرْدًا وَّسَلٰمًا

څهٔ کار کوئ۔ اوئیل مونږ اے اُوره شه ته یخ او برابر حال والا

عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ ﴿٦٩﴾ وَاَرَادُوْا بِهٖ كَيْدًا

په ابراهیم باندے - او کوشش اوکړو دوی دَ هغه دَ سیزلو

٦٨:۔ هرکله چه دلیل دَ پیش کولو نه عاجز شول بیا په ضد باندے شروع شول نو ابراهیم علیه السلام دَ قتل او دَ سوځولو مشوره ئے اوکړله لکه سورۃ عنکبوت ٢٤ کښ دی۔ او آخری فیصله ئے دَ هغه دَ سوځولو اوکړله او دیته دوی دَ خپلو معبودانو بدله اخستل وائی یعنی ابراهیم علیه السلام دَ دے معبودانو بے عزتی کړے ده نو مونږ دَ هغوی بدل اخلو۔ دا دیره بے عقلی دَ مشرکانو ده چه څوک ناصر ګنړی او بیا بخپله دَ هغه نصرت کوی او نصرت ته ئے محتاج ګنړی۔

اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ ، یعنی که څهٔ کار دَ ابراهیم سره کوئ نو صرف دا کار (سوځول) اوکړئ۔

٦٩:۔ حاصل دا چه دوی اُور بل کړو او دَ هغے دَ پاره به دوی خشاک اولرګی په ډیر محبت سره راوړل بلکه تن رونه به ئے کول که زمونږ فلانے حاجت پوره شی نو دَ ابراهیم دَ سوځولو دَ پاره به دومره مقدار لرګی راوړم لکه چه ابن کثیر لیکلے دی یعنی دا دوی دَ وجے دَ نصرت دَ خپلو آلهو لوے عبادت ګنړلو. لیکن الله تعالیٰ هغه اُور ته خطاب اوکړو او الله تعالیٰ خپل کلام هر څیز ته اوروے شی او دا دلیل دے چه دَ اسبابو تاثیر په اذن دَ الله تعالیٰ سره دے او په حدیث دَ صحیح بخاری کښ دی چه ابراهیم علیه السلام په هغه وخت کښ اوئیل حسبی الله ونعم الوکیل۔

وَّسَلٰمًا ئے ځکه اوفرمائیل چه دَ ډیر یخ کیدلو په وجه ابراهیم علیه السلام هلاک نشی۔

عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ ئے ځکه اوفرمائیل چه نورو خلقو باندے یخ نشی۔ او

فَجَعَلْنٰهُمُ الْاَخْسَرِیْنَ ﴿۷۰﴾ وَنَجَّیْنٰهُ

پس اوکرځولو موږ دوی لره تاوان والا ـ او بچ کړ موږ دے

وَلُوْطًا اِلَی الْاَرْضِ الَّتِیْ بٰرَكْنَا فِیْهَا

او لوط (اوبیل موږ دوی) هغه ملک ته چه برکات ایخي دي موږ په هغې کښ

لِلْعٰلَمِیْنَ ﴿۷۱﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ ؕ

خلقو لره ـ او او بخو موږ ده ته اسحق ،

مفسر آلوسی تفسیر روح المعانی کښ لیکلي دي ، حاصل یې دا دے چه داخو معجزه وه د ابراهیم علیه السلام او که پس د امت کښ د بعض صالحینو خلقو د پاره داسے حال پیښ اشي نو دا په د هغوی کرامت دی او څوک چه آواز کوی چه یا شیخ احمد یا رفاعی او اُور په لاس کښ اونیسی او نه سوځي نو دا شرک دے دا استدراج دے لکه چه د دجال نه به هم د دے په شان ډیر حالات ښکاره کیږی ـ او بعضے فریب کر په خپل لاس داسے مواد اولګوی چه اُور پرے اثر نه کوی او خلقو ته وائی دا زما کرامت دے لیکن دا دهوکه ده ـ

ف:- اَلْاَخْسَرِیْنَ ، پس دے وجه سره یې او فرمائیل چه دوی مالونه خرچ کړل او وخت یې هم خرچ کړو لیکن هغه ضائع شول او دا خسران او تاوان دے او سورة صافات ۹۸ کښ (الاسفلین) او فرمائیل ځکه چه دوی تکبر کړے وو او لفظ د یَزِفُّوْنَ په هغې دلیل دے نو هر کله چه پره شول نو ذلیل او سپک شول ـ

ف:- سورة عنکبوت ۲۶ کښ ذکر دی چه تاریخو کښ صرف لوط علیه السلام د ابراهیم علیه السلام سره د ایمان اعلان اوکړو ځکه دے آیت کښ د هغه نجات او هجرت یې د ابراهیم علیه السلام سره ذکر کړیو او د مبارکے زمکے نه مراد د شام زمکه ده ځکه چه د هغے دنیوی برکات باغونه فصلونه میوے ډیرے مشهورے دی او دینی برکات پکښ کثرت د انبیاؤ علیهم السلام دے او مقام د نزول د عیسٰی علیه السلام دے ـ

وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً ۖ وَكُلًّا جَعَلْنَا صَالِحِينَ ﴿۷۲﴾

او یعقوب زیاتی او دا ټول کړځولي وو موږ پوره نیکان۔

وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا

او کرځول موږ دوی امامان (د دین) چه بیان یې کوو د دین زموږ۔

وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَإِقَامَ

او وحی کړې وه موږ دوی ته د کولو د نیکو کارونو او د پابندۍ کولو

الصَّلَاةِ وَإِيتَاءَ الزَّكَاةِ ۖ وَكَانُوا لَنَا عَابِدِينَ ﴿۷۳﴾

د مونځ او د ورکولو د زکوٰة. او وو دوی موږ لره عبادت کوونکي۔

ﻫ۷۲:۔ په دې آیتونو کښې دلیل نقلي دے د اسحاق او یعقوب علیهم السلام نه، د هغوی عبدیت او احتیاج الله تعالیٰ ته زموږ د تذکیر د پاره یې ذکر کړے دے۔

نَافِلَةً، په اولاد کښې ولد الولد ته وائي یعنې زیاتي دے په اولاد صلبي باندے۔

جَعَلْنَا، یعنې دوی صالحیت کښې او په طاعت کولو کښې الله تعالیٰ ته محتاج دي نو معلومه شوه چه طاعت او قدرت د بنده په طاعت باندے دا ټول مخلوق د الله تعالیٰ دے۔

ﻫ۷۳:۔ په دے آیت کښې د هغوی عبدیت او الله تعالیٰ ته د هغې احتیاج یې ذکر کړے دے۔ او دلته مراد د امامت نه نبوت دے او معلومه شوه چه د امام فریضه دعوت دے دین د الله تعالیٰ ته۔

وَأَوْحَيْنَا، دا دلیل دے چه امام وي او که نبي وي او که ولي وي لیکن هغه هم مکلف وي په بندګۍ کولو او د الله تعالیٰ سره۔ په موافق د وحي سره۔ اَلْخَيْرَاتِ، ټول خصلتونه چه حُسن د هغې په وحي سره ثابت وي۔

وَإِقَامَ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءَ الزَّكَاةِ، کښې تخصیص بعد التعمیم دے د ډیر اهمیت د وجې نه ځکه چه دا هم په فعل الخیرات کښې داخل دي۔

عَابِدِينَ، کښې اشاره ده چه دوی د الله تعالیٰ د حکمونو امتثال کوونکي۔

وَلُوْطًا اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا وَّنَجَّيْنٰهُ

(او یاد کړئ) لوط ورکړے وو مونږ هغه ته پیغمبری او پوهه د دین او بچ کړے وو مونږ دۀ لره

مِنَ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ تَّعْمَلُ الْخَبٰٓئِثَ

د هغه کلی والو نه چه هغوی کول پلیت کارونه

اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمَ سَوْءٍ فٰسِقِيْنَ ﴿۷۴﴾

یقینًا دوی وو قوم د بدئ نافرمان۔

وَاَدْخَلْنٰهُ فِيْ رَحْمَتِنَا ۭ اِنَّهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۷۵﴾

او داخل کړو مونږ دۀ لره په خاص رحمت زمونږ کښ یقینًا دے وو د ډیرو نیکانو نه۔

وَنُوْحًا اِذْ نَادٰى مِنْ قَبْلُ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ

(او یاد کړئ) نوح علیه السلام کله چه فریاد ئے کړے وو (رب ته) د دے نه مخکښ نو قبول کړه مونږ دعا د هغه

فَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿۷۶﴾

نو بچ کړو مونږ دے او کورنئ د دۀ د غم لوی نه۔

عصیان او گناه ئے نه کوو۔ او په یکښ دعوے د سورت ته اشاره ده۔

سک :- په دے آیتونو کښ دلیل نقلی دے د لوط علیه السلام نه په احتیاج د هغه الله تعالیٰ ته د پاره د تنکیر د توحید۔ حاصل دا چه لوط علیه السلام په نبوت او علم او نجات او رحمت کښ الله تعالیٰ ته محتاج وو۔ خَبٰٓئِثَ ، نه مراد د لواطت استعمال دے او میلمنو پورے مسخرے کول او په کانړو ویشتل سره د شرک او کفر نه۔ قَوْمَ سَوْءٍ ، نه مراد دا سے قوم دے چه د بدئ او د گناه په کارونو کښ خاص وی۔ د نیک عمل کولو نه محروم وی۔ هر کله چه په اسے قوم کښ او سیدل هم د مؤمنانو د پاره مصیبت دے نو د هغے نه نجات ورکول د الله تعالیٰ نعمت دے۔

فٰسِقِيْنَ ، فسق د عقیدے او د عمل دواړو مراد دے۔

سک :- رَحْمَتِنَا نه مراد بچ کول د هغه عذاب نه دی کوم چه په هغه قوم باندے رالیږلے شوی وو او سبب د نجات صالحیت کامله دے۔ او صٰلِحِيْنَ مقابل د سوء او د فاسقین دے۔

سک :- په دے آیتونو کښ دلیل نقلی دے د نوح علیه السلام په احتیاج

وَنَصَرْنٰهُ مِنَ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا

او بدله واخستله مونږ دهٔ لره د هغه قوم نه چه دروغژن یې ګڼل

بِاٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمَ سَوْءٍ

آیاتونه زمونږ، یقینًا دوی وو قوم د بدئ

فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۷۷﴾ وَدَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ

نو غرق کړل مونږ دوی ټول په یو ځائے - او (یادکړئ) داؤد او سلیمان

اِذْ يَحْكُمٰنِ فِى الْحَرْثِ اِذْ نَفَشَتْ فِيْهِ

کله چه دوی فیصله کوله په باره د فصل کښې چه (د شپې) څرېدلې وے په هغې کښې

غَنَمُ الْقَوْمِ ۚ وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شٰهِدِيْنَ ﴿۷۸﴾

ګډې او بزے د یو قوم، او مونږ وو د هغوی په فیصله باندے خبر لرونکی۔

الی الله سره د پاره د تذکیر د توحید - او په دے آیت کښې تصریح ده چه نوح علیه السلام هم په حاجت او مصیبت کښې صرف الله تعالیٰ ته فریاد پیش کړیدے - او نادای په هغه ځائے کښې استعمالیږی چه نهایت عجز، ژړا او فریاد وی - او تفصیل د ندا د هغه په سورة قمر سنا او سورة نوح کښې دے - اَهْلَهٗ، کښې اشاره ده چه مؤمنان په هغه وخت صرف د دهٔ کورنئ او اولاد وو - کَرْبِ عَظِيْمٍ، نه مراد عذاب د غرق دے په لوے طوفان د اوبو کښې۔ یا تکذیب او تکلیفونه د طرف د قوم نه۔

ـــ ۱۔ مراد د نصرت نه انتصار او انتقام اخستل دی ځکه چه هغه قوم د دهٔ ډیره بے عزتی کړیوه او ډیر ظلم یې کړیوو نو ځکه د بدل اخستلو ذکر یې اوکړو۔ قَوْمَ سَوْءٍ، بدی او خرابی د عقیدے ده دلته فاسقین نه دے ویلے او قوم لوط سره ذکر کړے وو ځکه چه قوم لوط په ناکاره عملونو کښې هم اخته وو او قوم نوح داسے نه وو۔

ـــ ۱۔ په دے آیتونو کښې دلیل نقلی د داؤد او سلیمان علیهما السلام نه دے چه دوی په احکام تشریعیه کښې او معجزاتو کښې الله تعالیٰ ته محتاج وو۔ معلومه شوه لکه چه مخلوق الله تعالیٰ ته په امورِ تکوینیه کښې محتاج دے

فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ ۚ وَكُلًّا اٰتَيْنَا حُكْمًا

پس پوهه ورکړه مونږ دغه فیصلې سلیمان ته او هر یو لره ورکړه مونږ پیغمبري

وَّعِلْمًا ۫ وَّسَخَّرْنَا مَعَ دَاوٗدَ الْجِبَالَ

او پوهه د دین او تابع کړي وو مونږ سره د داؤد غرونه

يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ ؕ وَكُنَّا فٰعِلِيْنَ ﴿۷۹﴾

تسبیح یې ویله او مارغان هم او مونږ دا کار کوونکي وو.

نو په احکام شرعیو کښې هم الله تعالیٰ ته محتاج دی. نَفَشَتْ نفش په معنیٰ د څرېدلو دے په شپه کښې بغیر د راعي نه. کوم څاروي چه په فصل کښې د ورځې او څرېږي نو تاوان په څاروو والا باندے نشته (هر کله چه دا مالک د څاروو ورسره نه وي) او که د شپې او څرېږي نو تاوان په مالک د څاروو باندے شته اګرچه مالک ورسره نه وي او ابن جریر دا سې فیصله د قاضي شریح نه نقل کړې ده.

وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شٰهِدِيْنَ، دلیل دے چه الله تعالیٰ حاضر او ناظر دے. لِحُكْمِهِمْ، جمع په معنیٰ تثنیه سره ده یا پخپله معنیٰ سره ده ځکه چه مدعي او مدعا علیه پکښې داخل دي.

سوال:- یعنې داؤد علیه السلام اراده او کړه چه مالک د فصل ته تول ګډې بیزې ورکړي ځکه د ده ته معلومه شوه چه قیمت د هغې د فصل د قیمت سره برابر دے. او سلیمان علیه السلام فیصله او کړه چه مالک د فصل ته ګډې بیزے ورکړي چه هغه ترېنه فائده اخلي تر هغه وخت پورې چه مالک د ګډو بیزو د فصل تربیت او کړي تر دے پورې چه زوړ حالت ته اورسي او پس دے فیصله کښې د دواړو جانبو خیر او فائده وه. او دا سلیمان علیه السلام ته الله تعالیٰ او خودله د پاره د دے چه د ده فضیلت او علم پلار ته ښکاره شي نو هغه په خوشحاله شي ځکه چه پلار د اولاد په ترقۍ سره خوشحالېږي.

او داؤد علیه السلام خطا شوے نهٔ فیصله کښې ځکه چه هغه صرف اراده کړې وه فیصله یې لا نه وه کړے. بل دا چه که فیصله یې

وَعَلَّمْنٰهُ صَنْعَةَ لَبُوْسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُمْ

او خودلے وُ مونږ هغه ته جوړول دَ زغرو تاسو لره چه بچ ساتي تاسو

مِّنْۢ بَاْسِكُمْ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ ﴿۸۰﴾

دَ جنګ ستاسو نه پس آیا تاسو شکر کوونکي یئ

وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً تَجْرِيْ

او تابع کړې وه مونږ سلیمان لره هوا تیزه روانه به وه

بِاَمْرِهٖٓ اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ

په حکم دَ هغهٔ سره هغه ملک ته چه برکات اچولے دي مونږ په هغې کښ

کړے وی نو دا خطاء اجتهادی ده په اسے خطایئ سره یو اجر هم حاصلیږی او دا هم کیدے شي چه فیصله دَ داؤد علیه السلام صحیح وه لیکن الله تعالیٰ منسوخ کړه په فیصله دَ سلیمان علیه السلام سره او په نسخ کښ ډیر حکمتونه دی۔

وَكُلًّا اٰتَيْنَا حُكْمًا وَّعِلْمًا ، دا جمله دلیل دے چه فیصله دَ داؤد علیه السلام هم صحیح ده او که اجتهادی شي نو دا جمله دلالت کوی چه په خطاء اجتهادی سره دَ مجتهد په صفت دَ حکم او دَ علم کښ نقصان او عیب نه راځی۔

وَسَخَّرْنَا ، دلیل دے چه په دغه معامله کښ دَ داؤد علیه السلام په نبوت کښ هیڅ نقصان نه دے راغلے۔ او تسبیح دَ غرونو او مارغانو معجزه وه دَ داؤد علیه السلام او سخرنا او فاعلین دلیل دے چه معجزه فعل دَ الله تعالیٰ دے دَ انبیاء علیهم السلام اختیار پکښ نشته۔ او كُنَّا فٰعِلِيْنَ کښ اشاره ده دوام دَ تسخیر ته دَ هغوی په ژوند کښ۔

سنا:۔ په یکښ بله معجزه ذکر کړے ده لکه چه سورة سباء سنا کښ دی چه اوسپنه دهٔ ته نرمه کړے شوې وه بغیر په اور کښ ذکر مولو نه، دَ هغې نه به یئ زغرے او وسلے جوړولے۔ او په دے آیت کښ دلیل دے چه صنعت وحرفت سنت دَ انبیاؤ دے او دا رنګ دلیل دے

وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عٰلِمِينَ ﴿۸۱﴾ وَمِنَ

او وو مونږ په هر څیز پانډے علم لرونکی۔ (او تابع کړی وو مونږ) د

الشَّيٰطِينِ مَنْ يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ وَيَعْمَلُوْنَ

شیطانانو نه هغه څوک چه غوپے به ئے وهلے د هغه دپاره او کارونه به ئے کول

عَمَلًا دُوْنَ ذٰلِكَ وَكُنَّا لَهُمْ حٰفِظِينَ ﴿۸۲﴾

کارونه د دیه سوا۔ او وو مونږ دوی لره حفاظت کوونکی۔

چه د ځان د بچ کولو دپاره د اسبابِ شرعیو استعمال هم سنت دے فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ استفهام په معنیٰ د امر سره دے او په دے مطالبه کښ مقصد همیش والے د شکر دے۔

ٹ ۸۱ :۔ پدے آیتونو کښ د سلیمان علیه السلام د معجزاتو ذکر دے او هغه پدیکښ الله تعالیٰ ته محتاج وو۔ هرکله چه سلیمان علیه السلام ډیرے غزاگانے کولے او سفرئے کولے او ملک ئے هم ډیر وسیع وو د هغه د انتظام دپاره کرځیدل وو نو د هغه وجے نه الله تعالیٰ هغه لره هوا تابع کړه د هغه صفت ئے په دے سورت کښ عَاصِفَةً (تیزه) او په سورة ص ۳۶ کښ رُخَاءً (نرمه) ذکر کړیدے اشاره ده چه هواگانے په دواړو حالتونو کښ د ده دپاره مسخرے وے کله به تیزے وے او کله به نرمے وے۔ اَلْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ، د دے نه مراد زمکه د شام ده ځکه چه په هغے کښ غلے میوے او د زمکے نور فوائد ډیر په کثرت سره دی۔ او دا رنګ ډیر پیغمبران په هغه زمکه رالیږلے شوے وو۔ بِكُلِّ شَيْءٍ یعنی د هر څیز په تدبیر پانډے الله تعالیٰ ښهٔ عالم دے۔

ٹ ۸۲ :۔ دا د بلے معجزے ذکر دے یعنی د شیاطین الجن او سرکشانو نه کار اخستل معجزانه کار دے۔ يَغُوْصُوْنَ د دے دپاره چه د دریاب نه ملغلرے او قیمتی کانړی راوباسی۔ حٰفِظِينَ یعنی د شیاطینو حفاظت د دے دپاره چه سلیمان علیه السلام ته تکلیف ورنکړی او د هغه د حکم نه خلاف ونکړی دا ټول په حکم د الله تعالیٰ سره وو په سحر او منتر سره نه وو۔ عَمَلًا ، د دے تفسیر په سورة سبا ۱۳ او سورة ص ۳۷ کښ دے۔

وَاَيُّوبَ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗٓ اَنِّىْ مَسَّنِىَ

(او ياد كړه) ايوب عليه السلام كله چې چغه فرياد كوؤ رب خپل ته چه رسيدلے دے ما ته

الضُّرُّ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۸۳﴾

مرض او ته زيات رحم كوؤنكے يې د رحم كوؤنكو نه.

فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَكَشَفْنَا مَا بِهٖ مِنْ ضُرٍّ

پس قبوله كړه مونږ دُعا د هغهٔ نو لرې كړو مونږ هغه چه پروت ؤ باندې څخه مرض د هٔ

وَّاٰتَيْنٰهُ اَهْلَهٗ وَمِثْلَهُمْ مَّعَهُمْ رَحْمَةً

او وركړو مونږ دهٔ ته بال بچ د دهٔ او پشان د هغوى ورسره نور د وجه د رحمت زمونږ

۸۳:- دا دليل نقلى دے د ايوب عليه السلام په دُعا او عاجزۍ كولو سره الله تعالىٰ ته د پاره د تن كير د توحيد چه مشكل كُشا او د مرضونو شفاء وركوونكے صرف الله تعالىٰ دے.

ايوب عليه السلام پيغمبر وؤ د روميانو نه او ډير مالدار وؤ او اهل ئے هم ډير وؤ نو الله تعالىٰ په هغه باندے ابتلاء اوكړه، مالونه ئے ورله فنا كړه اهل ئے ورله مړهٔ كړل ربغير د نيتے د مرګ ته) او په بدن كښے مرض پيدا شو. او مشهور قول دا دے چه پينځلس كاله پورے مصيبت كښے ئے تير شول آخر مجبوره شو دُعاء ئے اوغوښتله. (او نور حالات د دے متعلق به انشاء الله تعالىٰ په تفسير د سورة صٓ كښ راشى).

اَنِّىْ مَسَّنِىَ الضُّرُّ: په دے كښ مفسر قرطبى اوولس اقوال ذكر كړى دى. ظاهر دا دهٔ چه مراد د الضر نه مرض د بدن دے چه هغه ډير شدت ته رسيدلے وؤ او دا اظهار د عجز دے الله تعالىٰ ته دا شكوه نه ده نو د صبر نه خلاف نه ده. او په باره د ايوب عليه السلام كښ چه بعضے مفسرينو ذكر كړے قصے ليكلے دى چه په هغے كښ د د اسے مرضونو ذكر دے چه په هغے كښ نفرت پيدا كوونكى يا په ډيران باندے غوځول دى وغيره دا اسرائيلى روايات دى د شان د انبياء عليهم السلام سره مناسب نه دى. وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ، دا وسيله ده په صفت د الله تعالىٰ سره. او د ادب د وجه نه ذكر مقصد ئے اونكړو.

مِّنْ عِنْدِنَا وَذِكْرٰى لِلْعٰبِدِيْنَ ﴿٨٤﴾ وَاِسْمٰعِيْلَ

دَ طرف نه او يادداشت دَ عبادت كوونكو دَ پاره. او (يادكړه) اسمٰعيل

وَاِدْرِيْسَ وَذَا الْكِفْلِ ۖ كُلٌّ مِّنَ

او ادريس او ذاالكفل دا ټول وو دَ

الصّٰبِرِيْنَ ﴿٨٥﴾ وَاَدْخَلْنٰهُمْ فِيْ رَحْمَتِنَا ۖ

صبر ناكو نه. او داخل كړي وو مونږ دوي په رحمت زمونږ كښ،

اِنَّهُمْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٦﴾ وَذَا النُّوْنِ

يقيناً دوي وو دَ پوره نيكانو نه. او (ياد كړه) مهي والا (يونس)

س٨٤:- دا دليل دے چه تير شوي آيت كښ دُعاء ده. رَحْمَةً كښ اشاره ده چه اجابت دَ دُعا دَ دے وجے نه دے چه الله تعالىٰ مجبور نه دے بلكه دا احسان دَ الله تعالىٰ دے.

وَذِكْرٰى لِلْعٰبِدِيْنَ. يعني څوك چه دَ الله تعالىٰ بندګي كوي او په هغے كښ ورته مصيبتونه دَ مال او دَ بدن او رسيږي نو هغه دِ دَ ايوب عليه السلام دا واقعه ياده كړي ځكه چه هغه افضل وو او سره دَ دے نه په هغه باندے مصيبتونه راغلي دي او هغه صبر كړيدے.

س٨٥ س٨٦:- دا هم نقلي دليلونه دي دَ دے درے پيغمبرانو نه چه هغوي په رحمت كښ الله تعالىٰ ته محتاج دي او دَ صبر او عين بيت عملونه يے كول. او صبر دَ هغوي دليل دے چه په هغوي باندے مصيبتونه راغلي وو. اسماعيل عليه السلام باندے مصيبت دَ ابتلاء دَ ذبح او په شاره او چه زمكه كښ دَ مور سره پريښودل او سيندل او دَ بيت الله په آبادئ كښ تكليف تيرول وو. او دَ ادريس او ذاالكفل عليهما السلام دَ تفصيلي حال ذكر قرآن كريم او صحيح حديث مرفوع كښ نه دے شوے نو مونږ دَ هغے په باره كښ اجمالي ايمان لرو. او ابن كثير وئيلي دي چه ظاهر دَ عبارت دَ قرآن كريم نه معلوميږي چه ذاالكفل نبي وو او بعضو وئيلي دي چه صالح سړے وو او ابن جرير پكښ توقف كړے دے.

إِذ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا فَظَنَّ أَن لَّن

کله چه لاړ پیدا اسے حال کښ چه غصه قوم خپل ته نو گمان یې اوکړو چه هیڅ کله

نَّقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادَىٰ فِي الظُّلُمَاتِ

تنگسیا به را نه لو مونږ په ده باندے نو فریاد یې اوکړو په تیارو کښ

أَن لَّا إِلَٰهَ إِلَّا أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي

چه نشته فریاد قبلوونکے سوا ستا نه پاک یې ته یقینًا زه

كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴿٨٧﴾ فَاسْتَجَبْنَا لَهُ

یم د نقصان کوونکو نه د ځان سره - پس قبول کړو مونږ فریاد د ده

۸۷ :- دا هم دلیل نقلی دے د یونس علیه السلام نه په عجز او احتیاج د هغه الله تعالیٰ ته د پاره د تذکیر د توحید - نون مهی ته دائی هغه د مهی په خیټه کښ څه وخت پورے وو او د مهی په ذریعه الله تعالیٰ د هغه حفاظت کړے وو ځکه منسوب شو په لقب کښ نون ته -

مُغَاضِبًا نه مراد دا دے چه قوم ته غصه وو ځکه چه هغوی د هغه تکذیب کړے وو او خپل اجتهاد یې اوکړلو چه په دے قوم باندے ضرور عذاب راځی او د عذاب په وخت نبی د قوم نه بهر اوځی نو د دے وجے نه هغه د قوم نه بهر لاړو د الله تعالیٰ امر ته انتظار یې اونکړلو۔

ظُلُمَاتِ، دریے تیرے وے یو د شپے بل د بحر یل د مهی د خیټے - او په دے دُعاء د یونس علیه السلام کښ د دُعاء دریے شرطونو ته اشاره ده

اول شرط شروع کول په کلمه د توحید سره اشاره ده چه د بل هیڅ چا نه دُعاء نه غوښتلے کیږی ځکه چه بل چا کښ صفات د الوهیت او د حاجت روا کولو نشته۔

دویم شرط تسبیح ذکر کول اشاره ده چه د الله تعالیٰ نه ځکه غوښتلے کیږی چه په هغه کښ نقصان د عجز او عیب نشته یعنی هر حاجت پوره کولو باندے قادر دے او د حاجت غوښتونکی په حال باندے پوره عالم دے۔

وَنَجَّيْنٰهُ مِنَ الْغَمِّ ۭ وَكَذٰلِكَ
او بچ کړه موږ ده (یونس علیه السلام) د غم نه او دا رنګ

نُـۨجِي الْمُؤْمِنِيْنَ ﮘ وَزَكَرِيَّآ
نجات ورکوؤ موږ مؤمنانو ته۔ او یاد کړه ذکریا علیه السّلام لره

دریم شرط اقرار او اظهار د خپل عجز او قصور دے ځکه چه څوک عجز الله تعالیٰ ته نه ظاهروي نو د هغه دعا نه قبلیږي۔

فائده:- بعضے جاهلانو مبتدعینو د دے آیت نه استدلال کړے دے د انبیاء علیهم السلام په ګنهګار کیدلو په یو څو طریقو سره۔!

اوله طریقه، دا چه مُغَاضِبًا معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ ته غصه وو۔ او د الله تعالیٰ په کار باندے غصه کول ګناه ده۔

دویمه طریقه، ده ګمان اوکړو چه الله تعالیٰ په ده باندے قدرت نه لري او انکار د قدرت د الله تعالیٰ نه ګناه ده۔

دریمه طریقه، دا چه ځان ته ئے ظالم ویلے دے او هر ظلم ګناه ده۔ د دے جوابونه په ترتیب سره دادي چه مغاضبًا نه مراد دا دے چه قوم ته غصه وو او کومو مفسرینو چه لِرَبِّهٖ ویلے دي د هغے مراد دا دے چه د رب د وجے نه قوم ته غصه وو او دا عبادت دے او نَقْدِرَ په معنیٰ د تنګسیا راوستلو دی لکه چه يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ کښ دا معنیٰ ده۔ او هر ظلم ګناه نه ده کله ظلم اقرار د قصور او د کوتاهۍ ته ویلے کیږي۔ لکه پدے دعا کښ چه رَبِّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ ظُلْمًا كَثِيْرًا او دا دعا نبي صلی الله علیه وسلم ابوبکر رضی الله عنه ته خودلے وه چه دا حق دے په آخر کښ ئے لوله۔ او دا رنګ ظلم کله خلاف اولیٰ عمل کولو ته ویلے کیږي یعنی اولیٰ او بهتره خبره دا وه چه یونس علیه السلام د الله تعالیٰ د اذن انتظار کړے وے د پاره د هجرت د قوم خپل نه۔ او خلاف د اولیٰ نه چه اوشي نو هغه ګناه نه وي۔

۸۸:- غَمِّ لفظ عام دے د تیارو د وجے نه خفګان او د خلاف اولیٰ عمل کولو، خفګان دواړو ته شامل دے او د ده د نجات تفصیل په سورة صافات کښ ذکر شویدے د ۱۳۹ نه تر ۱۴۷ پورے

اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ رَبِّ لَا تَذَرْنِيْ فَرْدًا

کله چه فریاد ئې اوکړو رب خپل ته اے ربه زما مه پریږده ماله یواځې

وَّاَنْتَ خَيْرُ الْوٰرِثِيْنَ ﴿۸۹﴾ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ

او ته ئې غوره د باقی پاتې کیدونکو نه - نو قبوله کړه مونږ دُعاء د هغه

وَوَهَبْنَا لَهٗ يَحْيٰى وَاَصْلَحْنَا لَهٗ زَوْجَهٗ

او ورکړه مونږ ده ته یحییٰ علیه السلام او قابله کړه مونږ ده لره بی بی د ده

وَكَذٰلِكَ کښې اشاره ده چه دا دُعاء د نورو مؤمنانو ته هله قبلیدے شی چه د یونس علیه السلام په شان اخلاص او عجز په ځان کښې پیدا کړی او د هغه د شرطونو لحاظ اوکړی - او په حدیث د ترمذی او احمد کښې دے دُعا ته ئې ترغیب ورکړے دے . ابن کثیر هم دغه روایت ذکر کړے دے .

۸۹ :- دا هم دلیل نقلی دے د ذکریا علیه السلام نه د پاره د تذکیر د توحید چه ذکریا علیه السلام عجز او احتیاج خاص الله تعالیٰ ته پیش کوو.

فَرْدًا نه مراد یواځې د دین خدمتګار دے ، چه ملګری ئې لری .

الْوٰرِثِيْنَ نه مراد ساتنه کوونکی د دین دی .

اِذْ نَادٰى د دے نداء ذکر په سورة آلعمران ۳۸ او په سورة مریم ۳ کښې تیر شوے دے .

فائده :- په دے سورت کښې د څلور و انبیاؤ نه ئې نداء الی الله ذکر کړی ده اشاره ده چه د انسانانو حاجات په دے څلورو کښې منحصر دی - اول د دشمن په مقابله کښې او د دشمن نه د بچ کیدلو حاجت دا نداء د نوح علیه السلام ده- دویم د بدنی او جسمانی مرضونو په باره کښې الله تعالیٰ ته فریاد کول او دا نداء د ایوب علیه السلام ده - دریم د عام تکالیفو او مصیبتونو نه د نجات د پاره دا نداء د یونس علیه السلام ده - څلورم د اولاد په باره کښې چه میراث دینی او دنیوی سنبهال کړی او دا نداء د ذکریا علیه السلام ده - نو معلومه شوه چه انسانان خواص او عوام ټول الله تعالیٰ ته

إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ

یقینًا دوی به وو چه کوشش به ئې کوو په تلو نیکو کارونو کښې

وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا ۖ وَكَانُوا لَنَا خَاشِعِينَ ﴿٩٠﴾

او حاجتونه ئې غوښتل زمونږ نه مینه کوونکی وو او ویره کوونکی وو او وو دوی زمونږ له عاجزی کوونکی۔

په هر حالت او حاجت کښې محتاج دی او په دوی باندے فرض دی چه صرف د ربو الله تعالی نه خپل حاجتونو کښې مدد غواړی۔

ښ:۔ طریقه د استجابت د دُعاء او د یحیٰی علیه السلام پیدائش په سورة آل عمران او سورة مریم کښې ذکر شوی دے۔

أَصْلَحْنَا لَهُ، مراد دا دے چه د دے نه مخکښې شنړه وه نو الله تعالی تاتړه کړله۔

إِنَّهُمْ كَانُوا آه، د تفصیلی بیان نه روستو دا اجمالی بیان دے چه ټول انبیاء علیهم السلام الله تعالی ته محتاج دی او د هغوی درے قسمه عبادات ئې ذکر کړے دی۔

اول يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ مراد د دینه امتثال د ټولو اوامرو دے، او اجتناب د ټولو منهیاتو نه ۔او مراد د مسارعت نه تقدیم الاهم فالاهم دے او د دے جملے نه امام رازی دلیل ذکر کړے دے په عصمت د انبیاء علیهم السلام باندے ۔ځکه چه الف لام په الخیرات کښې د استغراق دپاره دی او کناه نه کول هم فرد د الخیرات دے۔

دویم يَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا ،یعنی د طاعت او عبادت سره الله تعالی نه حاجات پیش کول او خاص د هغهٔ نه امداد غوښتل۔ رَغَبًا وَرَهَبًا مراد دا دے چه په حال د دُعاء کښې رغبت او امید لری د رحمتونو د الله تعالی او هم ویره لری د غضب د الله تعالی نه یا دا چه په حال د خیر کښې د الله تعالی نه دُعاء غواړی او په حال د ویره کښې هم د الله تعالی نه غواړی۔ او په دیکښې اشاره ده چه رغبت او رهبت یوځائے کول صحیح عبادت دے۔

دریم وَكَانُوا لَنَا خَاشِعِينَ ،یعنی هر حالت کښې اخلاص او عاجزی الله تعالی ته کوئ ځکه چه هیڅ عبادت او دُعاء په غیر د اخلاص او د عجز نه نه قبلیږی۔

وَالَّتِيٓ اَحۡصَنَتۡ فَرۡجَهَا فَنَفَخۡنَا فِيۡهَا

او هغه زنانه چه بچ یې ساتلې وو عورت خپل نو پوکې اوکړو موږ په هغې کښې

مِنۡ رُّوۡحِنَا وَجَعَلۡنٰهَا وَابۡنَهَاۤ اٰيَةً لِّلۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۹۱﴾

د روح د طرف زموږ نه او اوګرځوله موږ دا او ځوی د دې لره نخه د پاره د خلقو.

اِنَّ هٰذِهٖۤ اُمَّتُكُمۡ اُمَّةً وَّاحِدَةً ۖ وَّاَنَا رَبُّكُمۡ

یقینًا دا (دین د انبیاؤ) دین ستاسو دے په دا سې حال چه یو دین دے، او زه ستاسو رب یم

فَاعۡبُدُوۡنِ ﴿۹۲﴾ وَتَقَطَّعُوۡۤا اَمۡرَهُمۡ بَيۡنَهُمۡ ؕ

نو بندګي ما لره خاص کوئ. او ټکړے کړو دوی دین خپل لره په کوږنو کښې.

سلف:- دا هم دلیل نقلی د مریم او عیسی علیهما السلام نه دے چه هغوی د الله تعالی اراده او حکم نه عاجز وو- دا هم تذکیر د توحید دے- او دا واقعه د مخکنو قصو نه جدا ذکر کړه ځکه چه مریم نبیّه نه وه او هر کله چه د عیسی ذکر یکښ دے نو د هغه واقعا تو سره یې نه دے ذکر کړے- اَحۡصَنَتۡ فَرۡجَهَا کښ رد دے په یهودیانو باندے چه هغوی بهتان لګولے وو په مریم علیها السلام باندے- او مراد د فرج نه عورت دے یا فروج د قمیص مراد دے چه هغه ځلور دی دوه لستونړي او ګریبان او لاندے د لمن نه، او مقصد د دې نه اظهار د عفت او پاکدامنۍ د هغې دے-

اٰيَةً یې مفرد ذکر کړو مراد تري نه جنس دے نو ډیرو آیاتو ته اشاره شوه یا دا چه په دواړو کښ یو آیت عظیمه وو یعني ولادت بغیر د نزدیکت د نارینه نه- یا دا چه عبارت کښ تقدیر دے یعني جَعَلۡنٰهَا اٰيَةً وَابۡنَهَاۤ اٰيَةً لِّلۡعٰلَمِيۡنَ، او تفسیر قرطبي کښ یې دا سے تشریح کړیده- لِّلۡعٰلَمِيۡنَ کښ اشاره ده چه دا واقعه په ټول عالم کښ صرف یوه وه-

سلف:- دا خطاب دے ټولو خلقو ته روستو د انبیاؤ علیهم السلام نه د پاره د ترغیب توحید نه یعني دین د توحید دین د ټولو انبیاؤ دے او ستاسو هم دغه دین دے وَاَنَا رَبُّكُمۡ آه بیان د اُمَّةً (دین) دے په رد د شرک د ربوبیة او الوهیت سره- امت دلته په معنی د شریعت، سنت او دین سره دے-

كُلٌّ إِلَيْنَا رَاجِعُونَ ﴿۹۳﴾ فَمَنْ يَعْمَلْ

دا ټول به موږ طرفته راګرځي. پس چاچه عمل اوکړو

مِنَ الصَّالِحَاتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا كُفْرَانَ

د نیک عملونو نه او حال داچه دے مؤمن وي پس ناشکري

لِسَعْيِهِ وَإِنَّا لَهُ كَاتِبُونَ ﴿۹۴﴾ وَحَرَامٌ

نه کیږي د عمل د ده، او یقیناً موږ لیکونکي د هغه یو. او مقرر ده

عَلَىٰ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴿۹۵﴾

په هر یو کلي چه هلاک کړي دي موږ چه دوي به دنیا ته واپس نشي راتلے.

ف۹۳:- دا زجر دے هغه خلقو ته چه دین د توحید نه ئے مخالفت کړيدے او امر په معنیٰ د دین دے یعني پس د پریخودلو د توحید نه په کورنۍ کښ مختلف ډلے شوے او د شرک او د کفر په مختلفو قسمونو کښ تقسیم شول.

ف۹۴:- خلاصه:- د دے آیت نه د سورت تر اختتام پورے پنځم باب دے په دیکښ بشارت دے په ف۹۴ کښ او تخویف اخروي تفصیلي دے د ف۹۵ نه تر ف۱۰۳ پورے بیا بشارت تفصیلیه دے په درے آیتونو کښ بیا تخویف اخروي او بشارت دے بیا ذکر د صفاتو د رسول دے په ف۱۰۷ کښ بیا تخویف دنیوي دے په ف۱۰۹ ف۱۱۱ کښ سره د رد د شرک فی العلم نه په درے آیتونو کښ بیا اختتام د سورت دے په رد د شرک فی الاستعانة او ذکر د تضرع د نبي صلی الله علیه وسلم دے په مقابله د مشرکانو کښ.

تفسیر:- په دے آیت ف۹۴ کښ بشارت دے مؤمنانو ته چه د دوي عمل برباد نه دے بلکه سبب د اجر وجزاء دے او د الله تعالیٰ سره محفوظ دے - او دا تفصیل د تقطعوا دے یعني ټول خلق دوه ډلے دي.

فَلَا كُفْرَانَ لِسَعْيِهِ، کفران په معنیٰ د ناشکرۍ کولو او ضائع کولو دے معلومه شوه چه د شرک او کفر او ترک د عمل صالح سره رجه په دعت دے اعمال ضائع کیږي نور آیتونه هم په دے دلیل دي.

ف۹۵:- په دیکښ زجر او تخویف دے دوه ډلے ته په آیت کښ اشکال دے

حَتّٰٓى إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ

تر دے پورے چہ کلہ پرانستے شی یاجوج او ماجوج

وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ ﴿٩٦﴾

او دوی بہ د هرے دیرئ نہ منډے وهی۔

پہ دے وجہ چہ د حَرَامٌ معنیٰ منع ده او لَا يَرْجِعُونَ معنیٰ دا ده چہ دنیا تہ واپس نہ راځی، یا دا چہ د گناه نہ نۀ راگرځی پہ توبے سره، نو معنیٰ دا شوه چہ هلاک کړے شوے خلقو باندے دنیا تہ نہ واپس کیدل او توبہ تہ ویستل منع دی نو لازم دا شوه چہ دوی بہ دُنیا تہ واپس راځی او توبہ بہ او باسی او دا معنیٰ د نورو آیتونو نہ خلاف ده لکہ سورة مؤمنون سنا او سورة انعام ۲۸ او سورة یٰسٓ ۳۱ کښ، جواب پہ یو څو وجوهو سره دے۔

اوله وجه دا ده چہ حَرَامٌ پہ معنیٰ د وجوب او قدر دے او دا د ابن عباس رضی الله عنه نہ نقل دے۔

دویمه وجه دا ده چہ لا زیات دے او دا قول د ابو عبید دے خو مناسب نہ دے۔

دریمه وجه دا ده چہ توبہ کول او ایمان راوړل حرام دی پہ هلاک کړے شوے قومونو باندے ځکه چہ دوی دنیا تہ واپس نشی راتلے۔ او پہ دے ټولو وجوهو سره دا معلومه شوه چہ کوم خلق چہ مره شویدی نو هغوی دُنیا تہ واپس نشی راتلے۔ او دنیا تہ د مړو راتلل دا د روافضو عقیده ده او کوم قصے چہ مشهورے دی چہ فلان سړے فلان ولی بزرگ لره روستو د مرگ د هغه نہ دُنیا کښ ژوندے لیدلے دے دا ټولے غلطے قصے او د تلبیسات د شیاطینو دی او د معراج پہ شپه کښ چہ لیدلے شوے وو نو هغه عالَم مثال وو او معجزه وه۔ د هغے تفصیل پہ تشریح د معراج کښ تیر شوے دے۔

سلا۔ پہ دے آیت کښ بعضے علامات قریبه د قیامت ذکر کړے دی چہ صحیح احادیثو سره ثابت شویدی چہ روستو د فتنے د دجال نہ بہ یاجوج ماجوج پہ ټول عالم مسلط کړے شی۔

او حَتّٰٓى ابتدائیه دے یعنی مستقل کلام شروع شوے دے یا متعلق دے

وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ فَإِذَا هِيَ شَاخِصَةٌ

اوبه نزدے به شی وعده حقه نو دغه وخت به وازے (حیرانې) وی

أَبْصَارُ الَّذِينَ كَفَرُوا يَا وَيْلَنَا قَدْ كُنَّا

سترگے د هغه چا چه کفر ئے کړے دے، وائی به دوی هائے تباهی ده زمونږ یقیناً وو مونږ

فِي غَفْلَةٍ مِنْ هَذَا بَلْ كُنَّا ظَالِمِينَ ﴿٩٧﴾

په غفلت کښ د دے نه بلکه مونږ ظالمان وو۔

إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ

یقیناً تاسو او هغه څوک چه تاسو ئے بندگی کوئ سوا د الله تعالیٰ نه

په لَا يَرْجِعُونَ پورے یعنی دوی نشی واپس کیدے تر هغے پورے چه د قیامت دا علامه موجود شی او بیا قیامت قائم شی۔

حَدَبٍ يَنْسِلُونَ کښ اشاره ده چه د دوی د راتللو او مسلط کیدلو نه هیڅ ځیز په منع کوونکے نه وی یعنی د دوی سره به ډیر اسباب د سفر وی هوائی او زمینی۔ او د یاجوج ماجوج ذکر په سورة کهف ۹۴ کښ تیر شوے دے۔ او ابن جریر ابن کثیر د دوی په باره کښ ډیر احادیث ذکر کړی دی۔

۹۷۔ دا دلیل دے چه په راتللو د یاجوج ماجوج پسے به قیامت ډیر نزدے راځی ځکه چه دا اقْتَرَبَ معطوف دے په حَتَّىٰ باندے او پس دے آیت کښ هیبت د قیامت ذکر کړے دے او دا سے په سورة ابراهیم ۴۲ کښ تیر شوے دی۔

يَا وَيْلَنَا آه دا اقرار دے په جرم د شرک او کفر سره لیکن دغه وخت دا اقرار هیڅ فائده نه ورکوی۔ او دا آیت مناسبت لری د سورت د اول آیت سره۔

حَصَبُ جَهَنَّمَ ۭ اَنْتُمْ لَهَا وٰرِدُوْنَ ﴿۹۸﴾

خشاک د جهنم دے تاسو په هغې ته ورننوځئ .

لَوْ كَانَ هٰٓؤُلَاۗءِ اٰلِهَةً مَّا وَرَدُوْهَا ۭ

که چرے وے دوی د بندګی حقدار نه به ورننوتلے جهنم ته ،

وَكُلٌّ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۹۹﴾ لَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ وَّ

او ددی به ټول په هغې کښ همیشه وی - دوی د پاره په هغې کښ هنګارېږی او

ف۹۸ :- دا هم تخویف دے او رد دے په مشرکانو باندے یعنی دا مشرکان چه د خپلو معبودانو نه د نجات ورکولو امید لری نو دا خیال ئے غلط دے ځکه چه هغه معبودان به هم اور ته داخلیږی نو دوی له به څنګه نجات ورکړی - په دے آیت کښ اشکال دے چه د لفظ مَا نه معلومیږی چه ټول معبودان د مشرکانو به جهنم ته داخلیږی نو بعضے د معبودانو نه انبیاء اولیاء او ملائک هم دی چه بعضے خلقو د هغوی عبادتونه کړے دی او دا اعتراض مفسرینو د ابن الزبعری نه هم نقل کړے دے جواب د دے په څو وجو سره دے .

اوله وجه دا ده چه لفظ د مَا قطعی صریح نه دے په عموم کښ بلکه احتمال د عموم او خصوص د دواړو لری دا سے شرح مواقف نور الانوار وغیره کښ ذکر شویده او ابن الزبعری مشرک وو هغه تلبیس او دهوکه کوله چه لفظ د مَا نه ئے عموم مراد کوو - نو دلته مراد د مَا نه خاص هغه معبودان مراد دی چه هغوی خلقو ته د شرک او بدعت دعوت ورکوی یعنی باطل پرست پیران او مُلیان -

دویمه وجه دا ده چه لفظ د ما اګرچه عام شی لیکن ۱۰۱ سره د صالحینو استثناء کړے شویده - حَصَبُ ، هغه خشاک وغیره ته وئیلے کیږی چه اور ته اوغورځولے شی د پاره د سیزلو د هغې او حَطَبُ صرف خشاک ته وئیلے کیږی نو حصب کښ معنیٰ د ذلت ده -

ف۹۹ :- دا دلیل دے په ابطال د اٰلِهَةً مِّنْ دُوْنِ اللهِ تعالیٰ ځکه چه ځان او خپل عابدان د جهنم نه نشی بچ کولے نو څه رنګ الهه کیدلے شی .

هُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ ﴿١٠٠﴾ إِنَّ الَّذِينَ

دوی په په هغې کښې هیڅ نه آوري - یقیناً هغه کسان

سَبَقَتْ لَهُمْ مِّنَّا الْحُسْنَىٰ ۙ أُولَٰئِكَ

چه مخکښې مقرر شوې ده د دوی دپاره زمونږ د طرفه جنت دوی به

عَنْهَا مُبْعَدُونَ ﴿١٠١﴾ لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا ۖ

د جهنم نه لرې کړے شوي وي - نه به آوري دوی کشار د جهنم

وَهُمْ فِي مَا اشْتَهَتْ أَنْفُسُهُمْ خَالِدُونَ ﴿١٠٢﴾

او دوی به په هغه څه کښې چه غواړي ئې د دوی نفسونه همیشه وي -

دا رنګ که د دوی بندګي کول حق وے نو د دوی عابدان به جهنم ته نه داخلیدلے - مَا وَرَدُوْهَا ضمیر عابدان او معبودانو دواړو ته راجع کیدلے شي - او کُلٌّ کښې هم دواړه مراد دي -

ف ١: زَفِیْرٌ ساه اخستل د غمژن شخص دي چه را اوځي د هغه د زړه نه مراد تری نه اسویلی کول دي - دا سے په سورة هود ١٠٦ کښې هم ذکر دی هرکله چه په دے آیتونو کښې یو قسم مشرکان ذکر دي نو صرف زفیر ئې ذکر کړو او سورة هود کښې په لفظ شقوا سره تعمیم کړے دے نو په عذاب کښې تعمیم کړے دے په زفیر او شهیق دواړو سره والله اعلم -

لَا یَسْمَعُوْنَ یعنی شور د جهنم والو به داسے ډیر وي چه د چا خبره به نه آوریدلے کیږي - او دا آیت دلیل دے چه مراد د آلهه نه بتان نه دي بلکه اهل عقل دي ځکه چه دا صفات د بتانو نشي کیدلے -

ف ١٠١: د روستو د تخویف اخروي نه بشارت دے دا جواب د هغه وهم دے که څوک وهم اوکړي چه آلهه لفظ چه مخکښې آیت کښې تیر شو شامل دے هغه صالحینو ته چه د هغوی عبادت کړے شوے دے نو دے آیت کښې د هغوی استثناء اوشوه - او مراد د سَبَقَتْ نه وعده د جنت ده محسنینو د پاره لکه سورة یونس ٢٦ کښې - یا مراد د دینه لقدیر کښې د جنت لیکل دي صالحینو د پاره - اَلْحُسْنٰی مراد د دینه جنت یا سعادت دے او په دے کښې ملائک عزیر عیسیٰ او نور صالحین داخل دي -

ف ١٠١: که سوال اوکړے شي چه د دے تعارض دے د سورة مریم ٧١ سره؟

لَا یَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْاَکْبَرُ وَتَتَلَقّٰهُمُ

نه به غمژن کوی دوی لره هیبت لوئے او مخے له به راځی د دوی

الْمَلٰٓئِکَةُ ؕ هٰذَا یَوْمُکُمُ الَّذِیْ کُنْتُمْ

ملائک (روانی به) دا ورځ ستاسو ده هغه چه تاسو سره به

تُوْعَدُوْنَ ﴿۱۰۳﴾ یَوْمَ نَطْوِی السَّمَآءَ کَطَیِّ

وعده کیدلے شوه۔ هغه ورځ چه راټول به کړو مونږ آسمانونه پشان د رانغښتلو

السِّجِلِّ لِلْکُتُبِ ؕ کَمَا بَدَاْنَآ اَوَّلَ خَلْقٍ

د رجسټر والا کتابونو لره، لکه چه شروع کړے مونږ اول پیدائش

نُّعِیْدُهٗ ؕ وَعْدًا عَلَیْنَا ؕ اِنَّا کُنَّا فٰعِلِیْنَ ﴿۱۰۴﴾

دوباره به هم دغسے کوو، وعده ده په مونږ باندے یقیناً مونږ دا کار کوو۔

اول جواب دادے چه په هغه آیت کښ وارد په معنی د داخلیدو ولګے نه دے بلکه په یو تفسیر سره۔

دویم جواب دا دے چه په دے آیت کښ مطلب دا دے چه روستو د دخول د جنت نه به د جهنم هیڅ کش نه آوری نو تعارض نه راځی۔

مَا اشْتَهَتْ، یعنی هر مطلوب او محبوب به ورته حاصل وی او د هر ضرر او مرهوب نه به بچ وی۔

سئلہ:۔ دا سے سورة نمل ۸۹ کښ هم دی او مراد د فزع اکبر نه هیبت د ورځ د قیامت دے په هغے کښ ذبح الموت (ذبح د مرګ) هم داخل دے لکه چه حدیث صحیح کښ ذکر دی او ملاقات د ملائکو د دوی سره په هغه وخت کښ چه د قبرونو نه به راوځی او دا رنګ په دروازه د جنت باندے۔

سئلہ:۔ دا متعلق دے لَا یَحْزُنُهُمْ پورے، یعنی نه به غمژن کوی دوی لره لوئے هیبت په هغه ورځ چه راونغاړو به آسمانونه یا متعلق دے په تُوْعَدُوْنَ پورے۔ یا د سره کلام دے او نُعِیْدُهٗ سره تعلق لری او مراد د سَمَآءَ نه ټول آسمانونه دی په دلیل د سورة زمر ۶۷ سره۔

وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِنْ بَعْدِ
او یقیناً لیکلی دی موږ په زبور کښ روستو د
الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ
ذکر (تورات) نه چه بیشکه زمکې وارثان په وی د هغې بندګان زما
الصَّالِحُونَ ﴿١٠٥﴾ إِنَّ فِي هَٰذَا لَبَلَاغًا
نیکان - یقیناً په دے (مضمون) کښ خامخا تبلیغ دے

سِجِلّ. کښ خوره قول دا دے چه هغه رجسټر دے چه په هغې کښ نومونه یا حکمونه او فیصلے مسجل (درج) کیږی نو هغه رجسټر په خپلو مضامینو باندے مشتمل وی او هغه مضامین په هغې کښ رانغښتلے شوے وی دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما دے او دیته ابن کثیر صحیح وئیلے دی. او چا چه وئیلے دی چه سجل نوم د کاتب د وحی صحابی د نبی صلی الله علیه وسلم وو نو ابن جریر او ابن کثیر په هغے روایت رد کړے دے چه دا منکر بلکه موضوعی دے. په صحابو کښ داسے نوم نقل نشته. په کَمَا بَدَأْنَا تعودون داسے سورة اعراف ۲۹ کښ هم دی.

۱۰۵. په دے آیت کښ بشارت اخروی دے بناء په دے چه مراد د الْأَرْضَ نه زمکه د جنت ده لکه سورة زمر کښ ۷۴ یا بشارت دنیوی دے بناء په دے چه مراد د دیته زمکه د شام ده یا حکومت د بعضے زمکے ترینه مراد دے لکه چه داسے وعده بنی اسرائیلو د پاره هم ذکر شوې وه په سورة اعراف ۱۳۷ کښ. او د دے امت د پاره په سورة نور ۵۵ کښ. زَبُور، په معنیٰ مشهورے سره دے یعنی کتاب د داؤد علیه السلام او د ذِکر نه مراد یا ذکر الهی او بیان د توحید دے په زبور کتاب کښ یا ذکر په معنیٰ د تورات سره دے یا د لوح محفوظ دے یا زبور په معنیٰ لغوی سره دے یعنی لیکلے شوے کتابونه نو مراد ترینه ټول کتابونه الهیه دی (تورات، انجیل، زبور) - ذکر په معنیٰ د لوح محفوظ سره دے او چه مراد د الارض نه زمکه د شام شی او هغه پد دے سورت کښ په ۷۱ ۸۱ کښ ذکر شوې ده او عباد الصالحین نه

لِّقَوْمٍ عٰبِدِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا

دپاره د هغه قوم چه بندګي کوي ربه اخلاص سره) او نه یې لیږلے مونږ ته مګر

رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۰۷﴾ قُلْ اِنَّمَا يُوْحٰٓى

رحمت دپاره د ټولو خلقو۔ او وایه یقینًا وحی لیږلی شی ما ته

اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَهَلْ

ما ته چه حقدار د بندګۍ ستاسو یو ذات دے نو آیا

مراد دا امت دے نو دا وعده د عمر بن خطاب رضی الله عنه په زمانه کښ پوره شوه زمکه د شام فتح کړے شوه او والی د هغې معاویه رضی الله عنه مقرر کړے شو نو معلومه شوه چه معاویه رضی الله عنه د دے صالحینو په ټولی کښ شمار دے (تیسیر الرحمٰن کښ علامه مهائمی لیکلی دی چه ته دی صالحان مکرصحابه کرام دی۔

۱۰۶:۔ تیرشوی آیت کښ چه کوم بشارت ذکر کړے شو د هغې د حاصلولو دپاره په دے آیت کښ ذریعه بیانوی۔ هٰذا اشاره ده مضمون د دے سورت ته یا ټول قرآن ته او بَلَاغ په معنیٰ د کفایت او د مراد حاصلولو دے او عٰبِدِیْنَ نه مراد مؤحدین دی چه بندګی په شرعی طریقے سره ادا کوی یا عاملان د قرآن کریم دی لکه چه تفسیر مواهب الرحمٰن کښ ذکر کړے دی۔

۱۰۷:۔ هر کله چه صلاحیت او عبادت موقوف دے په تابعدارۍ د سنت د رسول الله صلی الله علیه وسلم او په عقیده د توحید باندے نو دے دواړو آیاتونو کښ یې دا دواړه بنیادونه ذکر کړل۔ او د علامه ابن قیم رحمة الله نه نقل دی چه رسالت د رسول الله صلی الله علیه وسلم رحمت دے د ټول عالمینو دپاره په اسے طریقه چه مؤمنانو کاملانو په سبب د تابعدارۍ د هغه د دُنیا او د آخرت کرامتونه او شرافتونه حاصل کړل او دشمنانو محاربینو دپاره رحمت دے د هغوی سره جهاد او غزا کول دپاره د اسلام قبلولو او اهل ذمه کافرانو دپاره په جزیه ادا کولو سره په امن او سیدل رحمت دے او منافقانو له سره دپاره

أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ﴿١٠٨﴾ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ

تاسو غاړه ایښودونکي یئ (ددے مسئلے ته) بیس که دوی مخ واړوو نو ووایه

آذَنْتُكُمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ ۚ وَإِنْ أَدْرِي

ما تاسو خبر کړئ په پوره خبردارئ، او زه نه پوهیږم

أَقَرِيبٌ أَمْ بَعِيدٌ مَا تُوعَدُونَ ﴿١٠٩﴾

آیا نزدے دے یا لرے دے هغه (عذاب) چه تاسو سره ئے وعده کیدیشي۔

إِنَّهُ يَعْلَمُ الْجَهْرَ مِنَ الْقَوْلِ وَيَعْلَمُ

یقینا الله تعالیٰ پوهه دے په ښکاره ویینا او پوهه دے

کفر ته مؤمنانو پشان حقوق د دُنیا ودکول رحمت دے او د عام مخلوق د پاره د عام عذاب دنیوی نه بچ کیدل رحمت دے۔ او آیت د سورة تو په ملا کښ خاص رحمت مراد دے ځکه چه د مؤمنانو تخصیص ئے کړیدے۔

ف۱۰۸:۔ په دے آیت کښ مسئله د توحید ده چه هغه مقصد د رسالت دے او سبب د حصول د رحمت خاصه دے۔

فَهَلْ أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ، دا په معنیٰ د امر دے او مراد د اسلام نه توحید منل دی یا توحید ښکاره کول دی په اقرار او عمل او دعوت سره۔

ف۱۰۹:۔ په دے کښ تخویف د عذاب دے که دنیوی وی او که اخروی وی په وخت د اعراض د توحید نه۔

آذَنْتُكُمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ یعنی ما تاسو ته برابر او پوره بیان د توحید کړے دے ما ستاسو نه هغه علم نه دے پټ کړے یا مراد دا دے چه ما تاسو ته دا آخری بیان اوکړو او س پس د دینه انتظار د عذاب دے او په آیت کښ نفی د علم غیب ده د نبی صلی الله علیه وسلم نه۔

مَا تَكْتُمُونَ ﴿١١٠﴾ وَإِنْ أَدْرِي لَعَلَّهُ فِتْنَةٌ

په هغه خبره باندې چه تاسو يې پټوئ - او زه نه پوهېږم کيدای شي چه ځنډ روستو کول (د عذاب) دا

لَّكُمْ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿١١١﴾ قٰلَ رَبِّ احْكُم

تاسو لره ازمېښت وي او نفع وي تر یو وخت پورې - اوويل ده اې رب زما فيصله اوکړه

بِالْحَقِّ ۗ وَرَبُّنَا الرَّحْمَٰنُ الْمُسْتَعَانُ

حقه فيصله، او رب زموږ رحمان دې مدد غوښتلې کيږي د هغه

عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ ﴿١١٢﴾

په برداشت د هغه خبرې چه تاسو يې بيان کوئ.

ت ١١١ :- په يکښې ذکر د سبب د عذاب دې چه هغه شرک کول دي پټ او ښکاره او آيت کښې ثبوت د صفت د علم کلي دې د پاره د الله تعالى. او دا علت دې د دې قول د پاره چه وَإِنْ أَدْرِي. يعنې علم د هر څيز او علم غيب خاص دې په الله تعالى پورې د دې وجې نه ما ته علم د غيب نشته دې.

ت ١١١ :- جواب د سوال دې چه هر کله سبب د عذاب موجود دې نو په دوی باندې سمدستي عذاب ولې نه راځي حاصل د جواب دا دې چه پوره وجه د روستو والي ما ته نه ده معلومه هاں امتحان کول او مهلت ورکول د دې وجه کيدای شي. او په دې آيت کښې هم نفي د علم غيب ده د نبي صلى الله عليه وسلم نه.

ت ١١٢ :- هر کله چه په وخت د مهلت او تاخير د عذاب کښې ضد يا تو او عناد يانو سخته مقابله د حق شروع کړله نو نبي صلى الله عليه وسلم دا دعا او غوښتله او په آيت کښې رد د شرک في التصرف والاستعانة دې او لکه چه په دې سورت کښې د تير شوؤ انبياء عليهم السلام دعاګانې او عاجزي ذکر کړې ده نو په اختتام کښې د آخري نبي صلى الله عليه وسلم دعا او عاجزي ذکر کوي.

| آیاتها ۷۸ رکوعاتها ۱۰ | بسم الله الرحمن الرحيم | سورة الحج مدنية |
|---|---|---|

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښ چه رحمٰن او رحیم دے

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ إِنَّ زَلْزَلَةَ

اے خلقو! ویره کوئ د رب خپل نه یقینًا زلزله

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة الحج :- د دے سورت بعضے آیاتونه مکیه دی او بعضے آیاتونه مدنیه دی ۔ مفسر قرطبی د غزنوی نه نقل کړے دی چه دا سورت د عجیبه سورتونو نه دے ځکه چه په دیکښ بعضے آیاتونه د شپے نازل شویدی او بعضے د ورځے او بعضے په سفر کښ نازل شویدی او بعضے په حضر کښ او بعضے ناسخ دی او بعضے منسوخ او بعضے د صلح دی او بعضے د جنګ او بعضے محکم دی او بعضے متشابه دی ۔

ربط :- د دے سورت د سورة انبیاء سره یو دا دے چه تیر شوی سورت کښ عجز او احتیاج د انبیاء علیهم السلام ئے الله تعالیٰ ته ذکر کړو نو په دے سورت کښ رد دے په هغه چا باندے چه خپل احتیاج او عجز غیرالله ته پیش کوی ۔

دویم دا چه د هغه سورت په اول کښ د قیامت نزدیکت ئے ذکر کړو نو د دے سورت په اول کښ د زلزلة الساعة ذکر کوی ۔

دریم دا چه هغه سورت کښ د دین یو والے ذکر کړو ان هذه امتكم امة واحدة الاية ، نو په دے سورت کښ تفرق او ډلے د خلقو ذکر کړیدی ۔

دعوٰی د دے سورت دوه دی اول اثبات د توحید په ټولو عقلی دلیلونو سره او په رد د ټولو اقسامو د شرک سره دے او دویم اثبات د بعث دے په عقلی دلیلونو او تخویف او بشارت سره ۔

خلاصه د دے سورت ۔ دا سورت تقسیم کړے شوے دے په دوه بابونو باندے اول باب تر ۳۵ پورے دے په دیکښ دواړه دعوے او تخویف اخروی ذکر دے په ما سے کښ بیا اتلوه زجرونه او دریے عقلی دلیلونه دی او تخویف اخروی تفصیلًا او بشارت اخروی تفصیلًا دے ۔

السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ ① يَوْمَ تَرَوْنَهَا

دَ قیامت ... لوئ شئ ... هیبتناک دے۔ په هغه ورځ چه او به وینئ تاسو هغه لره

تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّا أَرْضَعَتْ

چه غافله به شي ... هره ... پئ ورکوونکے دَ هغه بچی نه چه پئ ورکوي هغه لره

وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى

او او به غورځوي هر ... حمل والا ... حمل خپل او وینے به ته

النَّاسَ سُكٰرٰى وَمَا هُمْ بِسُكٰرٰى وَلٰكِنَّ

خلقو لره نشه او حال دا چه دوی نه دی نشه په خلقو دَ نشه او دَ تمیز سره) او لیکن

تفسیر سا ۔ په دے کښ دعوی دَ توحید او دعوی دَ اثبات قیامت ده په ذکر دَ لوئے نمونے دَ قیامت سره۔

فائده :۔ دَ قرآن دَ ترتیب دَ ابتداء او نه څلورم سورت (سورة النساء) شروع دی په يَا أَيُّهَا النَّاسُ سره او دَ قرآن دَ نصف نه هم دا څلورم سورت شروع دے په يَا أَيُّهَا النَّاسُ سره په هغه سورت (النساء) کښ مبدء دَ خلق ذکر کړے شوے دے او په دے سورت کښ منتهی (قیامت) ذکر کړے شوے دے۔

زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ ، کښ دوه تفسیرونه دی - اول تفسیر دا دے چه دَ قیامت دَ قائم کیدلو نه وړاندے دَ مخلوق دَ فنا سره به دا زلزله په ټوله زمکه باندے راځی لکه چه سورت زلزال کښ هم دا مراد دے او روستو په سلا کښ حالات واقعیه دی او په حقیقت باندے حمل دی۔

دویم تفسیر دا دے چه مراد دَ دینه لوئے هیبت دے په میدان حشر کښ لکه چه حدیث صحیح کښ راغلے دی چه الله تعالی به حکم اوکړی آدم علیه السلام ته راوبل روایت کښ دی چه حکم به اوکړی ملائکو ته او دوی جمع کیږی شی) چه دَ خپل اولاد نه دله دَ جهنم راجدا کړه نو هغه به تپوس اوکړی دَ څومره نه څومره نو الله تعالی به اوفرمائی دَ زرو نه یو کم زر جدا کړه دَ پاره دَ جهنم او یو تن به حق جنت ته نو دغه وخت به لوئے هیبت راځی په خلقو باندے۔ امام بخاری دا حدیث په تفسیر دَ دے آیت کښ ذکر کړیدے او ابن جریر هم دا توجیه غوره کړیده۔ په دے قول

عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيْدٌ ﴿٢﴾ وَمِنَ النَّاسِ

عذاب د الله تعالیٰ سخت دے۔ او بعضے د خلقو نه

مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ

هغه څوک دی چه جګړه کوی په باره د توحید د الله تعالیٰ کښ بغیر د پوهے نه

وَّيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطٰنٍ مَّرِيْدٍ ﴿٣﴾ كُتِبَ

او روان وی په هر شیطان سرکش پسے۔ مقرر شوېده

سره د زلزلے نه هیبت او کبراهټ مراد دے۔

ف۲:۔ په دے آیت کښ ذکر د هیبت شان د زلزلے دے نو که د زلزلے نه مراد اول تفسیر وی نو دا حالات چه په دے آیت کښ ذکر شوېدی په حقیقت باندے حمل دی او که د زلزلے دویم تفسیر وی نو دغه حالات په فرض او تقدیر باندے حمل دی یعنی فرض کړه که په هغه ورځ مرضعه او حامله موجود شی نو دا حال به ئے وی۔

فائده:۔ مرضع او مرضعة دواړه لفظونه زنانو د پاره استعمالیږی لیکن فرق ئے دا دے چه په کوم وخت کښ چه له په خوله کښ سینه ورکوی نو دغه وخت کښ ورته مرضعة وئیلے کیږی او په عام حالتونو کښ ورته مرضع وائی نو مطلب دا دے چه یو له ئے ورکول دا ډیر د مینے حال دے لیکن دغه وخت به مور د خپل یو نه غافله شی څکه چه هیبت به ډیر زیات وی او دا رنګ ذات حمل او حامل دواړه صفات د زنانه دی لیکن فرق دا دے چه ذات حمل هغه زنانه ده چه حمل ئے ښکاره وی او نزدے وی پیدائش ته او حامل ورته په عام اوقاتو د حمل کښ وئیلے کیږی۔ سُکٰرٰی، سکر هغه نشه ده چه مسکر څیز د استعمالولو نه پیدا کیږی دلته اول سکارى مجازی دے او دویم په معنیٰ حقیقی سره مراد دے۔

ف۳:۔ دا زجر دے منکرینو د توحید او قیامت ته چه جدال کوی په سبب د پوند تقلید کولو سره څکه چه فرمائیلے دی وَيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطٰنٍ مَّرِيْدٍ، مراد د شیطان نه انسی او جنی دواړه دی او مفسر ابن کثیر وئیلے دی دا حال د بدعتیانو ګمراهانو دے چه د ښکاره حق نه مخ کرځوی او د باطل تابعداری

عَلَيْهِ أَنَّهُ مَنْ تَوَلَّاهُ فَأَنَّهُ يُضِلُّهُ

په باره د هغه کښې چه څوک د هغه تابعداري اوکړي نو یقیناً هغه به ګمراه کوي دغه لره

وَيَهْدِيهِ إِلَىٰ عَذَابِ السَّعِيرِ ﴿۴﴾ يَا أَيُّهَا

او بیلنه کوي د دغه عذاب د ګرم اور ته - اے

النَّاسُ إِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِنَ الْبَعْثِ

خلقو که تاسو یئ په شک کښې د دوباره ژوندېدو نو واورئ دلیل)

فَإِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ

چه یقیناً پیدا ایش شروع کړې مونږ ستاسو د خاورې نه بیا د نطفې نه

ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُضْغَةٍ مُخَلَّقَةٍ

بیا د ټکړې د وینې نه بیا د ټکړې د غوښې نه چه پوره اندامونو والا وي

وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِنُبَيِّنَ لَكُمْ ۚ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ

(او بعضې) کم اندامونو والا وي د دې دپاره چه وضاحت اوکړو مونږ تاسو ته، او ساتو مونږ په رحمونو کښې

مَا نَشَاءُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ

څو مره وخت چه مونږ غواړو تر نیټې مقرر پورې بیا را اوباسو تاسو لره

کوي پرې دې هغه چه الله تعالی نازل کړې دي په رسول صلی الله علیه وسلم باندې او تابعداري کوي د مشرانو د ګمراهۍ چه بیلنه ورکوي بدعاتو ته په خپلو خواهشاتو او آراؤ سره - فِي اللّٰهِ په باره د توحید د الله تعالی کښې بِغَيْرِ عِلْمٍ نفي د هر علم مراد ده یعني دلیل شرعي ورسره نشته -

سلے نسبت د ګمراه کولو شیطان ته په سبب د وسوسو د هغه سره دے - كُتِبَ، د الکتابت نه یې مراد دے یا په معنیٰ د لزوم دے یعني د دغه تابعدارئ کول مستلزم دي ګمراهۍ لره - تَوَلَّاهُ، تابعداري او تقلید د هغه کوي رابن کثیر - او مراد د عذاب نه سبب د عذاب دے چه کفر او شرک او ګناهونه دي -

وَمِنْكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوْٓا اَشُدَّكُمْ

دا وړه بيا رسالله کوو ستاسې دپاره د دے چه اورسيږئ ځوانئ خپل ته ، او بعضے ستاسو نه

وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّتَوَفّٰى وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ

هغه دی چه مړ کړے شي او بعضے ستاسو نه هغه دی چه او گرځولے شي سپک

الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ

عمر ته عاقبت دا شي چه نه پوهيږي روستو د پوهے نه

شَيْـًٔا ؕ وَتَرَى الْاَرْضَ هَامِدَةً فَاِذَآ

په هيڅ څيز باندے ، او وينے ته زمکے لره . اوچه پړته پس کله چه

اَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ

را اوروؤ مونږ په هغے باندے اوبه تيارة شي دپاره د زرغونے او بوکه شي

وَاَنْبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِيْجٍ ⑤

او راتوکوي د هر قسم بوټي تازه نه .

ف ۵ :- په دے آيت کښې اثبات د بعث بعد الموت او اثبات د توحيد دے په دوه دليلو تو عقليو سره اول دليل پيدائش د انسان په مختلفو اطوارو او انقلاباتو سره چه هغه شپږ دی تروخت د پيدائش پورے بيا دوه حالتونه دی حال د ځوانئ او حال د ډير بوډا والی رچه هغے ته هرم وائي) او ورسره ذکر د مرګ دے. مِنْ تُرَابٍ، د دينه مراد پيدائش د آدم عليه السلام دے او ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ، نه مراد پيدائش د اولاد دے يا دا چه ټول انسانان د خاورو نه پيدا شويدي ځکه چه خوراکونه ټول د خاورو نه پيدا کيږي او د خوراکونو نه بدن او وينه او بيا د هغے نه نطفه جوړيږي- لِنُبَيِّنَ لَكُمْ، مفعول

پټ دے يعنې کمال د قدرت زموږ. او حال د نطفے او علقے او مضغے باندے خلويشت خلويشت ورځے تيريږي- وَنُقِرُّ فِي الْاَرْحَامِ کښې دغه ورځوته اشاره ده دا رنګ روستو د ساه اچولو نه هم څه موده په رحم کښې پاتے وي-

طِفْلًا :- په دے کښې معنۍ د تابعدارئ ده نو بچے چه څو مره پورے د مور تابع وي

ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّهٗ يُحْيِ

دا دلیل دے پدے خبرہ چہ اللہ تعالیٰ حق دے او یقینًا هغه به ژوندی کوی

الْمَوْتٰى وَأَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۶﴾

مړو لره او یقینًا هغه په هر څیز باندے قدرت لری۔

وَّأَنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيْهَا وَأَنَّ اللّٰهَ

او یقینًا قیامت راتلونکے دے نشته شک په هغے کښ او یقینًا اللہ تعالیٰ

يَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُوْرِ ﴿۷﴾ وَمِنَ النَّاسِ

ژوندی کوی به هغه څوک چه په قبرونو کښ دی۔ او بعضے د خلقو نه

هغے ته خوراک څښاک کښ محتاج وی نو ورته طفل وئیلے کیږی۔ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا، دا رنګ سورة نحل سره کښ تیرشوی دی (فرق) دا دے چه سورة نحل کښ بعد علم دے او دے آیت کښ من بعد علم دے یعنی که لږ علم وی هغه به هم زائیل شی او که ډیر علم وی هغه به هم زائیل شی هر کله چه سورة نحل کښ پس له آیت کښ دوه حالتونه ذکر کړیدی نو دا لږ علم دے او پدے آیت کښ ډیر حالتونه ئے ذکر کړه نو دا ډیر علم دے۔ واللہ اعلم بالصواب۔ وَتَرَى الْأَرْضَ، د دے ځائے نه دویم دلیل دے پیں اَتْش د بوټو د زمکے نه۔ او د هغے څلور حالتونه ئے ذکر کړے دی۔ او دلته خطاب مفرد ذکر کړیدے او تیرشوی دلیل کښ خطاب ئے جمع ذکر کړیدے وجه دا چه د څپل پیں اَتْش په حالاتو باندے هر څوک خبر یدلے شی او د زمکے نه د بوټو راوتلو په حال هر څوک نشی خبریدلے۔ اِهْتَزَّتْ، اهتزاز حرکت کولو ته وائی یعنی تخم چه په زمکه کښ دننه پرسیږی نو زمکه ورسره خوزیږی۔ یا مراد د اهتزاز نه قابل کیدل د زمکے دی د پاره د بوټو راویستلو دا هم حرکت حکمیه دے۔ ملا سک: پس دے دواړو آیتونو کښ نتیجه د دلیلونو مختلو ذکر کوی په پنځه طریقو سره اوله نتیجه توحید دے پس دے جمله کښ۔ بِأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ د حق یو معنی دا ده چه د هغه وجود یقینی دے تغیر، تبدیلی په هغه باندے نه راځی۔ دویمه معنی دا ده چه د هغه بندګی کول او الوهیت حق دی۔ دویمه نتیجه۔ أَنَّهٗ يُحْيِ الْمَوْتٰى، یعنی د خاورو نه انسان

مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًى

هغه څوک دي چه جګړه کوي په توحید د الله تعالیٰ کښې بغیر د پوهې نه او بغیر د هدایت نه

وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيْرٍ ۝۸ ثَانِيَ عِطْفِهٖ لِيُضِلَّ

او بغیر د کتاب رڼا کوونکي نه. تاوی ده ډډه خپله دے د پاره چه ګمراه کړي نور خلق

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ لَهٗ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ

د لارے د الله تعالیٰ نه، د ده د پاره په دُنیا کښې شرمندګي ده

پیدا کولے شي او د زمکے نه تازه بوټي را ویستے شي نو مړي هم دوباره ژوندي کولے شي. دریمه نتیجه وَاَنَّهٗ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ. یعني قدرت د الله تعالیٰ په پیدا کولو د انسان او د بوټو مستلزم دے قدرت لره په هر څیز باندے. څلورمه نتیجه وَاَنَّ السَّاعَةَ، مراد د دینه ساعت د فنا د ټول عالم دے یعني لکه چه هر انسان باندے فنا راځي او هر بوټے او چیړي نو دا دلیل دے چه ټول عالم به فنا شي یا مراد د ساعت نه قیام د ورځ د حساب دے یعني په انسانانو باندے د دے نعمتونو ذکر کړے شوے د پاره ورځ د حساب به قائم شي چه په هغے کښې به د شکر د نعمتونو تپوس کیږي.

پنځمه نتیجه وَاَنَّ اللّٰهَ یَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُوْرِ، لکه چه د خاورو نه یې انسان پیدا کړو او د وچے زمکے نه شنه بوټي پیدا کړه نو دا رنګ د خاورو د قبرونو نه بیا هم انسان پیدا کولے شي. د بعث، معنیٰ روح په بدن کښې اچول دي روستو د راوتلو د قبر نه او مَنْ فِي الْقُبُوْرِ نه بدن مراد دے یعني بدنونو کښې بیا روح اچوي.

ف:- پدے آیت کښې زجر دے په ج. ل کولو د اهل عنو عناد یانو د حق سره او مراد د جدال فِي اللّٰهِ نه جدال کول دي په توحید د الله تعالیٰ کښې او په یاره د دوباره ژوندي کولو کښې. عِلْمٍ نه مراد علم عقلي استعدادي دے. هُدًى نه مراد علم نقلي دے د هدایت والو نه. کِتٰبٍ مُّنِيْرٍ، نه مراد کتاب وحي دے ځکه چه زیاته رڼا په کتاب د الله تعالیٰ کښې ده یعني دریے قسمه دلیلو نه ورسره نشته یعني اګرچه عالم دے لیکن جدال په حق کښې بے دلیله کوي.

وَّنُذِيقُهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَذَابَ الْحَرِيقِ ⑨

او او به څکوو دهٔ لره د قیامت په ورځ عذاب د اور سوځوونکی۔

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدٰكَ وَاَنَّ اللّٰهَ

دا به د چه د هغه عملونو چه وړاندے لیږلی دی لاسونو ستا او بیشکه الله تعالیٰ

لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ⑩ع وَمِنَ النَّاسِ

نه دے ظلم والا په بندګانو خپلو باندے۔ او بعضے د خلقو نه هغه دی

مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ فَاِنْ اَصَابَهٗ

چه بندګی د الله تعالیٰ کوی په شک باندے نو که اورسیږی دهٔ ته

خَيْرُ ِۨاطْمَاَنَّ بِهٖ وَاِنْ اَصَابَتْهُ فِتْنَةُ ِۨ

خیر کلک شی په هغه او که اورسیږی دهٔ ته تکلیف

انْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهٖ خَسِرَ الدُّنْيَا

اپوته شی په مخ خپل باندے. تاوانی کړه دهٔ دُنیا

سو :۔ عِطْفِهٖ، یو اړخ ته وتیلے کیږی یعنی اړخ کرځوی د حق د اوریدلو نه د دے د پاره چه خپل مقلد یتو لره ګمراه کړی لکه سورة انعام سلا۲۶ کښ دی مفسر قرطبی د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه دا (رمل کوریدے آیت کښ) هر بدعتی دے۔ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ، کښ اشاره ده چه دے لکه چه پخپله ګمراه دے نو نور خلق ګمراه کوی یعنی باطل پرست عالم دے۔ په نُذِيقُهُ کښ اشاره ده چه د ګرم والی او سوزش احساس به کولے شی نشه به نه وی۔ دے روستو دواړو جملو کښ تخویف دنیوی او اخروی دے۔

سلا:۔ یعنی د عذاب د پاره دوه سببه دی یو عمل د مجرم او دویم عدم ظلم (یعنی عدل د الله تعالیٰ۔ یعنی مجرم له سزا ورکول د الله تعالیٰ د عدل تقاضا ده او دا په سورة آل عمران سلا۱۸۲ کښ هم تیر شویدی۔ ظَلَّامٍ، صیغه د فاعل ذو کذا ده یعنی ذو ظلم، دا صیغه د مبالغے نه ده۔ او د ذٰلِكَ نه مخکښ یقال (او به وئیلے شی) پټ دے۔

وَالْاٰخِرَةَ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِیْنُ ﴿۱۱﴾ یَدْعُوْا

او آخرت لره ، دا تاوان دے ښکاره - رامداد شه وائی

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا یَضُرُّهٗ وَمَا لَا یَنْفَعُهٗ ؕ

سوا د الله تعالیٰ نه هغه څانه چه ضرر نشی ورکولے دهٔ ته او هغه څانه چه نفع نشی ورکولے ده ته

ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِیْدُ ﴿۱۲﴾ یَدْعُوْا لَمَنْ

دا گمراهی ده لرے د حق نه - بندگی کوی د هغه چا چه

سلا:- پخکښې دوه قسمونه د خلقو بیان شول او س دے آیت کښې دریم قسم ذکر کوی په طریقه د زجر سره او پدیکښې منافق او مفاد پرست مراد دے یعنی دین اسلام منی یا د دین کار کوی د دنیا په غرض سره که دغه غرض حاصلیږی نو اسلام منی او عمل د دین کوی او که غرض دنیوی نه حاصلیږی نو بیا اعراض کوی- او د دے مصداق پدے وخت کښې ډیر موجود دے - توحید او سنت پدے غرض او منی چه مال د دنیا او عزت د دنیا به ملاؤ شی او قرآن لولی پدے اراده چه اجرت به ملاؤ شی جنازے له ورځی پدے نیت چه څه مال به حاصل کړی او چه دا مقصد ورته حاصل نشی نو بیا هیڅ نه منی او نه عمل کوی. حَرْفٍ په معنیٰ د شک دے یعنی په توحید او دین باندے یقین نه لری- یا په معنیٰ د طرف او اړخ دے یعنی په طرف او ډډه سره او سی پوره اسلام کښې نه داخلیږی- وَجْهِهٖ، نه مراد دین باطل دے خَسِرَ الدُّنْیَا، تاوان د دنیا دا دے چه په مسلمانانو کښې د منافقت د وجے نه ذلیل شی او نور خلق هم ورباندے اعتبار نه کوی- او تاوان د آخرت دا دے چه څه عبادتونه ئے په منافقت سره کړیدی هغه ټول به برباد شی- خَسِرَ، لازمی دے نو حرف د فی پټ دے یا متعدی دے - خَیْرٌ، نه مراد د دنیا فائدے دی- ځوے کیدل ، مالدار کیدل ، د بدن صحت، د دنیا عزت او اقتدار- فِتْنَةٌ، نه مراد تکلیفونه دی یعنی غریب شی، قحط راشی اولاد ئے نه کیږی- بیمار شی، د امامت او ترریس یا د یو دنیوی مرتبے نه محروم شی.

سلا:- دا بیان د انقلاب دے یعنی شرک کوی او دا رد دے په شرک فی الدعاء باندے - یَدْعُوْا مراد د دے حاجتونه غوختل فریاد ونه کول مدد غوښتل روزی طلب کول دی (ابن کثیر) - مَا لَا یَضُرُّهٗ وَمَا لَا یَنْفَعُهٗ، مراد دا دے

ضَرُّهٗٓ اَقْرَبُ مِنْ نَّفْعِهٖ ؕ لَبِئْسَ الْمَوْلٰی

ضرر د بت کی د هغه زیات نزدے دے د فائدے د هغه نه، خامخا ناکاره دوست دے

وَلَبِئْسَ الْعَشِیْرُ ﴿۱۳﴾ اِنَّ اللّٰهَ یُدْخِلُ الَّذِیْنَ

او خامخا ناکاره ملګرے دے. یقیناً الله تعالٰی داخلوی به هغه کسان

چه په پریخودلو د دعا سره ضرر نشی ورکولے او دعا کولو سره نفع نشی ورکولے یا مطلق نیشتوالے د ضرر او نفع رسولو مراد دے او دا غوره قول دے.

۱۳:- دا هم رد دے په شرک فی الدعا باندے یا په دے کښ سبب د شرک ذکر کوی چه هغه تابعداری کول د مشرکانو دی یعنی رد دے په شرک فی الحکم باندے
په دے آیت کښ اشکال دے په څو وجو سره اول دا چه تیر شوی آیت کښ د معبود من دون الله نه نفی د ضرر او د نفع کړیده او په دے آیت کښ ضرر او نفع ئے ورله ثابت کړیدی؟
جواب په دوه طریقو سره دے اول دا چه دے آیت کښ مراد مشرکان او مبتدعین پیران او ملیان دی چه خلق ګمراه کوی او خلقو ته بعضے دنیوی فائدے د مال او خوراک هم ورکوی لیکن د دغه خلقو ایمان او دین ته نقصان ورکوی نو ضرر ئے ډیر زر ور رسیږی په نسبت د نفع نه. او په مخکښ آیت کښ هغه نیکان دی چه مشرکانو د هغوی عبادات کړیدی او هغوی ته علم نشته دے. دویم جواب دا دے په دے آیت کښ د ضرر نه مراد ګناه او عذاب دے چه د شرک په وجے سره مشرک ته رسیږی او د نفع نه مراد فائده ده په ګمان د مشرک کښ.
دویم اشکال دا دے چه لَمَنْ ضَرُّهٗٓ په ظاهر کښ مفعول د یدعوا دے او لام خو په ابتداء د کلام کښ راځی او مفعول خو مینځ د جملے وی؟
اول جواب دا دے چه د یدعوا مفعول حذف دے یدعوا غیر الله ، او لَمَنْ موصول سره د صلے نه مبتدا ده او لَبِئْسَ الْمَوْلٰی ئے خبر دے.
دویم جواب دا دے چه د دے لام محل جمله صله ده (ضره اقرب) یعنی تقدیم ئے کړے شویدے او دا جائز دے په کلام د عربو کښ.
دریم جواب دا دے چه یدعوا په معنیٰ د یقول دے او لمن آه

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ
چه ایمان ئې راوړې او عملونه ئې کړي دي په تابعدارئ د سنت جنتونو ته چه بهیږي
مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا
لاندې د هغې نه ويالې ، يقيناً الله تعالىٰ کوي هغه څه چه
يُرِيْدُ ﴿١٤﴾ مَنْ كَانَ يَظُنُّ اَنْ لَّنْ يَّنْصُرَهُ
او غواړي - هغه څوک چه ګمان کوي چه هيچرې به امداد او نکړي

مقوله ده او هغه جمله وي د هغې په صدر (اول) کښې لام داخليدې شي۔
دريم اشکال يدعوا مخکښې آيت کښې ذکر کړې شوېدې نو په دې آيت کښې تکرار ولې اوکړو ؟
اول جواب :- يدعوا په معنیٰ د يطيع دې لکه په سورة النساء ١١٧ کښې دي يعنی طاعت کوي په شرک او بدعاتو کښې د مشرکانو مقتدا ګانو -
دويم جواب :- يدعوا مکرر د پاره د اظهار د کثرتِ دُعا د غير الله دې۔
فائده :- هر کله چه مقتدا ګمراه کوونکې دوه قسمه دي يو لوې چه خلقو له د ځان نه دين جوړوي لکه چه پير او مرشد ګنړلې کيږي نو هغه مولیٰ دې او دويم د شرک او بدعاتو ملګرې چه بل ملګرې ته ګناه ښائسته کوي او د هغه سره ملګرتيا کوي پير بائي ورته وئيلې کيږي نو هغه عشير دې۔
سځ :- په دې آيت کښې څلورم قسم د خلقو ذکر دې چه هغه مؤمنان دي او د هغوی د پاره بشارت اخرويه دې۔
اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ، په دې کښې جواب دې که څوک وهم اوکړي چه الله تعالىٰ ولې بعضې خلق ګمراه کوي او بعضو ته هدايت کوي ؟
حاصل جواب دا دې چه الله تعالىٰ په خپله اراده سره د ډير حکمتونو د پاره کار کوي۔

اللّٰهُ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ
اللّٰه تعالٰی دَ دهٔ سره په دُنیا او آخرت کښې نو اوکښه دِ کړی رسی

اِلَى السَّمَآءِ ثُمَّ لْيَقْطَعْ فَلْيَنْظُرْ هَلْ
آسمان ته بیا دے پریکړی نو او دے گوری آیا

يُذْهِبَنَّ كَيْدُهٗ مَا يَغِيْظُ ۝۱۵ وَكَذٰلِكَ
بوځی به دا چل دَ دهٔ هغه څه لره چه دَ دے غصه کړینه. او دا رنگ

ف:- دا آیت زجر دے او تعلق لری دَ ملا سره او دیا یکښې ډیر توجیهات دی اول ربط او توجیه دا ده چه هرکله دغه منافق ته په دین دَ محمد صلی الله علیه وسلم کښې فتنه او مصیبت اورسی او مدد دَ الله تعالیٰ ترینه روستو شی نو دے گمان کوی چه الله تعالیٰ دَ دے نبی سره امداد نه کوی او غصه شی رځکه چه دَ امتی سره نصرت نه کیدل دا دَ دے وجے نه چه دَ نبی سره نصرت نشته دَ دے سړی په خیال کښې) پدے تفسیر سره ضمیر دَ ینصره راجع دے مَنْ ته. دَ فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ نه مراد دا دے چه رسیٔ دے دَ چهت سره اویزانه کړی او خپل ځان له دے مرئ خفه کړی یعنی دا سړے که دَ غصے دَ وجے نه ځان هلاک کړی نو هیڅ فائده ترے نه راځی نو ولے غصه کیږی نو هَلْ يُذْهِبَنَّ، استفهام انکاری دے. پدے توجیه سره مراد دَ آسمان نه چهت دے او ثُمَّ لْيَقْطَعْ په معنیٰ دَ مرئ خفه کولو (پهانسی کولو) دے.
دویمه توجیه سره دَ ربط نه دا ده چه دَ دے منافقانو او مشرکانو دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره دشمنی پیدا شویده او دوی غواړی چه الله تعالیٰ دِ دَ دے نبی سره هیڅ امداد اونکړی، نو امداد او وحی خو راځی دَ آسمان نه نو دے دِ دَ رسیٔ په ذریعه آسمان ته اورسی او دَ هغه ځائے نه دِ امداد قطع کړی آیا پدے تدبیر به دَ دهٔ مقصد حاصل شی ؟ (نه حاصلیږی) پدے تفسیر ضمیر راجع دے نبی صلی الله علیه وسلم ته. او دَ کمان نه مراد تمنا کول دی او سماء نه مراد آسمان دے. او قطع نه مراد بندول دَ وحی او دَ امداد الهی دی.

أَنْزَلْنٰهُ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ

نازل کړي دي موږ دا قرآن آيات ښه واضح او يقيناً الله تعالىٰ هدايت کوي

مَنْ يُّرِيْدُ ﴿۱۶﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

هغه چا ته چه الله تعالىٰ يې اراده اوکړي ـ يقيناً هغه کسان چه ايمان والا دي

او هل يذهبن کښې استفهام انکاري دے ـ

دريمه توجيه دا ده چه ضمير راجع دے دغه شخص ته يعنى دغه شخص چه فتنه او تکليف کښې اخته شوے دے گمان کوي چه الله تعالىٰ ما سره هيڅ کله امداد نه کوي او پدے باندے خفه او غصه وي نو دے د دغصے د وجے نه ځان پهانسي کړي او ځان د هلاک کړي نو د دهٔ پدے هلاکولو د دهٔ د غصے سبب نه زائيله کيږي ـ

څلورمه توجيه دا ده چه مراد د دينه هغه مؤمن دے چه په مصيبتونو کښې مبتلا شي او د دهٔ سره امداد نه کيږي نو دے د الله تعالىٰ نه نا اميدي کوي او نزدے ده چه د توحيد نه مرتد شي نو دهٔ لره دا علاج او تدبير پکار دے چه سوچ اوکړي چه کله د الله تعالىٰ نه دُعا کانے غواړي او آسمان سره يې ربط وي او کله چه الله تعالىٰ سره دا رابطه (بالفرض) پريږدي او دُعا کانے نه غواړي نو کوم حالت کښې به د دهٔ زړهٔ ته اطمينان حاصليږي، ضروره دا ده چه په اول حال کښې به د دهٔ اطمينان وي نو پدے تدبير سره د دهٔ غصه به زائيله شي پدے تفسير کښې ضمير د ينصره دغه شخص ته راجع دے ـ

فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ اِلَى السَّمَآءِ آه په طريقه د تمثيل سره دے او هَلْ يُذْهِبَنَّ، کښې استفهام تقريري دے ليکن دا توجيه د ظاهر نه ډيره بعيده معلوميږي ـ

ف۱۶ ـ پدے کښې ترغيب دے قرآن کريم ته يعنى لکه چه موږ امر کړيدے په صبر سره او د نصرت وعده هم کړيده دغه شان موږ دا قرآن کريم هم د تسلئ او د هدايت او استقامت د پاره راليږلے دے ـ يا لکه چه موږ اثبات د توحيد او قيامت اوکړو په دليلونو عقليو سره دغه شان د دے د پاره موږ قرآن کريم نازل کړے دے ـ وَ اَنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ يعنى قرآن کريم

وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِـِٕيْنَ وَالنَّصٰرٰى

او هغه کسان چه يهوديان دي او صابيان او نصرى

وَالْمَجُوْسَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا ۖ اِنَّ اللّٰهَ

او مجوسيان دي او هغه کسان چه شرک ئے کړيدے. يقيناً الله تعالى

يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ

به جدائى راولى په ميئځ د دوى کښ په ورځ د قيامت . يقيناً الله تعالى

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿١٧﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ

په هر څيز باندے حاضر ناظر دے. آيا نه وينے ته چه يقيناً الله تعالى

کښ اگرچه د هدايت د پاره ښکاره آيات شته ليکن هدايت په اختيار او ارادے د الله تعالى سره حاصليږى.

مکا :- په دے آيت کښ ذکر د فرقو مشهورو د خلقو دے چه يوه فرقه د مؤمنانو ده چه د آيات بينات نه فائده اخلى او نورے فرقے د دغه آيا تو نه اعراض کوونکی دی په دنيا کښ مشترک دی ليکن قيامت کښ به الله تعالى د دوى په ميئځ کښ فيصله اوکړى مؤمنان به جنت ته داخل کړى او نور به جهنم ته داخل کړى.

اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ، دليل د يَفْصِلُ دے يعنى الله تعالى په هر څيز خبر دے نو حقه فيصله به اوکړى.

فائده :- ابن عطيه په تفسير کښ د قتاده نه روايت کړيدے چه ټول اصول اديان شپږ دى پنځه د شيطان دى او يو د رحمٰن دے.

صَابِئُوْنَ ، هغه قوم دے چه د ملائکو عبادت کوى او کعبے ته مخ کوى او توحيد ( پخپل گمان کښ ) منى او زبور کتاب لولى او څه تفصيل ئے په تفسير د سورة بقرة کښ تير شوے دے.

او مجوسيان هغه دى چه د اور او رنړا او نمر او سپوږمۍ عبادت کوى.

وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا . په دے کښ غير کتابى شرک کوونکى مراد دى د هغوى بل نوم نشته ځکه ئے په اشرکوا سره ذکر کړيدى نو مخکښ بعضو لو کښ هم شرک شته ليکن د اعطف د وجے د مغايرت د نوم نه دے.

يَسْجُدُ لَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي

سجده کوي هغه څوک چه په آسمانونو کښې دي او هغه څوک چه په

الْاَرْضِ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُوْمُ

زمکه کښې دي او نمر او سپوږمۍ او ستوري

وَالْجِبَالُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَآبُّ وَكَثِيْرٌ

او غرونه او ونې او ژوندي سر او ډير

مِّنَ النَّاسِ ؕ وَكَثِيْرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ ؕ

د خلقو نه . او ډيرو باندې پوره شوې ده فيصله د عذاب ،

وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ ؕ

او هغه څوک چه سپک کړي هغه لره الله تعالی نو نشته هغه لره هيڅوک عزت ورکوونکي

اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ؕ ⑱ هٰذٰنِ

يقيناً الله تعالی کوي هغه څه چه اوغواړي - دا دوه

خَصْمٰنِ اخْتَصَمُوْا فِيْ رَبِّهِمْ فَالَّذِيْنَ

ډلې دي چه جګړه کوي په باره د رب د دوي کښې پس هغه کسان

۱۸:- دا آيت دليل عقلي دے چه سجود د ټول عالم الله تعالی ته دليل دے د الله تعالی په توحيد او په عظمت باندے او په آيت کښې هغه مخلوقات يې ذکر کړے دي چه مشرکانو د هغوي عبادت کړيدے تو د هغه معبودانو باطلو عجز بيانوي - ابن عطيه ذکر کړے دي چه حمير قبيلې د نمر عبادت کوو او کنانه د سپوږمۍ او تميم د دبران ستوري او لخم د مشتري ستوري او طي د ثريا او قريش د شعرى او اسد د عطارد او ربيعه د مرزم ستوري عبادت کوو او د غرونو او د ونو نه معبودان جوړوي -

الدَّوَآبُّ، کښې بقر او مار او چرګ داخل دے چه د هغوي عبادت کړے

كَفَرُوْا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّنْ نَّارٍ ط

چه کفر ئې کړیں دے جوړ ولے به شي دوی دَ پاره (دَ ډیرو ټکړو نه) جامے دَ اور

يُصَبُّ مِنْ فَوْقِ رُءُوْسِهِمُ الْحَمِيْمُ ﴿١٩﴾

اچولے به شي پورته دَ سرونو دَ دوی نه یشنے اوبه۔

شو یں دے۔ نو پں دے آیت کښ دلو دَ مشرکانو ته اشاره ده په طریقه دَ رد کولو سره په معنوی یا ندے۔

وَكَثِيْرٌ مِّنَ النَّاسِ، نه روستو لفظ دَ مرحومون پټ مراد دے۔ یا دا عطف دے په مَنْ فِي الْاَرْضِ یا ندے دَ قبیلے دَ عطف دَ خاص نه په عام باندے۔

وَكَثِيْرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ، نه روستو خبر حذف دے یعنی مهانون زلیلون او مراد په آیت کښ سجده په رضا او په توحید سره ده یا مراد دَ سجدے نه عام دے که طوعًا وی یا کرهًا نو دَ كَثِيْرٌ حَقَّ نه روستو تقدیر ته حاجت نشته دا په مخکښ باندے عطف دے۔

وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ، مراد دَ اهانت نه ترک دَ سجود الله دے۔

يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ، په فعل کښ اهانت او اکرام دواړه داخل دی۔

سوال۔ هٰذٰنِ کښ اشاره ده هغه دوه فریقو مقابلینو ته چه ذکر شوی دی تیر شوی دواړه آیاتو نو کښ هغوی اګر چه ډیرے ډلے دی لیکن مرجع دَ هغوی دوه ډلو ته ده۔ او دَ دوی اختصام او اختلاف همیشه دے په باره دَ توحید دَ الله تعالیٰ او دَ صفاتو دَ هغه کښ یعنی دَ دوی اختلاف دَ دُنیا په مقاصدو باندے بناء نه دے۔ بیا یو فریق ته تخویف او بل فریق ته بشارت تفصیلًا ذکر کوی۔ او دا دَ دوی په مینځ کښ فیصله ده کوم چه په سلا کښ ذکر وه۔

قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّنْ نَّارٍ، مراد تر ینه دا دے چه دَ جهنم دَ جنس نه به دَ دوی دَ پاره جامے جوړولے شي لکه سورة ابراهیم ۵۰ کښ دی یا دا کنایه ده چه اور به په دوی باندے داسے احاطه اوکړی لکه جامه په بدن باندے.

اوله وجه غوره ده۔ مِنْ فَوْقِ رُءُوْسِهِمْ، معنیٰ حقیقی مراد ده لکه غسل کول چه دی یا مراد تر ینه دَ دوی په خُلو کښ دننه او به په زور سره اچول دی۔

يُصْهَرُ بِهٖ مَا فِيْ بُطُوْنِهِمْ وَالْجُلُوْدُ ﴿٢٠﴾

ویلې کیدلے به شي په هغې سره هغه څه چه د دوی په خیټو کښ دی او څرمنې.

وَلَهُمْ مَّقَامِعُ مِنْ حَدِيْدٍ ﴿٢١﴾ كُلَّمَا

او دوی (د وهلو) دپاره ګرزونه دی د اوسپنې نه. هر وخت چه

اَرَادُوْٓا اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ

او غواړي چه اووځي د اور نه د غم د وجې نه

اُعِيْدُوْا فِيْهَا ۗ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿٢٢﴾

واپس به ګرځولے شي په هغې کښ (وټیلے کیږي به) او څکئ عذاب د اور سوځونکی.

۲ ع ۱۲ ۹

سن۲۰ :- د دے تفسیر په حدیث د ترمذی کښ موجود دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلے دی چه حمیم به د دوی د سر و تو دپاسه واچولے شي نو اوبه رسی د ته خیټو د دوی ته نو د دوی د خیټو نه به لاندے اوبهیږی ترڅو پورے او دا اصهر دے بیا به دوباره د دوی په تو ته جوړ کړے شي۔

وَالْجُلُوْدُ، د دے سره مناسب فعل پټ مراد دے یعنی تحرّق او تشوی یعنی څرمنے به اوسوځولے شي یا وریتے به کړلے شي۔

سن۲۱، سن۲۲ :- لَهُمْ یعنی یضربهم د دوی د وهلو دپاره۔

مَقَامِعُ، د قمع نه ماخوذ دے ذلیل کولو او ټکولو ته وئیلے کیږی یعنی د ذلیل کولو په طریقه به وهلے کیږی او تختیں و ته به ئے نه پریږدی که صرف اراده د تختیں لو کوی نو په دغه ګرزونو سره به ئے وهی او دا رنګ سورة سجده سن۲۰ کښ دی۔

مِنْ غَمٍّ، مِنْ اجلیه دے او غَمٍّ کښ تنوین دپاره د عظمت دے غټ غم چه عذاب د اور دے۔

اُعِيْدُوْا فِيْهَا، واپس کولے به شي په وهلو د ګرزونو سره۔

إِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَمِلُوا

يقيناً الله تعالىٰ به داخلوي هغه كسان لره چه ايمان ئې راوړے دے او عملونه ئې كړي

الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

په تابعدارئ دَ نبي سره جنتونو ته چه بهيږي په لاندے دَ هغې نه ويالے

يُحَلَّوْنَ فِيْهَا مِنْ اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ

ښائسته كيږے به شي دوي په هغې كښې په بنګړو دَ سرو زرو

وَّلُؤْلُؤًا ۭ وَلِبَاسُهُمْ فِيْهَا حَرِيْرٌ ﴿٢٣﴾

او ملغلرے ، او جامے دَ دوي په هغې كښې به ريښم وي

وَهُدُوْٓا اِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ ۚ

او هدايت وركړے شوے دَ دوي پاكې وينا ته ،

٢٣ ۔ مخكښې يو خصم ئې ذكر كړو په طريقه دَ تخويف اخروي او س پس ـ ے آيت كښې ذكر دَ بل خصم دے په طريقه دَ بشارت اخرويه ۔ په تخويف كښې عذاب دَ شرمندګۍ او اهانت ئې ذكر كړے وو نو په دے بشارت كښې ډير اكرام او عزت ئې ذكر كړے دے۔

اَسَاوِرَ به صرف په لاسو كښې وي او وَلُؤْلُؤًا به په ټول بدن باندے وي ځكه ئې لُؤْلُؤًا جدا ذكر كړو او داسے په سورة فاطر ٣٣ كښې دي۔او سورة دهر ٢١ كښې فِضَّة (سپين زر) ذكر كړيدي اشاره ده اقسامو دَ اساورو ته چه بعضے به ذهب دَ (سرو زرو) وي او بعضے به دَ سپينو زرو نه وي۔

سورة دهر كښې ئې لوخي دَ جنت هم دَ سپينو زرو ذكر كړي دي تو بنګړي ئې هم دَ سپينو زرو ذكر كړے دي او په دے سورت كښې دَ تقابل دَ وجے دَ جنتيانو ډير اكرام مقصد وو نو دَ دے وجے نه ذهب ئې ذكر كړل۔

وَهُدُوٓا اِلٰى صِرَاطِ الْحَمِيْدِ ﴿۲۴﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ

او هدايت ورکړے شوے وو دوی لارې د ستائيلے شوی ذات ته. يقيناً هغه کسان

كَفَرُوْا وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

چه کفر ئے کړيدے او منع کوی د لارے د الله تعالىٰ نه

وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الَّذِيْ جَعَلْنٰهُ لِلنَّاسِ

او د مسجد حرام نه هغه چه ګرځولے دے مونږ هغه د خلقو د پاره

سَوَآءَ ۨالْعَاكِفُ فِيْهِ وَالْبَادِ ۭ وَمَنْ يُّرِدْ

برابر ديره په هغے کښ او مسافر او چاچه اراده اوکړه

فِيْهِ بِاِلْحَادٍۢ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ

په هغے کښ د کږليچ په ظلم سره او به څکوو هغه ته د عذاب

اَلِيْمٍ ﴿۲۵﴾ وَاِذْ بَوَّاْنَا لِاِبْرٰهِيْمَ مَكَانَ

دردناک نه. او هر کله چه ځائے ورکړو مونږ ابراهيم عليه السلام ته په ځائے

سـ۲۴. دے آيت کښ سبب د بشارت ئے ذکر کړے دے طَيِّبِ الْقَوْلِ نه مراد کلمه د توحيد ده. او صِرَاطِ الْحَمِيْدِ، نه مراد قرآن پاک دے الْحَمِيْدِ، اشاره ده چه دغه جنت والو په دُنيا کښ د الله تعالىٰ ډير حمد وئيلے دی دا سے حمد ونه چه د قرآن کريم نه ئے ايزده کړے وی.

سـ۲۵:. په دے آيت کښ تخويف دے هغه قسم کافرانو ته چه د هغوی کفر متعدی دے او نبکاره خصومت کوی ځکه چه د سبيل الله نه منع کوی. وَيَصُدُّوْنَ، صيغه د مستقبل ئے راوړله اشاره ده چه دوی منع کول هر وخت کوی د دے وجے نه دا خاص نه دے په حديبيه پورے لکه چه بعضے مفسرينو ليکلے دی.

وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ، نه مراد خاص مسجد دے چه په هغے کښ په اتفاق د اهل علمو سره مقيم او مسافر برابر دی. او که د دے نه مراد ټول حرم وی په ذکر د جزء او مراد تر ينه کُل وی نو د هغے

الْبَيْتِ أَنْ لَّا تُشْرِكْ بِي شَيْئًا وَّطَهِّرْ

د بیت الله کښې (او وئیل موتږ) چه شریک مه جوړوه ما سره هیڅ څیز او پاک ساته

بَيْتِيَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْقَآئِمِيْنَ وَالرُّكَّعِ

کور زما د پاره د طواف کوونکي او په ولاړه سره (عبادت کوونکو) او رکوع

السُّجُوْدِ ﴿٢٦﴾ وَأَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ

سجده کوونکو لره - او اعلان اوکړه په خلقو کښې د حج

په برابر والی کښې د علماؤ اختلاف دے او دا قیل د مزین قباحت د دوی دے چه دا سے ځائے چه مقیم او مسافر پکښې برابر حقوق لري او دوی د هغې نه منع کول کوی -

وَالْبَادِ، په اصل کښې البادی وو نو په وقف کښې یا حذف شوه په کتابت او تلفظ دواړو کښې - روستو لفظ پټ مراد دے د اِنَّ خَسِرُوْا وَهَلَكُوْا -

وَمَنْ يُّرِدْ، کښې اشاره ده چه په حرم کښې په اراده د ګناه سره هم عذاب دے او دا د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دے -

بِظُلْمٍ، بَآءِ سببیه ده او متعلق دے د یرد سره یا بَآءِ په معنیٰ د الی سره ده متعلق دے د الحاد سره عام دے شرک او کفر کول، ناحق قتل کول، ښکار کول ونے پریکول، بغیر د احرام نه داخلیدل (سره د اراده د عمرے یا حج نه) کنځل کول، قسمونه کول، وغیره - یعنی هر کله چه صرف اراده د ګناه سره په حرم کښې د عذاب استحقاق دے نو د دینه په منع کولو سره خود لوے عذاب استحقاق دے صحیح حدیث کښې وارد دی چه درے قسمه کسان الله تعالیٰ ته ډیر مبغوض دی اول د هغوی نه الحاد کوونکے دے په حرم کښې دویم طلب کوونکے په اسلام کښې طریقه د جاهلیت دریم طلب کوونکے د قتل د مسلمان -

٢٦۔ خلاصه :۔ د دے آیت نه دویم باب دے تر ٣٨ پورے په دیکښې دلیل نقلی دے د ابراهیم علیه السلام نه د پاره د رد د شرک فعلی او تفصیلی بیان د مسائیلو د حج دے د پاره د توحید فعلی په تعظیم کولو د حرمات الهیه او تحلیل او د تحریمات غیر الله او تعظیم د شعائر الله او تحذیر دے

يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ

نو راځي به تاته پیاده او سواره په هره تیزرفتاره سورلۍ چه راځي به

مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ﴿٢٧﴾ لِّيَشْهَدُوا مَنَافِعَ

د هرې لارې لرې نه · د دې دپاره چه حاضر شي فائدو

د نذر د غیرالله او بیان د هلاکت د مشرک دے په تمثیل سره.

تفسیر:- په دے آیت ۲۶ کښ دلیل نقلي دے د ابراهیم علیه السلام نه دپاره درد د شرک۔ او هر کله چه تیرشوی آیت کښ د الحاد في الحرام نه منع اوکړه نو دے آیتونو کښ د طاعة خاصه د حرم ذکر کوی او هر کله چه لوے مقصد د بناء د بیت الله د شرک ختمول دی نو د دے وجے نه بَوَّأْنَا. ځاے دپاره د اقامت ورکول یا معتن کول آنْ لَّا تُشْرِكْ، وقتنا لفظ پټ دے.

آنْ لَّا تُشْرِكْ بِي ورسره ذکر کړو او آیت کښ طعن دے په مشرکینو د مکه باندے چه هغوی د خپل نیکه (ابراهیم علیه السلام) نه مخالفت کوی۔ وَطَهِّرْ بَيْتِيَ، تطهیر د بیت الله عام دے د شرک او کفر او بدعاتو او نورو پلیتو نه پاک ساتل۔ او مقصود په دے سره اعلان د توحید دے دپاره د دے چه څوک بیت الله په شرک سره پلیت نکړی هم دا سے په سورة بقره ۱۲۵ کښ تیرشوېدی هلته کښ ئے عکوف هم ذکر کړے وو ځکه چه د طواف نه روستو عکوف بهترعبادت دے او دے سورت کښ عاکف ئے تیرشوی آیت کښ ذکر کړے دے نو په دے آیت کښ ئے ذکر نه کړو۔

لِلطَّائِفِينَ، ابن کثیر وئیلی دی چه طواف په ټولو عباداتو کښ دیرخاص دے په بیت الله پورے تونشی کیدے په هیڅ حصّه د زمکه کښ ماسوا د کعبے نه۔ نو د قبرونو طواف کول حرام دی په اتفاق سره بلکه یره د کفرده لکه چه بحرالرائق کښ لیکلی دی۔

۲۷:- روستو د اعلان د توحید نه اعلان د حج دے۔ په دے ترتیب کښ اشاره ده چه حاجی باندے د حج نه وړاندے د شرک پریخودل ضروری دی او دا رنګ اشاره ده چه حج دا سے عبادت دے چه په هغے کښ د توحید عملی تعلیم دے ځکه په دے کښ سفر کول کور د الله تعالیٰ نه په نیت د

لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ فِيٓ اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ

خپلو ته او یاد کړي نوم د الله تعالیٰ په ورځو معلوموکښ

عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ

په هغه څه چه ورکړے دي دوی ته الله تعالیٰ د څاروۇ نه.

فَكُلُوْا مِنْهَا وَاَطْعِمُوا الْبَآئِسَ الْفَقِيْرَ ﴿۲۸﴾

پس خورئ د هغې نه او خوراک ورکوئ مصیبت وهلی محتاج ته۔

عبادت سره او طواف کول دی او څاروی د الله تعالیٰ په نوم باندے نذر کول او د هغۀ په نوم سره ذبح کول دی او دا ټول د توحید اعمال دی.
رِجَالًا، ئے ځکه مخکښ راوړو چه بعض علماؤ وئیلی دی چه پیاده حج کښ ډیر ثواب دے۔ لیکن راجح قول دا دے چه په سورلئ سره غوره دے ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم په سورلئ سره حج کړے دے تو رِجَالًا د پیاره د نزدے خلقو دے او عَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ د پاره د لرے خلقو دے۔
ضَامِرٍ هغه څاروی د سورلئ چه نری بدن والا وی چه ستړے کیږی نه په رفتار کولو باندے۔ یا هغه دی چه د ډیر سفر کولو په وجه سره تپ او لاغر شو بوی۔ یأتِيْنَ ئے د دریاب ذکر نه دے کړے ځکه دریاب د مکے سره متصل نه دے نوکه په دریاب کښ راشی نو بیا به هم په اوچه باندے مزل کوی تربیتُ الله پورے۔
فَجٍّ، د غرونو په مینځ کښ فراخه لارے نه وئیلے کیږی او بیا د مکے نه هره لار داسے ده چه د غرونو په مینځ کښ راکوزیږی دی۔
۲۸ ۔ په دے آیت کښ بعضے مقاصد د حج ذکر کړیږی۔ مراد د منافع نه اخروی فائدے دی چه په اداء د مناسکو د حج سره حاصلیږی ثواب ونه بخنه د ګناهونو دعا ګانے او د هغې قبولیت وغیره۔
وَيَذْكُرُوا، دا خاص حکمت د حج دے۔ یعنی ذبح په نوم د الله تعالیٰ سره خاص کول په خلاف د مشرکانو نه چه نذر او ذبح د غیر الله په نوم سره کوی نو په حج کښ تربیت د توحید حاصلیږی۔
اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ، د دے نه مراد ایام د قربانئ دی یوم النحر او دوه

ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ

بیا دے لرے کړی دوی خیری خپل او پوره دے کړی منختے خپلے

وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴿۲۹﴾ ذٰلِكَ

او طواف دے اوکړی دَبیت رکور) آزاد دا زیاد لوئ)

ورځے ورپسے او ځلورمه ورځ کښ اختلاف دے۔ فَكُلُوا نه مراد دا دے چه دَ هغے نه ځان له خوړل حرام مه ګنړئ لکه چه مشرکانو حرام ګنړلو۔ خوراک کول دَ هغے نه سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلّم دے۔

الْبَائِسَ الْفَقِيرَ، سخت اوګے محتاج۔ الْبَائِسَ سره فقیر ځکه ذکر کړو چه کله اوګے وی لیکن مالدار وی خوراک نه کوی دَ څه عارض دَ وجے نه نو هغه لره دَ دے نه نه ورکوی۔

۲۹:۔ هر کله چه سورة بقره کښ اعمال دَ حج یې تر وقوف او رمی دَ منیٰ پورے ذکر کړے وُو نو پس دے سورت کښ دَ هغے نه روستو اعمال دَ حج ذکر کوی یعنی په منیٰ کښ دِ ذبح اوکړی نو بیا دِ حلق اوکړی او دا سنت ترتیب دے اول رمی دَ جمرهٔ عقبه بیا ذبح کول بیا حلق کول بیا چه وس یې اورسی نو پس غه ورځ کښ طواف زیارت کول۔

وَلْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ کښ دا مراد دے۔ یعنی ویښته او نوکونه لرے کول په ورځ دَ نحر روستو دَ ذبح نه۔ او بیا دِ طواف فرض اوکړی۔ وَلْيَطَّوَّفُوا کښ طواف فرض مراد دے۔

وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ، نور واجبات مراد دی که هغه په ځان باندے نذر الٰهی منلے وی دَ مال یا دَ حیوان دَ ذبح په باره کښ نو دَ هغے وفا واجب ده او که دَ الله تعالیٰ طرف نه نور واجبات دَ حج وی۔

فائده:۔ وفا دلیل دے چه دَ نذر کړے شوے څیز نه په ځان له هیڅ نه خوری ځکه چه وفا پوره ورکولو ته وائی او دا دلیل دے چه دَ نذر وفا واجب ده۔

الْعَتِيقِ، په دیکښ ډیر وجوه دی۔ اول دا چه عتیق په معنیٰ دَ زوړ دے او حدیث صحیح کښ دَ دے تائید دے چه دا اول مسجد دے چه په زمکه کښ جوړ کړے شوے دے او سورة آل عمران ۹۶ کښ هم دا سے

وَمَنْ يُّعَظِّمْ حُرُمٰتِ اللّٰهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ

او چا چه تعظيم اوكړو د حرمتونو د الله تعالىٰ نه نو دا غوره ده دهٔ لره

عِنْدَ رَبِّهٖ ؕ وَاُحِلَّتْ لَكُمُ الْاَنْعَامُ اِلَّا مَا

په نيز د رب خپل، او حلال كړے شوى دى تاسو له څاروى مگر هغه چه

يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ

تلاوت كيدے شى په تاسو باندے پس ډډه كوئ د پليتئ نه چه بتانى

مِنَ الْاَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ ﴿۳۰﴾

د غير الله ده او ډډه كوئ د دروغ ويلو نه۔

ذكر شويدى۔ دويم په معنىٰ د آزاد ساتلے شوے د لاسونو د جابرانو ظالمانو نه تر قرب قيامت پورے او ترمذى روايت كړے دے په سند حسن د عبد الله بن زبير رضى الله عنه نه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چه دے ته عتيق ځكه وئيلے كيږى چه نشى غالب كيدلے په دے باندے جبار۔ او د دے تفصيل تفسير قرطبى كښ موجود دے۔ دريم دا چه آزاد دے د ملكيت د خلقو نه۔ څلورم دا چه په دے كښ گنهگار خلق د گناهونو نه آزادولے شى۔ پنځم دا چه عتيق په معنىٰ د كريم او شريف دے۔

۳۰:۔ په دے آيت كښ د حج نورے فائدے ذكر كولے شى چه تعظيم د محرمات الٰهيه دے او بل حكم د محرمات د غير الله دے په تحليل د هغے سره او بل اجتناب د نذر د غير الله نه۔ او بل اجتناب دے د شركى الفاظ او د دروغ وئيلو نه يعنى په حج سره د دے امورو عمل او مشق ابتداء كولے شى نو كوم الحاج چه د دے امورو پابندى اونكړى معلوميږى چه هغه حج نه دے كړے۔

حُرُمٰتِ اللّٰهِ، نه مراد هغه څيزونه دى چه الله تعالىٰ په حال د احرام او په حرم مكه كښ حرام كړے دى مثلاً ښكار كول د حرم بوټى پريكول ماسوا د سركړى نه۔ او د هغے د تعظيم نه مراد د هغه كارونو نه ځان ساتل دى كوم چه

حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهٖ ؕ وَمَنْ يُّشْرِكْ

کلک شئ په اخلاص کولو الله تعالی ته مه کیږئ شرک کوونکی دهغه سره او چاچه شرک وکړو

بِاللّٰهِ فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ

د الله تعالی سره نو ګویا چه دے را اوغورځیدلو د آسمان نه پس اوتختوی ده لره

الله تعالی منع کړے دی۔

وَ اُحِلَّتْ لَكُمُ الْاَنْعَامُ، پدیکښ رد دے په تحریم دغیر الله باندے چه مشرکانو د الله تعالی د تحریمانو په مشابهت سره د څان نه څه څاروی په ځان باندے حرام کړیووۍ او د هغے تفصیل په سورة مائده کښ تیرشویدے.

اِلَّا مَا يُتْلٰى. نه مراد هغه څاروی دی چه الله تعالی په عام اوقاتو کښ حرام کړے وی لکه مردارهٔ، خنزیر وغیره او د هغے حرمت ئے ډیرو آیاتو کښ ذکر کړے دے۔ نحل، بقره، مائده، انعام۔

فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ، وثن په معنیٰ د هر معبود مِنْ دُوْنِ الله دے که بت وی او که صلیب د نصاری وی (لکه چه حدیث د عدی بن حاتم رضی الله عنه کښ صلیب ته ئے وثن ویلے دے)، او که قبر وی څکه چه حدیث صحیح کښ وارد دی اللهم لا تجعل قبری وثنا یعبد۔ یعنی د کوم قبر چه عبادت کیدلے شی (سجدے نذرونه طوافونه وغیره) نو هغے ته هم وثن ویلے کیږی لکه چه البلاغ المبین کښ ذکر دی او مراد د مِنَ الْاَوْثَانِ نه عبادت کول د اوثانو دی مثلاً کوم څیز چه د وثن په نامه نذر کړے شی نو هغه پلیت دے۔ او تفسیر د ابن عطیه کښ دا سے لیکلے دی چه دا اشاره هغه ذبحو کولو ته ده چه د پاره د اوثانو وی۔

مِنَ الْاَوْثَانِ کښ مِنْ بیانی دے نو معنیٰ دا چه رجس عبادت د اوثانو دے یا مِنْ ابتداء د پاره دے نو معنیٰ عامه شوه یعنی هر هغهٔ پلیتیٔ نه ځان اوساتیٔ چه د عبادت د اوثانو (یعنی د شرک) نه پیدا کیږی۔

قَوْلَ الزُّوْرِ، هر هغه وینا ته ویلے کیږی چه د حق نه اوړیدلے وی چه هغه د شرک کلمات دی لکه خبره د تحریم د غیر الله یا خبره د نذر د غیر الله او دارنګ شهادت د دروغ ویل۔ دا قول د عامو مسلمانانو او خاصکر په حاجیانو باندے ډیر ضروری دے۔

الطَّيْرُ اَوْ تَهْوِيْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ مَكَانٍ

مارغان یا خکته او غورځوي دهٔ لره سیلۍ په مکان

سَحِيْقٍ ﴿۳۱﴾ ذٰلِكَ وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ

لرې کښې. دا یاد کړئ او چا چه تعظیم اوکړو د خاص نخو چه

اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ ﴿۳۲﴾

الله تعالیٰ مقرر کړې دی نو یقینًا دا تعظیم د اخلاص نه زړونو دے.

۳۱:- حُنَفَآءَ کښې اشاره ده چه اجتناب د اوثان او د قول الزور نه په سبب د حنیفیت سره کول ضروری دی نه د وجې د خپل خواهش یا دنیوی مفاداتو نه. حنیف پریخودونکے د دینِ باطل او کلک په دین حق باندې.
وَمَنْ يُّشْرِكْ. دا مثال د ذلت او د هلاکت د مشرک دے چه د هغه د نجات هیڅ طریقه نشته لکه څه رنګ چه یو انسان د آسمان نه راوغورځیږی او مارغان ئې پوټی پوټی کړی یا د بیابان په یو ډونګے کنده کښې اوغورځیږی او تفصیل د مثال ابن قیم رحمه الله داسې لیکلے دے چه توحید په مثال د آسمان دے په هغې کښې نمر، سپوږمۍ ستوری نشته نو چا چه شرک اوکړو نو د توحید نه محروم شو او د قرآن کریم او سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم او طریقې د صحابه کرامو نه خکته را اوغورځیدو او خکته غورځیدل اشاره ده ډیر ذلت ته او مشرکان ملایان او پیریان په مثال د مارغانو دی یعنی د هغوی په لاسونو کښې پریوتو نو هغوی د دهٔ ایمان، عزت، حیا، غیرت او مال پوټی پوټی کړو یا که د دوی په لاس کښې رانشی نو په دهریت او بے دینئ کښې اخته شی چه د الله تعالیٰ او د دین نه بالکل انکاری شی او دواړو حالتونو کښې په دنیا او آخرت کښې ذلیل شی.

۳۲:- شَعَآئِرَ اللّٰهِ، هغه څیزونه دی چه خاص دی په دین د الله تعالیٰ پورې او هغه علامات دی د دین د الله تعالیٰ. یعنی کعبة الله، صفا و مروه، منیٰ، عرفات، مزدلفه شعائر الله دی. او دلته دا مراد دی دا رنګ هدایه د حرم او قلائد او مساجد او عبادات شرعیه ظاهر شعائر الله دی.

لَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ

تاسو لره په هغے کښ فائدے دی تر نيټے مقرر پورے بيا

مَحِلُّهَا إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴿۳۳﴾ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ

انتها د دے (رفايلو) د بيت الله آزاد سره ده. او د پاره د هر امت

جَعَلْنَا مَنسَكًا لِّيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ

مقرر کړے ده مونږ طريقه د قربانۍ د دے د پاره چه ياد کړی نوم د الله تعالی

يا دلته مراد تر ينه هغه څاروی دی چه حرم ته بوتللے کيږی د پاره د هديے او ذبح کولو، د هغے تعظيم د هغے آداب شرعيه آدا کول دی او د هغے د هتک او بے عزتۍ نه ځان بچ کول دی او د هغے خائسته کول او خوراک څښکاک ورکول دی.

تَقْوَى الْقُلُوبِ، دا حقيقی تقوی ده ځکه چه حديث صحيح کښ وارد دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم او فرمائيل تقوی دلته کښ ده او اشاره يې او کړله زړه ته. يا تقوی په معنی د اخلاص ده ځکه چه د هر اندام تقوی د هغے مناسب وی.

۳۳:- که مراد د شعاير نه عام مواقف د حج وی نو په هغے کښ منافع د هغے وقوف او عبادات ادا کول دی لکه وقوف د منٰی او د عرفے او د مزدلفے. او أَجَلٍ مُّسَمًّى نه مراد آخری وخت شرعی د وقوف دے په هر موقف کښ چه هغه په احاديث صحيح سره ثابت دی. او مَحِلُّهَا نه مراد منتهی د دغے اعمالو طواف د بيت الله دے چه هغه طواف وداع ته اشاره ده او دا معنی امام مالک مؤطا کښ ذکر کړيده.

او که مراد د شعاير الله نه صرف څاروی د هديے وی نو د أَجَلٍ مُّسَمًّى دوه معنے دی اوله معنی روانول په نيت د هديے يعنی د دغه روانولو نه وړاندے په هغه څاروی باندے سورلی کول د هغه نه پئ لښل د هغے نه وړئ، وړغنه پشم پريکول جائز دی او دويمه معنی د أَجَلٍ مُّسَمًّى نه يوم النحر ده يعنی د دغه څاروی نه د حاجت او د ضرورت په وخت کښ فائده د سورلئ وغيره جائز ده تر يوم النحر پورے.

عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ ؕ

پہ هغهٔ باندے چه الله تعالیٰ ورکړی دی دوی ته د څارپایانو د څاروؤ نه،

فَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَلَهٗۤ اَسْلِمُوْا ؕ

ځکه چه حقدار د بندګئ ستاسو یو ذات دے نو خاص هغه ته اخلاص کوئ،

وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ ﴿۳۴﴾ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ

او زیرے ورکړه ځان کوزکوونکو ته۔ هغه خلق چه هرکله یاد کړیشی الله تعالیٰ

مَحِلُّهَآ نه مراد ځائے د حلالے او ذبح کولو دے۔ بَيْتِ الْعَتِيْقِ نه مراد حرم دے او په هغے کښ خاص منیٰ کښ ذبح کول افضل دی۔

۳۴:۔ روستو د ذکر کولو د احکامو د ذبح د هدایانو ترغیب دے دغه حکم ته چه دا حکم په ټولو امتونو کښ دے، منسک نه مراد عبادت د ذبح د قربانۍ او د هدیے دے بیا د دے حکم فائده بیانوی لیذکروا سره یعنی چه تمام انسانان عادت شی په ذکر د اسم د الله تعالیٰ په څاروؤ باندے چه چرته د غیرالله په نوم ئے نذر یا ذبح نه کړی بیا د دے علت ئے ذکر کړو۔ فَاِلٰهُكُمْ الخ یعنی نذر او ذبح د الله تعالیٰ په نوم یورے ځکه خاص ده چه هغه یوائے حقدار د بندګئ دے شریک ئے نشته بیا عام امر دے دے امت ته په کلکوالی سره په توحید باندے په فله اسلموا سره بیا بشارت دے۔

مُخْبِتِيْنَ، نه مراد تواضع کوؤنکی او غاړه خکته لرونکی حکم د الله تعالیٰ ته او عمرو بن اوس نه عطیه او قرطبی نقل کړیدی مخبتون هغه خلق دی چه ظلم نه کوی او که چرے په دوی باندے ظلم اوکړے شی نو انتقام (بدله) نه اخلی۔ او بشرئے مطلق ذکر کړو د یاره د عظمت د بشارت۔

فائده:۔ هرکله چه ټول مناسک د حج په تواضع او په عاجزئ سره اداکیږی یعنی دوه جامے د احرام، بربنډ سر، په خپو کښ ادنیٰ پیزار په زمکه باندے خوب کول وغیره دا ټوله تواضع ده نو د دے وجے نه پدے سورت کښ مخبتین ئے ذکر کړو۔

وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ وَالصّٰبِرِيْنَ عَلٰى

او يريږي زړونه د دوی او صبر کوونکي وي په

مَآ اَصَابَهُمْ وَالْمُقِيْمِي الصَّلٰوةِ ۙ وَمِمَّا

هغه مصيبت چه دوی ته رسيدلے وي او پابندی کوونکي د مونځ دي او د هغه نه

رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿٣٥﴾ وَالْبُدْنَ جَعَلْنٰهَا

چه مونږ دوی ته ورکړيدی خرچ کوی۔ او غټ څاروی (اوښان) کرځولے دی مونږ هغه

لَكُمْ مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ لَكُمْ فِيْهَا خَيْرٌ ۖ

تاسو لره د خاص نخو د الله تعالیٰ نه تاسو لره په هغے کښ فائدے دی

فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَآفَّ ۚ

نو یادوئ نوم د الله تعالیٰ په هغے باندے په داسے حال کښ چه ولاړ یئے

ف۳۵: د دے د بعضے صفاتو تفصيل په ابتداء د سورة الانفال کښ بيان شوے دے په ف۲ کښ۔

هر کله چه د قلب احوال زر زر بدليږی نو د دے وجه نه اول صفت ئے په صيغه د فعل مشروط سره ذکر کړو او صبر او اقامة الصلوٰة چه هر وخت مطلوب وی نو هغه ئے په اسم سره ذکر کړل او انفاق هم کله کله وی نو هغه ئے په صيغه د فعل سره ذکر کړو۔

او د دے آيت په تفسير کښ امام قرطبي سخت رد کړے دے په مبتدعين پيرانو ذاکرينو چه په وخت د ذکر د الله تعالیٰ کښ په هغوی جن په راځی او تو پونه او چغے وهی او دے ته وجد وائی دا قول د صحابه کرامو د صفاتو نه مخالفت دے بلکه دا يو قسم ليونتوب دے او دا شيطانی اعمال دی۔

ابن جوزی رضی الله عنه تلبيس ابليس کښ د حسن بصری نه نقل کړيدی چه د داسے خلقو سره زمونږ شرط دا دے چه دوی دِ د کوهی په غاړه باندے يا په بلئ د کوټے باندے کيني او بيا دِ ذکر الٰهی او کړی او په دوی دِ جن يه او وجد راشی۔

فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا فَكُلُوا مِنْهَا

پس هر کله چه را او غورځیږی اړخونه ددَ هغوی نو خورئ دَ هغې نه

وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ كَذَٰلِكَ

او خوراک ورکوئ ګدا نه کوونکی ته او حرصناک ته دغسې

سَخَّرْنَاهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٣٦﴾

تابع کړیدی موږ دا څاروی ستاسو فائدے له دے دَپاره چه شکر اوکړئ۔

لَن يَنَالَ اللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَاؤُهَا

هیچرے نه رسی الله تعالیٰ ته (دَ قبولیت دَپاره) غوښے دَ دوی او نه وینے دَ دوی

ف۳۶۔ هر کله چه وړاندے ذکر دَ عامو شعائر الله ئے اوکړو بیا ذبح دَهدیے او قربانئ ته ئے ترغیب بیان کړو او دَ هغې شرط دَ ذبح ئے بیان کړو بیا دَ دے احکامو دَ پابندئ کوونکو صفات ئے بیان کړل، نو اوس پدے آیت کښ دَ بعضے شعائر الله (چه هغه اوښان دَ هدیے دی) دَ هغوی احکام بیانوی۔ اول حکم دَ شعائر الله نه دے نو تعظیم ئے ضروری دے۔ دویم حکم دَ دے دَ ذبح کولو په طریقه شرعیه سره خیر او ثوابونه دی۔ یعنی فی ذبحها و فی تعظیمها (دَ دے په حلالولو کښ په شرعی طریقے سره او دَ دے په تعظیم کښ)۔ دریم حکم ذکر دَ بِسمِ الله دے په وخت دَ نحر کولو په ولاړه باندے ځکه چه نحر دَ اوښانو په حالت دَ ولاړوالی کښ سنت دے۔ څلورم حکم کله چه مړه شی نو په مزکه راپریوځی نو دَ هغې نه خوړل پخپله او محتاجانو ته ورکول۔ پخپله دَ خوړلو امر دَ پاره دَ مخالفت دَ مشرکانو دے چه هغوی دَ دے هدیے نه خوړل جائز نه ګڼړل۔ قَانِعَ امام مالک نه قرطبی نقل کړیدی چه قانع فقیر دے (ځکه چه په لږه باندے قناعت کوی) او مُعْتَرَّ هغه دے ځان پیش پیش کوی او دَ ملاقات کولو په بهانه سوال کوی که ښکاره کوی او که چپ کوی۔ تَشْكُرُونَ۔ نه مراد پدے ځائے کښ عمل کول دَ ذبح او دَ نحر دی دَ حکم شرعی مطابق لکه چه مخکښ ذکر شول۔

وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ ۭ كَذٰلِكَ

او لیکن رسی هغه ته (قبولیت سره) اخلاص ستاسو نه دغسې

سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى

تابع کړځولے دی الله تعالی دا ځاروی ستاسو دپاره دے لره دے دپاره چه تکبیر اووائی په هغے باندے

مَا هَدٰىكُمْ ۭ وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٣٧﴾

په هغه طریقے سره چه خودلے ده الله تعالی تاسو ته، او زیرے ورکړه خائسته عمل کوونکو ته.

اِنَّ اللّٰهَ يُدٰفِعُ عَنِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۭ

یقینًا الله تعالی اړوی د جنګ د مؤمنانو نه (کافرانو لره).

۳۷. په دے آیت کښ ذکر د اخلاص دے چه هغه شرط د قبولیت دے په هر عمل کښ او په دے کښ اشاره ده چه کومه هدیه او قربانی د اخلاص او اتباع سنت نه خالی وی نو هغه صرف غوښه او وینه ده.

كَذٰلِكَ سَخَّرَهَا، دا ذکر د لوے انعام دے چه دا قدرت د الله تعالی دے چه د کمزوری انسان دپاره ئے لوے قوی حیوان تابع کړځولے دے مخکښ آیت کښ هم تسخیر بیان شو دپاره د دے چه بسم الله ورباندے ذکر کړے شی او په دے آیت کښ ئے هم ذکر کړلو دپاره د دے چه الله اکبر هم د بسم الله سره یو ځائے ذکر کړے شی. او مخکښ آیت کښ جعلناها متکلم ذکر وو نو سخرنا ئے هم په صیغه د متکلم ذکر کړے دے او په دے آیت کښ لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ په صیغه د غائب سره ذکر دے نو سخرها ئے هم په صیغه د غائب سره ذکر کړو. د اَلْمُحْسِنِيْنَ نه هغه خلق مراد دی چه تیر شوی احکام په احسن طریقه (یعنی په شرعی طریقے) سره ادا کوی د بدعاتو خلط ورسره نه کوی. او اخلاص کوونکی وی.

إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ ﴿٣٨﴾

يقيناً الله تعالى مينه نه كوي د هر خيانت كر ناشكره سره.

أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا ۚ

(اجازت) اعلان كړے شوے هغه كسانو ته چه هغوى سره جنګ كيدلشى (د جنګ كولو) په سبب د دې چه ...

وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ﴿٣٩﴾

او يقيناً الله تعالى د دوى په مدد كولو باندے خامخا قدرت لرى.

۳۸: (خلاصه) د دے آيت نه تر ۴۸ پورے دريم باب دے په دے كښ ترغيب دے قتال ته سره د ذكر كولو د علتونو د هغے نه او صفتونه د مجاهدينو دى. بيا تسلى ده سره د تخويف دنيوى نه په ذكر د هلاكت د اقوامو مكذبو. بيا اتم زجر دے په نه عذاب خوختلو سره او تخويف دنيوى دے. بيا اثبات د رسالت او بشارت او تخويف دے بيا عداوت د شيطان ئے ذكر كړيدے چه دوى شبهات اچوى او الله تعالى ئے زائل كوى او حكمة د شبهاتو اچولو او حكمة د ازالے ئے ذكر كړيدے بيا تخويف او بشارت دے.

تفسير: ۳۸: په دے كښ تسلى ده مؤمنانو ته يعنى كه دوى سفر د حج يا د جهاد كوى نو الله تعالى به د دوى د كورونو او د اهل وعيال حفاظت كوى او د دوى د نفسونو حفاظت به هم كوى. ځكه چه دوى د الله تعالى دوستان دى او د دوى دشمنان چه خَوَّانٍ كَفُورًا دى هغه د الله تعالى هم دشمنان دى نو ظاهره خبره ده چه الله تعالى به د خپلو دوستانو د دشمنانو نه حفاظت او مدافعت كوى. خَوَّانٍ ډير خيانت كر هغه دے چه د الله تعالى د دوستانو په اهل وعيال او مال كښ خيانت كوى. او كَفُورًا ځكه دے چه الله تعالى په دهٔ باندے انعامات كړيدى او دے د هغے ناشكرى كوى.

۳۹: په دے آيت كښ ئے د مدافعت يوه طريقه او خودله يعنى الله تعالى به ستاسو حفاظت كوى ليكن تاسو هم د دين د الله تعالى او د خپلو ځانونو حفاظت كوئ په قتال كولو سره او تفسير قرطبى كښ ليكلى دى چه دا اول آيت دے چه نازل شويدے په باره د قتال كښ ليكن په دے آيت كښ صرف أُذِنَ يعنى اباحت د قتال دے او فرضيت ئے په قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ سره

الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ
دا هغه کسان دي چه ويستلے شوے دي د کورونو خپلو نه

بِغَيْرِ حَقٍّ اِلَّآ اَنْ يَّقُوْلُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ط
بغير د جرم شرعي نه ما سوا د دينه چه دوي وائي رب زمونږ الله تعالیٰ دے

وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ
او که نه وے اړول د الله تعالیٰ خلقو لره بعضو لره

بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ
په بعضو سره خامخا نړولے شوے به وے گرجے د راهبانو او عبادت خانے د نصاریٰ

وَّصَلَوٰتٌ وَّمَسٰجِدُ يُذْكَرُ فِيْهَا
او عبادت کا هونه د يهوديانو او جماعتونه د مسلمانانو چه يادولے شي په هغے کښ

اسْمُ اللّٰهِ كَثِيْرًا ط وَلَيَنْصُرَنَّ اللّٰهُ مَنْ
نوم د الله تعالیٰ ډير ، او خامخا مدد کوي الله تعالیٰ د هغه چا سره

يَّنْصُرُهٗ ط اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيْزٌ ۝٤٠ اَلَّذِيْنَ
چه مدد کوي د دين د هغهٔ سره ، يقيناً الله تعالیٰ قوت والا دے زور ور دے ۔ دا هغه خلق دي

د دينه روستو کړيد لے او په دے کښ درے علتونه ذکر کړے شول اول يُقَاتَلُوْنَ ، دويم بِاَنَّهُمْ ظُلِمُوْا ، دريم وَاِنَّ اللّٰهَ آه -

فائده :- مفسر کرطبي ليکلے دي چه اباحت حکم شرعي دے نو هغے له دليل شرعي پکار دے دا رنګ مسلم الثبوت کښ هم دي -

ﻣﺴﺌﻠﻪ :- دا بيان د مظلوميت د هغوي دے او بل علت دے د پاره د اذن د قتال کولو او دا رنګ دا علت دے د نصرت الٰهي د هغوي سره - او دا آيت دليل دے چه موحدينو سره دشمني د وجے د توحيد نه ده لکه چه په سورة اعراف ۱۲۶ او سورة حم مؤمن ۲۸ او سورة بروج ۸ کښ دي - وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ دا بل علت د اذن د

اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِی الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ

کچرے طاقت ورکړو موږ دوی ته په زمکه کښې پابندی به کوی د مونځ

وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ وَاَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَنَهَوْا

او ورکوی به زکوٰة او بیان به کوی د نیکئ او منع به کوی

عَنِ الْمُنْكَرِ ؕ وَلِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ﴿۴۱﴾

د بدئ نه، او خاص الله تعالیٰ لره دے انجام د ټولو کارونو۔

قتال دے او د نصرت دے یعنی قتال کول او نصرت د الله تعالیٰ د مجاهدینو سره د پاره د حفاظت د مرکزونو د توحید دی۔ او تفسیر قرطبی کښې ذکر دی چه آیت په اعتبار د لفظ سره عام دے، نورو معانیو ته هم شامل دے یعنی که نه وے دفع کول د الله تعالیٰ ظلم د ظالمانو په حاکمانو عادلانو سره۔ او که نه وے دفع کول د هغه چا چه مساجد وته نه ورځی په اهل مساجدو سره۔ او که نه وے دفع کول د عذاب الٰهی په دعاګانو د صالحینو سره۔ او دا رنګ که نه وے دفع کول د شرک او کفر او بدعاتو او فسق وفجور په دعوت او تبلیغ د اهل حق سره۔ لَّهُدِّمَتْ، هدم ظاهری نړیدل د آبادئ دی او هدم معنوی خالی کیدل دی د عبادا تو د الله تعالیٰ نه په طریقه د توحید او سنت سره، دواړه معانے مراد دی او دا مذکور عبادت خانے د اهل شرائعو دی چه هغوی د تحریف د دین نه مخکښې په هغے کښې شرعی عبادت نه کول ځکه چه په دغه ټولو دینونو کښې مخکښې د تحریف نه توحید وو۔

كَثِيْرًا، د ډیر نه مراد هغه ذکر الٰهی دے چه په شرع کښې ثابت وی اګرچه لږ وی او کوم ذکر چه غیر شرعی وی نو که ډیر وی لیکن هغه لږ او بے اعتباره دے۔ مَنْ يَّنْصُرُهٗ، په دیکښې اشاره ده چه نصرت د دین او د رسول د الله تعالیٰ دا نصرت د الله تعالیٰ دے یعنی د الله تعالیٰ په ډله او جماعت کښې شمولیت دے اګرچه الله تعالیٰ نصرت ته محتاج نه دے۔

ملا:- دا صفت د مجاهدینو دے او د ضحاک رضی الله عنه نه روایت دے چه دا کارونه الله تعالیٰ لازم کړی په هغه چا باندے چه بادشاهی

وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ

او که دوی تا ته دروغژن وائی نو یقینًا دَ دروغو نسبت کړے وُو مخکښ دَ دوی نه

قَوْمُ نُوْحٍ وَّعَادٌ وَّثَمُوْدُ ﴿۴۲﴾ وَقَوْمُ اِبْرٰهِيْمَ

(خپلو پیغمبرانو ته) قوم دَ نوح علیه السلام او عادیانو او ثمودیانو۔ او قوم دَ ابراهیم علیه السلام

وَقَوْمُ لُوْطٍ ﴿۴۳﴾ وَّاَصْحٰبُ مَدْيَنَ وَكُذِّبَ

او قوم دَ لوط علیه السلام۔ او اوسیدونکی دَ مدین، او نسبت دَ دروغو کړے شوی وُو

مُوْسٰى فَاَمْلَيْتُ لِلْكٰفِرِيْنَ ثُمَّ اَخَذْتُهُمْ

موسیٰ علیه السلام ته پس مهلت مې ورکړو کافرانو ته بیا او نیول ما هغوی لره

فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿۴۴﴾ فَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ

پس څه رنګ شو عذاب زما هغوی لره۔ پس ډیر دَ کلو نه

یے ورله ورکړی وی۔ او دا رنګ دا کارونه دَ دوام دَ نصرت الٰهیه دَپاره دی۔ دا مقصد نه دے چه تمکین نه روستو به صرف دا څلور کارونه کوی بلکه ټول نظام شرعی به نافذ کوی۔ او دَ اقامة الصلوٰة و ایتاء الزکوٰة نه مراد عام جاری کول دَ دے احکامو شرعیو دی په ملک کښ۔ وَلِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ اشاره ده چه همیشه ولړے دَ تمکین (دَ بادشاهۍ) په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دے لکه چه اِبتدا هم دَ هغه په اختیار کښ ده۔

۴۲ :- په دیکښ تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم او تابعدارانو دَ هغه ته۔ یعنی دَ دے سورت په تیر شوے احکامو او مواعیدو دَ الله تعالیٰ کښ که دوی ستا تکذیب کوی نو الله تعالیٰ به دوی لره عذاب ورکړی لکه چه تیر اقوام مکذبه ته یے عذابونه ورکړے وو۔ او اصحاب مدین نه قوم شعیب یے او نه وئیل څکه چه دَ هغه بل قوم هم وو اصحاب الایکه لیکن دَ هغوی هلاکت عربو کښ زیات مشهور نه وو۔ وَكُذِّبَ مُوْسٰى، قوم دَ موسیٰ یے څکه او نه وئیل چه قوم دَ هغه بنو اسرائیل وو هغوی دا سے تکذیب نه وو کړے چه په ټولو عذاب راغلے وی او آیت کښ اشاره ده چه په قوم دَ ابراهیم علیه السلام هم عذاب راغلے دے لیکن تفصیل دَ هغے معلوم نه دے۔

۴۳-۴۴ :- دا په ترتیب سره ذکر دَ اقوام مکذبو دے بدے ترتیب سره په

أَهْلَكْنٰهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ فَهِيَ خَاوِيَةٌ

هلاک کړي دي مونږ هغه او حال دا چه هغوی ظلم کوونکي ده؛ پس هغه پرپوتلي دي

عَلٰى عُرُوشِهَا وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَّقَصْرٍ

په چتونو خپلو باندے او ډیر کوهیان شاړه او ماڼۍ

مَّشِيدٍ ﴿۴۵﴾ أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ

پخے (شاړے دي). آیا نو دوی نه ګرځي په ملک کښ.

فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ يَعْقِلُونَ بِهَا

نو چه پیدا شي دوی لره داسے زړونه چه پوهیږي په هغے سره

أَوْ آذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى

یا غوږونه چه اوریدل کوی په هغے سره. پس یقیناً نه ړندیږي

سورة هود کښ ذکر شویدی هاں تکذیب دَ قوم ابراهیم علیه السلام په سورة انعام او سورة انبیاء کښ ذکر شوید ے.

نَكِيْرِ انکار او بدلولو ته ویلے کیږي دلته مراد عذاب دے ځکه چه په عذاب سره نعمتونه بدل شي.

۴۵ :- دا هم تخویف دنیوی دے او پدیکښ علت دَ عذاب ذکر شوے دے چه هغه ظلم دے.

خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوشِهَا، هغه مکانات دی چه اول ئے چتونه راپریوتل بیا دَ چتونو دَپاسه دیوالونه را اوغورځیدل بیا څه موده وروستو ډیرے جوړے شوے.

بِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ، دَ هلاک شوے قومونو په کورونو او کلو کښ کوهیان هم شاړه پاتے شویدی. یا مراد دَ دے نه هغه کوهے دے چه حنظله بن صفوان علیه السلام په زمانه کښ اوچ شوے وُ دَ هغے واقعه په تفسیر قرطبی وغیره کښ ذکر شویده.

قَصْرٍ مَّشِيدٍ، پدغه هلاک قومونو کښ دَ ملکو والو بنګلے شاړے پاتے شوے. یا ترینه مراد ماڼۍ او بنګلے دَ ثمود یانو دی.

الْأَبْصَارُ وَلٰكِنْ تَعْمَى الْقُلُوْبُ الَّتِيْ

سترګې او لیکن ړندیږي هغه زړونه چه

فِي الصُّدُوْرِ ﴿۴۶﴾ وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ

په سینو کښ دي - او په تا دي سره دوي غواړي ستانه عذاب

وَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ وَعْدَهٗ ؕ وَاِنَّ يَوْمًا

او هیچرې خلاف نه کوي الله تعالٰی د وعدې خپلې نه، او یقینًا یوه ورځ

عِنْدَ رَبِّكَ كَاَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ ﴿۴۷﴾

په نیز د رب ستا پشان د زرو کلونو ده د هغې نه چه تاسو یې شمار کوئ -

ﻑ۴۶:- روستو د ذکر د عذاب د قومونو تیر شوؤ نه التفات دے موجوده خلقو ته چه سیل اوکړي د دے مکانا تو (کنډراتو) او عبرت تر ینه حاصل کړي -

يَعْقِلُوْنَ بِهَا، اشاره ده چه د عقل محل قلب دے او دے نه معلومه شوه چه د سفر په لګالیقو سره تجربه او عقل کښ ترقي راځي او د حق د اوریدو صفت پیدا کیږي -

فَاِنَّهَا لَا تَعْمَى الْاَبْصَارُ، هر کله چه په سفر کولو سره په نظر د سترګو کښ ترقي نه پیدا کیږي نو د کلام طرز یې بدل کړو - ابن عطیه فرمائي چه په دیکښ مبالغه ده یعني روند والے (کامل) د سترګو روند والے ندے بلکه د زړه روند والے دے، دا مراد نه دے چه سترګے د هیڅ نه ړندیږي ځکه چه دا د واقع نه خلاف ده - مطلب دا شو چه دوي اګر چه ګرځي او په سترګو باندے دغه کنډراتو ته ګوري لیکن عبرت نه اخلي ځکه چه زړونه یې ړانده دي -

ﻑ۴۷:- دا بل زجر دے یعني عبرت نه اخلي بلکه زر عذاب غواړي -

وَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ وَعْدَهٗ ، د وعد نه مراد وعد د عذاب دے د وجه د قرینے د دے آیت نه اګر چه وعد مستعملیږي په وعده د ثواب کښ -

وَاِنَّ يَوْمًا الخ، مطلب دا چه اوږد او سخت عذاب دے نو دوي ډیر جاهلان دي چه داسے عذاب په تلوار سره غواړي -

وَكَأَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ أَمْلَيْتُ لَهَا وَهِيَ

او ډیر کلي دي مهلت ورکړے دے ما هغوی ته او حال دا چه

ظَالِمَةٌ ثُمَّ أَخَذْتُهَا ۚ وَإِلَيَّ الْمَصِيرُ ﴿٤٨﴾

ظلم کوونکي دي بیا اونیول ما هغوی لره او خاص زما طرف ته راګرځیدل دي -

قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ نَذِيرٌ

ته اووایه اے خلقو یقیناً زه تاسو لره ډیره درکوونکے

مُّبِينٌ ﴿٤٩﴾ فَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

ښکاره یم - پس هغه کسان چه ایمان ئے راوړے او عمل ئے کړے دے په تابعداري د سنت سره

لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٥٠﴾ وَالَّذِينَ

دوی د پاره بخښنه ده او رزق عزت والا - او هغه کسان

ع ۱۳

كَأَلْفِ سَنَةٍ، مراد دا چه تاسو د یو وطن او علاقے تخریب په زر کاله کښ کوئ نو الله تعالیٰ ئے په یو ورځ کښ کوی او زر کاله په طور د مثال سره ئے وئیلے دی ځکه عرب د ډیر والی د پاره د زرو شماره ذکر کوی ځکه دا منتهیٰ د عدد ده بغیر د تکرار نه - یا مراد د دے نه ورځ د قیامت ده ځکه چه حدیث کښ وارد دی چه فقراء مسلمانان به جنت ته د اغنیاؤ نه نیمه ورځ وړاندے داخلیږی او هغه پنځه سوه کاله دی ابن کثیر دا روایت ذکر کړیدے یعنی پوره ورځ زر کاله شوه -

۴۸ :- دا هم تخویف دے - او جواب د سوال دے چه هر کله دا خلق ته عذاب غواړی نو په دوی باندے عذاب ولے نه راځی حاصل د جواب دا دے چه عادت الٰهی دے چه دا سے خلقو له مهلت ورکوی او بیا ورله عذاب ورکوی - تیر شوی آیت کښ فکأین په قا سره ذکر کړے شو ځکه چه مهلت نه ئے بعد متصل عذاب راغلے دے او د دے نه وړاندے ئے وعده د عذاب ذکر کړه او مهلت ئے روستو ذکر کړیدے نو په مینځ کښ ئے دو باره و کأین راوړے په واو سره -

۴۹ :- په دے آیت کښ اثبات د رسالت دے او جواب د استعجال د عذاب دے - حاصل دا چه زه خو رسول یم خو د عذاب د راوستلو یا روستو کولو ما سره اختیار نشته -

۵۰ :- دا په رسالت باندے تفریع ده چه د هغے نه دوه ډلے پیدا کیږی مؤمنان

سَعَوْا فِيٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ

چه کوشش کوی په آیاتو زمونږ کښې مقابله کوونکی دَ هغې سره دغه

اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿۵۱﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ

کسان دی اور والا - او نه دے لیږلے مونږ ستا نه

قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ اِلَّآ اِذَآ

مخکښې هیڅ رسول او نه نبي مګر هر کله چه

تَمَنّٰٓى اَلْقَى الشَّيْطٰنُ فِيْٓ اُمْنِيَّتِهٖ ج

هغه لوستل کول غورځولے شیطان (وسوسے په زړونو دَ خلقو کښې) په وخت دَ لوستلو هغه کښې

فَيَنْسَخُ اللّٰهُ مَا يُلْقِي الشَّيْطٰنُ ثُمَّ

نو ورانول کوی الله تعالیٰ هغه شبهات چه اچول شیطان بیا

يُحْكِمُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ ط وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۵۲﴾

کلک او ساتل الله تعالیٰ آیاتونه خپل او الله تعالیٰ پوهه دے او حکمتونو والا دے -

---

او دا دَ هغوی دَ پاره بشارت اخرویه دے - وَرِزْقٌ كَرِيْمٌ دَ دے مصداق صرف جنت دے ځکه چه دَ دنیا په رزق کښې ضرور ذلت یا کړاؤ وی -

ملا :- دا تخویف دے منکرینو ته - مُعٰجِزِيْنَ ، دا باب مفاعله ده او حال دے دَ ضمیر دَ سعوا نه مطلب دا دے چه دوی اراده لری دَ عاجز کول دَ صاحب آیات او آیات دَ دوی عاجز کول کوی - یا معاجزین معنیٰ منع کوونکی خلقو لره دَ تابعداریٔ دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه او معاجزین راوړل تمهید دے دَ روستو آیت دَ پاره چه شیاطین انسی او جنی دَ خلقو په زړونو کښې شبهات اچوی -

ملا :- هر کله یئے چه دوه فریقه ذکر کړل نو اوس دَ دے جدا جدا اسباب ذکر کوی ، دَ کافرینو دَ کفر سبب ، وسوسے دَ شیاطینو انسی او جنی دی . او دَ مؤمنانو دَ ایمان سبب زائیله کول دَ الله تعالیٰ دی وسوسو او شبهاتو دَ شیطانانو لره - دا رنګ مخکښې معاجزین ذکر کړو نو دا تفصیل او تفسیر

لِيَجْعَلَ مَا يُلْقِى الشَّيْطٰنُ فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ

(ددے مقصد دپاره) چه اوګرځوی هغه شبهے چه اچوی شیطان امتحان هغه کسانو لره

فِى قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْقَاسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ ط

چه په زړونو د هغوی کښې مرض دے او د سختو زړونو والو لره،

وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَفِىْ شِقَاقٍۭ بَعِيْدٍ ﴿۵۳﴾

او یقینًا ظالمان خامخا په دشمنئ لرے کښې دی۔

د هغے دے۔ مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ، د دے دواړو فرق په یو څو وجوهو سره دے اوله وجه دا چه د رسول معنیٰ دا ده چه پیغام رسوونکے دے د الله تعالیٰ د طرف نه او د نبی معنیٰ دا چه خبر ورکوونکے امتیانو ته دا فرق نسبتی دے۔ دویمه وجه دا چه رسول خاص دے په هغه پورے چه نازل شوی وی په هغه باندے کتاب الٰهی یا ورسره صحیفے وی د الله تعالیٰ د طرف نه او نبی عام دے۔ دریمه وجه دا چه رسول عام دے۔ هغه ملائکو ته هم ویلے کیږی چه د الله تعالیٰ وحی راوړی او نبی خاص دے په انسانانو پورے۔
اِذَا تَمَنّٰى دا په معنیٰ د لوستلو او د بیانولو د وحی دے او په اشعارو د عربو کښې په دے معنیٰ هم استعمال شوے دے۔
اَلْقَى الشَّيْطٰنُ فِىْٓ اُمْنِيَّتِهٖ، یعنی د هغهٔ د لوستلو او د دعوت په وخت کښې شیطان انسی او جنی د نورو خلقو په زړونو کښې شبهات او وسوسے اچوی کله وائی دا مجنون دے یا ساحر دے یا کاهن دے یا مفتری دے وغیره وغیره۔
فَيَنْسَخُ اللّٰهُ مَا يُلْقِى الشَّيْطٰنُ، یعنی الله تعالیٰ خپله وحی داسے نازله کړی چه په هغے سره هغهٔ د شبهاتو جوابونه اوکړی نو هغه شبهات زائیله شی او ختم شی۔
ثُمَّ يُحْكِمُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ، یعنی د شبهاتو دفع کولو نه بعد په دلیلونو سره هغه دعوت د نبی محکم کړی۔
۵۳:۔ دا متعلق دے په القی الشیطان پورے د هغے حکمت ذکر کوی

وَّلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ اَنَّهُ

او د دے د پاره چه یقین او کړی هغه کسان چه علم ورکړے شوے دے چه دا

الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَيُؤْمِنُوا بِهٖ فَتُخْبِتَ

حق دے د طرف د رب ستا نه نو ایمان به راوړی پدے باندے نو به نرم به شی

لَهٗ قُلُوْبُهُمْ ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهَادِ الَّذِيْنَ

دے ته زړونه د دوی ، او یقیناً الله تعالیٰ رسوی مؤمنانو

اٰمَنُوْٓا اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۵۴﴾ وَلَا يَزَالُ

لره لارے نیغے ته . او همیشه به وی

یعنی شیطان لره ئے تسلط د شبهاتو اچولو د دے د پاره ورکړے دے چه هغه امتحان او کړی د شکیانو (منافقانو) او سخت زړه کافرانو د پاره - او هغوی پاخه شی په شک او کفر کښ او بیا په سخته دشمنئ د حق کښ اخته شی -

۵۵ :- دا متعلق دے په فَيَنْسَخُ اللّٰهُ پورے یعنی الله تعالیٰ چه شبهات دفع کړی نو پدے سره فائده او رسیږی مؤمنانو ته یعنی د قرآن په حقانیت باندے د هغوی علم او یقین نور زیات شی.

فَيُؤْمِنُوا ته مراد زیات والے د ایمان او یقین دے ځکه چه ایمان ئے مخکښ راوړے دے یا مراد د اوتوا العلم نه مخکنی اهل کتاب دی چه هغوی پوهه شول په حقانیت د قرآن نو ایمان ئے په قرآن باندے راوړلو -

فَتُخْبِتَ ، د اِخبات معنیٰ پدے سورت کښ تیره شویده یعنی په قرآن باندے په ایمان راوړلو سره اِخبات پیدا کیږی -

لَهَادِ ، یعنی په زیادت د علم او د ایمان او په اخبات سره په هدایت کښ زیاتے پیدا کیږی -

فائده :- د دے آیت دا تفسیر چه ذکر شو واضح او صحیح دے - اوبل تفسیر چه بعض مفسرینو لیکلے دے او د هغے سره واقعه د الغرانیق

## الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْهُ حَتّٰى

هغه کسان چه کفر ئے کړے دی په شک کښ دَ دینه تر دے پورے

لیکلے ده هغه په ډیرو وجوهو سره غلط دے۔

اوله وجه، دا چه دغه حدیث صحیح نه دے لکه چه قاضی عیاض په شفا کښ ویلے دی چه دا حدیث په طریقه صحیح معتمد په سره نه دے نقل شوے او په الفاظو کښ ئے ډیر اضطراب دے او دا رنګ تفسیر سراج المنیر دَ امام بیهقی نه نقل کړیدی چه دا روایت په اعتبار دَ نقل سره ثابت نه دے او تفسیر قرطبی کښ هم دی چه دا حدیث منکر او منقطع دے او امام رازی تفسیر کبیر کښ ویلے دی دا روایت باطل دے موضوع دے۔

دویمه وجه، دا چه دا واقعه امام بخاری په کتاب الصحیح کښ راوړے ده لیکن واقعه دَ غرانیق پکښ نشته۔

دریمه وجه، چه په دیکښ نسبت دَ کذب یا دَ غلطئ دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او حال دا چه انبیاء علیهم السلام په باب دَ تبلیغ کښ دَ غلطئ او دَ کذب نه بالاتفاق معصوم دی۔

څلورمه وجه، دا چه دا دَ قرآن کریم نه هم خلاف ده دَ سورة الحاقه ۴۴ او سورة بنی اسرائیل ۷۳ نه۔

پنځمه وجه، دا چه که شیطان له داسے تسلط په نبی باندے جائز شی چه دَ هغه په ژبه باندے دَ شرک الفاظ راولی یا دَ نبی دَ آواز سره آواز مشابه کوی او په اودریدو ونکو تلبیس راولی نو بیا په ټول قرآن باندے بے اعتمادی پیدا کیږی۔

شپږمه وجه دا ده چه سورة نجم دَ مکے په ابتدائی وخت کښ نازل شوے دے او دَ دے سورت اکثره حصه په مدینه کښ نازل شویده۔ نو دا ډیره بعیده خبره ده چه تلبیس دَ شیطان په قرآن کښ دومره ډیره موده پورے پاتے شی او په هغے کښ تردید نه کیږی۔

اوومه وجه دا ده مفسر ابن عبیده لیکلے دی چه لفظ دَ الغرانیق دَ الهه په صفت کښ دَ عربو په نظم او په نثر کښ نه دے راغلے بلکه غرانیق غټو مردارخورو مارغانو ته وائی دا خو دَ توهین او تحقیر کلمه ده۔

تَاْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً اَوْ يَاْتِيَهُمْ
چه راشي دوی ته قیامت ناګهانه او یا راشي دوی ته

عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيْمٍ ﴿۵۵﴾ اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ
عذاب د ورځې شنډې۔ بادشاهي په دغه ورځ

لِّلّٰهِ ؕ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ ؕ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا
صرف د الله تعالی ده، فیصله به کوي په مینځ د دوی کښې، پس هغه کسان چه ایمان

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿۵۶﴾
او عمونه یې کړیدي په موافقت د سنت په جنتونو د نعمتونو کښې به وي۔

اتمه وجه دا ده چه دا واقعه که چرے صحیح وے نو یهودیانو او نصارٰی، مشرکانو، منافقانو به په نبي صلی الله علیه وسلم باندے د دے اعتراض کړے وے چه ته په خپله د شرک اقرار کوے نو مونږ ولے منع کوے۔

۵۵:۔ دا آیت تعلق لري د ۵۳ سره چه د شبهاتو شیطانیو د وجے نه کافران همیشه په شک کښې دي او په دے کښې تخویف دے۔ د سَاعَةُ نه مراد قیامت دے یا وخت د مرګ۔ د يَوْمٍ عَقِيْمٍ نه مراد د ورځ د عذاب دنیوی دے یا د قیامت ورځ مراد ده۔ عَقِيْمٍ، شنډے ته وائي او مراد ترینه داسے ورځ ده چه شپه ورپسے نه راځي نو بیله ورځ هم نه راځي یا مراد ترینه بې خیره ورځ ده۔

۵۶:۔ په دے کښې اشاره ده چه دغه عذاب هیڅوک نشي وایس کولے ځکه چه اختیار صرف د الله تعالی دے۔ بیا ورپسے بشارت دے۔

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا
او هغه کسان چه کفر ئے کړے دے او دروغژن کوی آیاتو نه زمونږ

فَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۵۷﴾
پس دغه کسان دوی لره عذاب ذلیل کوونکے دے۔

وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ
او هغه کسان چه هجرت ئے کړے دے د پاره د دین د الله تعالیٰ

ثُمَّ قُتِلُوْٓا اَوْ مَاتُوْا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللّٰهُ
بیا اوژلے شو یا مړهٔ شو خامخا روزی به ورکوی الله تعالیٰ دوی ته

رِزْقًا حَسَنًا ۚ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۵۸﴾
روزی خائسته ، او یقیناً الله تعالیٰ بنهٔ روزی ورکوونکے دے۔

۵۷ :- په دے آیت کښ تخویف اخروی دے۔ هر کله چه په کفر او تکذیب (چه شبهات پیدا کوی دی) دوی اهانت د آیاتو کوی نو عذاب د دوی هم مهین دے۔

۵۸ :- خلاصه :- د دے آیت نه ځلورم باب دے تر آخره د سورت پورے په دیکښ ترغیب دے هجرت ته په بشارت سره او ترغیب دے قتال ته په ذکر د نصرت الهیه سره۔ او د نصرت اسباب ئے ذکر کړے دی۔ بیا پنځه عقلی دلیلونه دی په توحید باندے بیا بیان د طریقے د دعوت دے بیا عقلی دلیل دے بیا نهم او لسم زجر دے بیا رد دے په مشرکانو په ذکر د مثال د ذباب سره او جواب د دوؤ سوالونو بیا آخری دلیل عقلی دے بیا اته او امر دی د پاره د استقامت په توحید او د اشاعت د هغے۔

تفسیر :- په دے آیت ۵۸ کښ بشارت دے مهاجرینو ته روستو د بشارت د عام مؤمنانو ته په ۵۰ کښ۔ دا آیت دلیل دے چه روستو د هجرت نه مقتولیت او بغیل مرګ مرکیدل دواړه برابر دی لیکن دا برابری په بعضے نعمتونو کښ ده اګر چه په نورو درجو کښ مقتول شهید

لَيُدْخِلَنَّهُمْ مُّدْخَلًا يَّرْضَوْنَهٗ ۭ وَاِنَّ

خامخا داخل به کړي دوی لره ځاے ته چه دوی به پرے خوشحاله وي، او یقیناً

اللّٰهَ لَعَلِيْمٌ حَلِيْمٌ ۝۵۹ ذٰلِكَ ۚ وَمَنْ عَاقَبَ

الله تعالیٰ پوهه دے صبر کوونکے دے. دا خبره یقیني ده. او چا چه بدل واخسته

بِمِثْلِ مَا عُوْقِبَ بِهٖ ثُمَّ بُغِيَ

پشان د هغے چه دوی لره تکلیف ورکړے شوے وو بیا ظلم کړے شو په ده

عَلَيْهِ لَيَنْصُرَنَّهُ اللّٰهُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ۝۶۰

په هغه باندے خامخا مدد به کوي د ده سره الله تعالیٰ. یقیناً الله تعالیٰ معافي کوونکے بخښونکے دے.

غوره دے - رِزْقًا حَسَنًا چه بے کړاوه وي او هر وخت لذت ورکوونکے وي او هیڅ نقصان او مرض نه پیدا کوي دا خالصه رزق دے - او دا رزق په برزخ کښ دے لکه سورة العمران ۱۶۹ یا په جنت کښ دے -

رَازِقِيْنَ، دا جمع په اعتبار د ظاهر سره ده ځکه چه خلق هم یو بل ته رزق ورکوي -

۵۹ :- دا هم بشارت دے په باره د مکان کښ روستو د بشارت د خوراک نه. ځکه فکر د روزۍ مخکښ دے د مکان د رهائش نه.

مُدْخَلًا يَّرْضَوْنَهٗ، مراد ترے نه جنت دے -

۶۰ :- په دے آیت کښ بشارت دنیوي دے په نصرت سره روستو د بشارت اخرویه نه - او مراد د عاقب نه بدل اخستل دي په قتال سره او ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ عطف دے په عوقب باندے مراد دا چه چا له چه تکلیف ورکړے شو او بیا پرے ظلم اوکړے شو یعني د وطن نه او ویستلے شو او دغه شخص بدل واخست په قتال کولو سره نو الله تعالیٰ به د ده سره ضرور نصرت کوي -

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِى النَّهَارِ

دا مدد پدے وجه دے چه یقینًا الله تعالیٰ ورننه باسی شپے لره په ورځ کښ

وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِى الَّيْلِ وَاَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ

او ورننه باسی ورځ لره په شپه کښ او یقینًا الله تعالیٰ هر څه آوری

بَصِيْرٌ ﴿٦١﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّ

هر څه وینی۔ دا مدد پدے وجه دے چه یقینًا الله تعالیٰ حقه ده بندګی کول د هغه او یقینًا

مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ هُوَ الْبَاطِلُ

بندګی کول د هغه چاچه دوی ورته امداد شه وائی سیوا د الله تعالیٰ نه دا باطل ده

وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِىُّ الْكَبِيْرُ ﴿٦٢﴾

او یقینًا الله تعالیٰ اوچت دے لوئے ذات والا دے۔

سلا۔ دا اول علت دے راودے ته انی علت وائی) د پاره د نصرت د مجاهد سره یعنی الله تعالیٰ په انقلاب د لیل او نهار قادر دے نو په نصرت کولو هم قادر دے یا په دے کښ اشاره ده په طریقه د مثال سره فائدے د نصرت ته یعنی امداد د دے د پاره کوی چه تیارے په رنړا سره بدلے کړی لکه چه رنړا په تیارو سره بدلوی۔

سلا۔ دا دویم علت دے د نصرت کولو راودے ته لمی علت وئیلے شی) چه الله تعالیٰ حق الٰهه دے او نور الٰهه باطل دی نو الله تعالیٰ مدد کولے شی او نور الٰهه مدد نشی کولے۔ یا په دے کښ اشاره ده مقصد د نصرت ته یعنی مدد د دے د پاره کوی چه د الله تعالیٰ توحید ښکاره شی او د شرک بطلان ښکاره شی۔

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ز

آیا نه گوري چه یقیناً الله تعالیٰ راورولے دی د آسمان د طرف نه اوبه

فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً ط إِنَّ اللَّهَ

پس شي صباله زمکه شنه ۔ یقیناً الله تعالیٰ

لَطِيفٌ خَبِيرٌ ﴿٦٣﴾ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا

مهربان دے خبردار دے ۔ خاص د هغه په اختیار کښ دی هغه چه په آسمانونو کښ دی او هغه

فِي الْأَرْضِ ط وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْغَنِيُّ

په زمکه کښ دی، او یقیناً الله تعالیٰ خاص هغه دے بے حاجته

الْحَمِيدُ ﴿٦٤﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم

ستائیلے شوے ۔ آیا نه گورې چه یقیناً الله تعالیٰ ستاسو د وس د لاندے کړی ستاسو د فائدے د پاره

مَّا فِي الْأَرْضِ وَالْفُلْكَ تَجْرِي فِي الْبَحْرِ

هغه څه چه په زمکه کښ دی او کشتۍ روانے دی په دریاب کښ

س ۶۳:۔ دا دلیل عقلی د توحید دے چه هغه په مخکښ آیت کښ ذکر کړے شوے دے۔

فَتُصْبِحُ، د عکرمه نه روایت دے چه دا په مکه او تهامه علاقه کښ دی چه باران اوشي نو صباله زمکه کښ شینکئ بتکاره شي۔ او ابن عطیه وئیلي دی چه دا سے په علاقه د سوس اقصا کښ هم مالیدلے دی نو فا دلته په خپله معنیٰ د اتصال دے او که عام ملکونه مراد شي نو فا صرف د عطف د پاره دے۔

س ۶۴:۔ دا بل عقلی دلیل دے په توحید باندے او رد د شرک فی التصرف دے۔

لَهُ ملکیت او ملوکیت او عبودیت پکښ ټول مراد دی۔

بِأَمْرِهِ ۗ وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ أَنْ تَقَعَ

په حکم د الله تعالیٰ سره. او را تینګ کړي دی آسمان لره د دا پریوتلو نه

عَلَى الْأَرْضِ إِلَّا بِإِذْنِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ

په زمکه باندے سوا د حکم د هغه نه، یقیناً الله تعالیٰ

بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَحِيمٌ ﴿٦٥﴾ وَهُوَ الَّذِي

په خلقو باندے شفقت کوونکے رحم کوونکے دے. او هغه دالے ذات دے

أَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ۗ

چه ژوندي کړي يې تاسو بيا به مړه کوي تاسو بيا به ژوندي کوي تاسو،

إِنَّ الْإِنْسَانَ لَكَفُورٌ ﴿٦٦﴾ لِكُلِّ أُمَّةٍ

یقیناً انسان خامخا ناشکره دے. د پاره د هرے دلے

جَعَلْنَا مَنْسَكًا هُمْ نَاسِكُوهُ

مقرر کړې مونږ طریقه د بندګۍ چه دوی چلیږي په هغې باندے

٦٥: دا یل دلیل عقلی دے په دیکښ تصرفاتِ الٰهیه په زمکه او اسمان او دریابو کښ ذکر کړے دی او دا آفاقی دلیل دے او تسخیر د زمکے د څیزونو دا دے چه د هغې نه انسانان هر قسم فائدے اخلی په امر د الله تعالیٰ سره.

وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ، کښ اشاره ده چه آسمان بغیر د ستنو نه الله تعالیٰ را تینګ کړے دے.

إِلَّا بِإِذْنِهِ، کښ اشاره ده چه په ورځ د قیامت به اذن د الله تعالیٰ او شی تو آسمانونه به ټکړے شی.

٦٦: دا دلیل عقلی انفسی دے د انسان درے حالات ئے ذکر کړی دی. او بیا زجر ورکوی چه سره د دومره دلیلونو نه انسان منکر او مشرک دے.

فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْاَمْرِ وَادْعُ اِلٰى

پس دوی تا اونه باسی دکارنه په وجه دجګړے سره په دین کښ او دعوت کوه

رَبِّكَ ؕ اِنَّكَ لَعَلٰى هُدًى مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۶۷﴾

خپل رب ته، یقیناً ته خامخا ئے په هدایت برابر باندے۔

وَاِنْ جٰدَلُوْكَ فَقُلِ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا

او که دوی جګړه کوی تا سره پس اُوایه چه الله تعالیٰ ښه پوهه دے په هغه

تَعْمَلُوْنَ ﴿۶۸﴾ اَللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ

کاروتو چه کوئ تاسو۔ الله تعالیٰ به فیصله اوکړی په مینځ ستاسو کښ په ورځ

الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿۶۹﴾

د قیامت په هغه څیز کښ چه تاسو ئے په هغے کښ اختلاف کوونکی۔

ف۶۷:۔ هرکله چه د انسان کفرئیے ذکرکړو نو د هغے د علاج د پاره دعوت ذکرکوی لیکن د اول نه تشجیع ذکرکوی، حاصل دا دے چه د هرے دلے د پاره جدا جدا لار او مسلک دے نو دوی به ستا سره ضرور جګړه کوی ستا د دین او مسلک په باره کښ لیکن دوی دے تا له پرے نه جګړو سره د کارنه او نه باسی بلکه دعوت کوه توحید د رب خپل ته ځکه چه ستا سره پوره صحیح دلیلونه شته دے۔

لِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا، په دے جمله کښ منسکا حق او باطل دواړه قسمه طریقو ته شامل ده۔ ځکه چه منسک په اصل کښ هغه ځائے اولارے ته وئیلے شی چه انسان هغے ته عادةً ځی راځی د پاره د خیر یا د شر۔ او جعل تکوینی او تشریعی دواړو ته عام دے۔ هُدًى مفصل او دلیلونو ته شامل دے۔

ف۶۸:۔ یعنی سره د دعوت د حق نه که دا منکرین جګړے کوی نو د دوی د نورو جوابونو نه خاموش شه ځکه چه دوی عنادیان دی صرف د الله تعالیٰ علم ته ئے اوسپاره۔

ف۶۹:۔ دا هم عنادیانو ته جواب دے تفسیر قرطبی کښ لیکلی دی چه پدے

أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَآءِ

آیا ته نه پوهیږې چه یقیناً الله تعالیٰ پوهه دے په هغه څه چه په آسمان کښ دی

وَالْاَرْضِ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ فِي كِتٰبٍ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ

او زمکه کښ دی، یقیناً دا ټول په کتاب (لوح محفوظ) کښ دی، یقیناً دا

عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿٧٠﴾ وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ

په الله تعالیٰ باندے آسان دی۔ او بندګي کوی دوی سوا د

دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا

الله تعالیٰ نه د هغه څه چه نه دے نازل کړے په هغے باندے هیڅ دلیل

وَّمَا لَيْسَ لَهُمْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ

او د هغه څه چه نشته دوی لره په هغے باندے علم، او نشته ظالمانو لره

مِنْ نَّصِيْرٍ ﴿٧١﴾ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا

هیڅ مددګار۔ او کوم وخت چه اولوستلے شي په دوی آیاتونه زمونږ

آیاتونو کښ دعوت کوونکو ته تعلیم د آداب دے کوم وخت چه د دوی مخاطبه وی د عناد یانو سره نو بیا دے طریقه دے د هغوی جواب اوکړی۔

سك ۱۔ دا دلیل عقلی دے په اثبات د علم د الله تعالیٰ سره په هر څیز باندے۔ او دا تائید دے د تیر شوی آیت چه الله تعالیٰ د دوی د اختلاف فیصله کولے شي ځکه چه په هر څیز باندے عالم دے۔

اِنَّ ذٰلِكَ، دا اشاره ده اختلاف د خلقو ته یا اشاره ده د آسمانونو او زمکو څیزونو ته چه دا ټول د تقدیر په کتاب کښ دی او په دویم ذٰلِكَ کښ هم دا دواړه توجیه دی۔ او دا آیت دلیل دے په اثبات د لیکلو د تقدیر اتو باندے۔

سك ۱۔ په دے آیت کښ زجر دے په شرک فی العبادة باندے یعنی د مشرکانو سره منزل دلیل نشته او دلیل عقلی هم نشته او دیته ئے ظلم وئیلے دے۔

بَيِّنٰتٍ تَعْرِفُ فِيْ وُجُوْهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا

بشکاره پیژنې ته په مخونو دَ هغه کسانو کښې چه کفر ئې کړیدے

الْمُنْكَرَ ۭ يَكَادُوْنَ يَسْطُوْنَ بِالَّذِيْنَ

خفګان، نیژدے دے چه حمله اوکړي په هغه کسانو باندے

يَتْلُوْنَ عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ۭ قُلْ اَفَاُنَبِّئُكُمْ

چه بیانوي په دوی باندے آیاتونه زمونږ، ته اُوایه آیا نو خبر درکړم تاسو ته

بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكُمْ ۭ اَلنَّارُ ۭ وَعَدَهَا اللّٰهُ

په ډیر ناکاره سره دَ دے نه چه اُور دے، وعده کړیده دَ هغې الله تعالی

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿٧٢﴾

دَ هغه کسانو سره چه کفر ئې کړیدے، او بد دے ځائے دَ ورګرځیدلو دغه اُور۔

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوْا

اے خلقو بیانیږي یو مثال نو غوږ کیدئ

لَهٗ ۭ اِنَّ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

هغې ته، یقیناً هغه کسان چه تاسو ورته رابللے شئ وائې سوا دَ الله تعالی نه

ﷺ ۱. پدیکښې زجر دے په انکار دَ قرآن سره یعنې دوی سره خو دلیل نشته او هر کله چه دوی ته په دلیل دَ توحید کښې قرآن لوستلے کیږي نو په هغې باندے خفه کیږي او دَ قرآن په واضح آیاتونو سره غصه کیږي او نیژدے وي چه په قرآن بیان کوونکي باندے حمله اوکړي دَ پاره دَ منع کولو دَ هغهٔ۔

بِشَرٍّ، یعنې ورته اُوایه چه ستاسو په نیز قرآن بیان کول شر دے لیکن دَ دے نه زیات شر اُور دَ جهنم دے چه دَ قرآن نه منع کوونکو دَ پاره تیار دے۔

لَنْ يَّخْلُقُوْا ذُبَابًا وَّلَوِ اجْتَمَعُوْا لَهٗ ؕ

هیڅ چرې نشي (جوړولې) پیدا کولې یو مچ لره اګر که ټول راغونډ شي هغې ته.

وَاِنْ يَّسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا لَّا

او که چرې اوتختوي د دوی نه مچ څه څیز نشي

يَسْتَنْقِذُوْهُ مِنْهُ ؕ ضَعُفَ الطَّالِبُ

خلاصولې هغې لره د هغه نه، کمزورې دے غوختونکے

وَالْمَطْلُوْبُ ﴿۷۳﴾ مَا قَدَرُوا اللّٰهَ

او د چا نه چه غوختنه کیدیشي. عزت نه دے کړے دوی د الله تعالیٰ

۷۳ :۔ یعني هر کله چه دوی د قرآن د بیان په وخت کښ شور او جګړه کوي او غوږ ورته نه نیسي نو دغه وخت دوی ته د شور د دفع کولو د پاره او وایه چه شور مه کوئ غوږ کیدئ یو عجیبه مثال پیش کیدلے شي۔

مثل ذکر د ذُبَابٌ د ټولو مخلوق نه په طریقه د مثال سره دے یا مراد د مثل نه عجیبه بیان دے۔ حاصل دا دے چه معبودان ما سوی الله (که اولیاء وي که بتان وي) ټول کمزوري دي ځکه چه مچ په خلقو کښ ناقص الخلقت دے لیکن دوی ټول یو مچ هم نشي جوړولے بلکه مچ چه پخپلو پنجو او خوله کښ د دوی خوراکونو وغیرو نه څه څیز اوتختوي نو د دوی معبودانو وس نشته چه هغه ترینه خلاص کړي۔ یعني دوی نه اختیار د ایجاد لري او نه د ځان نه ضرر دفع کولے شي۔ نو دا سے کمزوري مخلوق به څنګه حاجتونه پوره کړیشي؟

فائده :۔ ذُبَابٌ یې د څو وجو نه خاص ذکر کړو۔

اول دا چه د معبودانو ما سوی الله په دربارونو کښ خوراک څښاک او خواږه په طور د نذر د غیر الله سره ډیر وي او هغې له مچان ډیر راځي۔ دویم دا چه د مچ په بدن کښ اندامونه د ماشي نه هم کم دي نو چه لږ اندامونو والا نشي پیدا کولے نو د ډیرو اندامونو والا به څنګه

حَقَّ قَدْرِهٖ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيْزٌ ﴿٧٤﴾

لائق عزت دَ هغهٔ، يقيناً الله تعالىٰ قوت والا دے زورآور دے۔

اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰۗىِٕكَةِ رُسُلًا وَّمِنَ

الله تعالىٰ غوره کوي دَ ملائيکو نه پيغام رسوونکي او دَ

النَّاسِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ﴿٧٥﴾

انسانانو نه، يقيناً الله تعالىٰ هرڅهٔ آوري هرڅهٔ ويني۔

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۭ

عالم دے الله تعالىٰ په هر هغه حال چه وړاندے دَ دوي دي او هغه چه روستو دَ دوي دي

بيا اکثر شي او بيا دے وجه اکثر په دربارونو دَ غير الله کښ بيمار او ړانده، ګونګ، شل خلق پراته وي ليکن دغه قبرونو والا هغوي نشي جوړولے نو ستر مخلوق له به څه حاجتونه پوره کړي۔ دريم دا چه مچ دَ الله تعالىٰ په مخلوق کښ ډير اجهل دے (حيوة الحيوان داسے ذکر کړيدي) او دَ دے وجے نه دَ قبر دَ منجور مثال دَ بے حيا مچ سره ورکړے شويدے نو دا معبودان من دون الله دَ دغه بے حيا هم مقابله نشي کولے او دَ هغوي نه څه څيز نشي راخلاصولے۔

الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوْبُ، ابن جرير وئيلي دي چه طالب دغه معبود (صنم) دے او مطلوب ذباب دے او دويم قول دا دے چه طالب عابد دے او مطلوب معبود من دون الله دے۔

سلک:- دا زجر دے دغه مشرکانو ته چه دَ کمزوري مخلوق نه حاجات غواړي او الله تعالىٰ ئے هير کړيدے نو دوي دَ الله تعالىٰ قدر نه کوي او دَ هغه صفتونه نهٔ پيژني۔ او دا رنګ رد دَ مشرکانو دے چه هغوي په موحد بانده طعن کوي چه تا دَ اولياؤ او بزرګانو قدر نه دے کړے نو جواب او شو چه تاسو دَ الله تعالىٰ قدر نهٔ کوئ۔

سلک:- دا جواب دَ قول دَ مشرکانو دے هغوئ وائي چه موږ دَ دے اولياؤ بزرګانو نه حاجات ځکه غواړو چه الله تعالىٰ دوي ته دا اختيارات

وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٧٦﴾ يَا أَيُّهَا

او خاص الله تعالیٰ ته ورګرځولے شي ټول کارونه - اے

الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا

ایمان والو رکوع کوئ او سجده کوئ

وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ

او بندګي کوئ خاص د رب خپل او کوئ د خیر کارونه

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٧٧﴾ السجدة وَجَاهِدُوا فِي اللَّهِ

د دے د پاره چه کامیاب شئ - او جهاد کوئ په لار د الله تعالیٰ کښ

السجدة عند الشافعي

رد الوهیت) ورکړے دی. حاصل د جواب دا دے چه الله تعالیٰ مخلوق خپل له چه لویه مرتبه ورکوی نو هغه رسالت دے د رسالت نه بره مرتبه د خدائی توب ده هغه هیڅ چا لره نه ورکوی.

[۷۵] :- دا د مخکښ د پاره دلیل دے چه چاله رسالت ورکوی نو د هغوی په حال پاندے ښه عالم دے او دارنګ د هغوی په عبدیت او عجز باندے هم عالم دے ځکه ئے د ځان سره نه شریکوی.

مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ، حاضر حالات یا راتلونکی - د مَا خَلْفَهُمْ، تیر شوی حالات.

[۷۷] :- هر کله چه بیان شول احوال د مشرکانو نو اوس خطاب کوی مؤمنانو ته په هغه امورو سره چه په هغې سره فلاح او نصرت حاصلیږی او هغه ځلور اوامر دی په دے آیت کښ او ځلور دی په روستو آیت کښ - رکوع او سجده ئے خاص ذکر کړه چه د نورو سرکشانو نه فرق په دے سره راځی په قیام سره نه راځی.

وَاعْبُدُوا، عام دے د رکوع او سجدے نه ټولو عبادات بدنیه او مالیه ته شامل دے.

وَافْعَلُوا الْخَيْرَ، دا د عبادت نه هم عام دے ښه اخلاق او د مخلوق سره احسان کول او نفلی کارونه پکښ داخل دی. ابن کثیر په تفسیر د

حَقَّ جِهَادِهٖ ؕ هُوَ اجْتَبٰىكُمْ وَمَا جَعَلَ

پوره جهاد ، هغه غوره کړي يئ تاسو (د پاره د جهاد) او نه ده کړې الله تعالىٰ

عَلَيْكُمْ فِى الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ ؕ مِلَّةَ

په تاسو باندې په دين کښې هيڅ تنګسيا (تابع شئ) د دين

اَبِيْكُمْ اِبْرٰهِيْمَ ؕ هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ ۙ

د پلار ستاسو چه ابراهيم عليه السلام دې ، هغه تاسو له نوم کيخودلې دې مسلمان،

مِنْ قَبْلُ وَفِىْ هٰذَا لِيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ

مخکښې د دې قرآن نه (په نورو کتابونو کښې) او په دې قرآن کښې د دې د پاره چه شي رسول

شَهِيْدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ

رسوونکې (د دين) تاسو ته او تاسو شئ رسوونکي

عَلَى النَّاسِ ۖۚ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا

(د دين) نورو خلقو ته پس پابندي کوئ د مونځ او ورکوئ

الزَّكٰوةَ وَاعْتَصِمُوْا بِاللّٰهِ ؕ هُوَ مَوْلٰىكُمْ

زکوٰة او کلک شئ په دين د الله تعالىٰ پورې ، هغه ستاسو مولىٰ دې

فَنِعْمَ الْمَوْلٰى وَنِعْمَ النَّصِيْرُ ﴿٧٨﴾

نو ښه مولىٰ دې او ښه مددګار دې .

سنه ٨١ د دې سورت کښې روايات د احمد او ترمذي او ابوداؤد په اثبات د دې سجده کښې ذکر کړې دي او هريو باندې کلام نقل کړې دې بيا يې ويلې دي چه دا روايات بعضې د بعضو تائيد کوي.

سنه ٨٢ :- مراد د جهاد نه عام دې مجاهده د نفس سره او د شيطان سره او د ظالمانو سره او دعوت او تبليغ د حق ټولو ته شامل دې.

حَقَّ جِهَادِهٖ ، مراد دا دې هر يو فرد له جهاد په شرعي طريقې سره ضروري دې يا مراد دا چه نفس او مال او جان ټول په

جهاد کښې صرف کړئ - هُوَ اجْتَبٰكُمْ د دے ځائے نه شپږ علتونه د جهاد د پاره ذکر کوی - اول دا چه الله تعالیٰ تاسو غوره کړئ (منتخب ئے کړئ) د جهاد او دعوت د پاره لکه چه سورة العمرآن ۱۱۰ کنتم خیر امة الایة دے - دویم دا چه په تاسو باندے د دین په اعمالو او د دین په دعوت کښې حرج نه دے کیخودلے بلکه ستاسو د وس او طاقت متناسب دے او په دیکښې اشاره ده نصرت د الله تعالیٰ ته - دریم دا چه جهاد د ملت ابراهیمیه نخه ده. څلورم دا چه ابراهیم علیه السلام ستاسو نوم مخکنو کتابونو او په دے قرآن کښې مسلمین کیخودلے دے او د مسلمانان کار جهاد دے - ضمیر د سَمّٰكُمْ ابراهیم علیه السلام ته راجع دے - وَفِيْ هٰذَا کښې اشاره ده سورة بقره ۱۲۸ ته دویم قول دا دے چه دا ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے مِنْ قَبْلُ نه مراد مخکنی کتابونه دی و فی هذا نه مراد قرآن کښې هغه آیاتونه دی چه په هغے کښې دے امت ته د اسلام نسبت کړے شوے دے برابره خبره ده که دا نسبت په طریقه د اسم فاعل سره وی او که د فعل سره وی او په حدیث د نسائی کښې المسلمین المؤمنین عباد الله ذکر دے نو معلومه شوه چه مراد په دیکښې تسمیه صفتی ده دا عَلَم نه دے - پنځم دا چه رسول به په تاسو باندے شهادت کوی د تبلیغ د دین تاسو ته - شپږم دا چه تاسو به هم شهادت ورکوئ په نورو خلقو باندے او دا مرتبه ستاسو د وجے د جهاد کولو نه ده او د دے شهادت تفسیر په سورة بقره ۱۴۳ کښې تیر شوے دے او بیا درے امور ئے نور ذکر کړل چه په هغے سره د دعوت او د جهاد د پاره تثبت حاصلیږی او اختتام ئے په بشارت سره اوکړو چه په دے طریقه باندے عمل کولو سره د الله تعالیٰ ولایت (دوستانه) او نصرت حاصلیږی -

اللهم انصرنا ولا تنصر علینا اللهم اَعِنَّا وَلَا تُعِنْ علینا.

تفسیر د سورة الحج بحمد الله ختم شو -

| سورة المؤمنون مكية | بسم الله الرحمن الرحيم | اياتها ١١٨ ركوعاتها ٦ |
|---|---|---|

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړم په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے

قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١﴾ الَّذِينَ

یقیناً کامیاب دی مؤمنان ۔ هغه کسان

بسم الله الرحمن الرحيم

## سُورَةُ الْمُؤْمِنُونَ

ربط :۔ د دے سورت د سورة الحج سره دا دے ۔

۱:۔ د سورة الحج په آخر کښې مؤمنانو ته اوامر ذکر شول د پاره د دنیوی کامیابئ نو د دے سورت په اول کښې ذکر کوی صفات د مؤمنانو د پاره د فلاح اخروی ۔

۲:۔ په هغه سورت کښې رد دے په شرک د تحریم او تحلیل نو په دے سورت کښې تردید دے په شرک فی البرکات باندے چه هغه مبداء د شرک فعلی دے ۔

دعوی د دے سورت رد دے په شرک فی البرکات باندے په شپږو طریقو سره ۔

اول دولس عقلی دلیلونه، شپږ د سورة په اول کښې او شپږ په آخر کښې ۔ دویم شپږ نقلی دلیلونه ۔ دریم مقابله په مینځ د صفاتو د مؤمنانو او د مشرکانو کښې او هر یو د هغے نه څوارلس دی ۔ څلورم وېرول مشرکانو ته په ذکر د اووه اسبابو د عذاب او اووه حالتونه د عذاب ۔ پنځم تردید په شپږ قسمونو د شرک ۔ شپږم ذکر د یولس اسماء حسنیٰ د الله تعالیٰ د معرفت د پاره ۔

خلاصه د سورت :۔ دا سورت تقسیم دے څلورو بابونو ته ۔ اول باب تر ۲۲ پورے دے په دے کښې بشارت دے مؤمنانو ته په اووه صفاتو سره او بیا شپږ عقلی دلیلونه دی او دعوی د سورت ده ۔

تفسیر :۔ ۱ :۔ په دے آیت کښې ئے مرکزی صفت ذکر کړے دے چه ایمان دے ۔ امام ترمذی حدیث کښې ذکر کړیدے د هغے مضمون

هُمْ فِیْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ۝۲ وَالَّذِیْنَ

چه دوی په خپلو مونځونو کښې عاجزي کوونکي دي۔ او هغه کسان

هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ۝۳ وَالَّذِیْنَ

چه دوی د بے فائدے خبرونو نه مخ گرځوي۔ او هغه کسان

دا دے چه دا آیاتونه چه نازل شول نو نبی صلی الله علیه وسلم قبلے ته مخ کړلو او لاس یې پورته کړل دعا یې او فرمائیله اَللّٰهُمَّ زِدْنَا وَلَا تَنْقُصْنَا وَاَکْرِمْنَا وَلَا تُهِنَّا وَاَعْطِنَا وَلَا تَحْرِمْنَا وَاٰثِرْنَا وَلَا تُؤْثِرْ عَلَیْنَا وَاَحِبَّنَا وَلَا تَعِقَّ عَلَیْنَا وَانْصُرْنَا وَلَا تَنْصُرْ عَلَیْنَا وَارْضَ عَنَّا وَرْضِنَا۔ بیا یې او فرمائیل په ما باندے لس آیاتونه نازل کړے شویدي چا چه پدے باندے عمل اوکړلو نو جنت ته به داخلیږي۔ اشاره شوه چه مراد د فلاح نه جنت ته داخلیدل دي۔

سـ۲:۔ خشوع صفت د زړهٔ دے چه آثار د هغې په اندامونو باندے ښکاره کیږي۔ یعنی په مانځه کښې د بدن او جامو سره لوبے نه کوي او په زړه کښې سوا د مانځه نه نور فکرونه نه راولي او په قیام رکوع سجده کښې صرف د سجدے ځائے ته گوري او د خپلے مخے نه کاڼړي وغیره (بے ضرورته) نه لرے کوي او د قرآن په معنی باندے فکر ساتي او د حکم د خشوع په باره کښې د اهل علم اختلاف دے صحیح دا ده چه خشوع فرض ده اگرچه په ټول نمونځ کښې په لږ ساعت وي۔

سـ۳:۔ دا دریم صفت دے او د لغو نه مراد ټول گناهونه او عبث کارونه دي۔ کفر او شرک بدعات ورسمونه رواجونه دروغ غیبت کول وغیره پکښې داخل دي۔ او دا رنگ مجلسونه د شرک او بدعاتو او رسمونه رقصونه وغیره هم په دے کښې داخل دي۔

هُمْ لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ ﴿۴﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ

چه دوی زکوٰة لره ورکوونکی دی۔ او هغه کسان چه دوی

لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ﴿۵﴾ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ

د خپلو عورتونو ساتنه کوی۔ مګر په خپلو بیبیانو باندی

اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ

یا هغه وینځې چه مالکان دی ئې لاسونه د دوی پس یقیناً دوی نه دی

مَلُوْمِيْنَ ﴿۶﴾ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ

ملامته کړے شوی۔ پس چا چه اولټوو سوا د دے نه

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ﴿۷﴾ وَالَّذِيْنَ

نو دغه کسان دوی د حد نه تیروتونکی دی۔ او هغه کسان

سکـ:۔ دا څلورم صفت دے او د زکوٰة نه مراد د نفس د پاک ساتلو عملونه دی (تزکیه د نفس) او پاک والے د مال په صدقاتو او زکوٰة ورکولو سره هم پکښې داخل دی۔ او ابن کثیر وئیلی دی چه اصل زکوٰة د مال فرض شوے دے په مکه کښې او نصاب او مقدارونه ئې مقرر شوی دی په مدینه کښې۔

سکـ:۔ دا پنځم صفت دے د عفت او د پاکدامنۍ او حفاظت د فرجونو دوه قسمه دے۔ ۱ د بدکاره کولو نه ځان ساتل ۲ او د زنا بدکارئ نه هم پاک ساتل دی۔

سکـ:۔ دا آیت دلیل دے چه وینځه د سړی دغه مولٰی لره بغیر د نکاح نه جائز ده ځکه چه د اَزْوَاجِهِمْ نه ئې جدا ذکر کړیده۔

سکـ:۔ دا آیت دلیل دے چه زنا او اغلام بازی او متعه ټول حرام دی ځکه چه دا ټول په (وراء ذٰلك) کښې داخل دی او دا رنګ په سورة معارج سکـ۳ کښې ذکر دی او امام شافعی رحمه الله د دے آیت نه دلیل نیولے دے چه اِسْتِمْنَا په لاس سره حرام ده او دا صحیح دے

هُمْ لِأَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ﴿۸﴾

چه دوی د امانتونو خپلو او لوظونو خپلو لحاظ کوونکی دی۔

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ﴿۹﴾

او هغه کسان چه دوی په مونځونو خپلو باندے ساتنه کوی۔

اُولٰٓئِكَ هُمُ الْوٰرِثُوْنَ ﴿۱۰﴾ الَّذِيْنَ

دغه کسان دوی حقداران دی هغه کسان

يَرِثُوْنَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۱۱﴾

چه حقدار به شی د جنت فردوس، دوی به په هغے کښ همیشه وی۔

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ

او یقینًا پیدا کړے مونږ انسان د چاتړ کړے شوے

مِّنْ طِيْنٍ ﴿۱۲﴾ ثُمَّ جَعَلْنٰهُ نُطْفَةً فِيْ

خټے نه۔ بیا جوړه کړه مونږ هغه نطفه په

ف۸:۔ دا شپږم صفت دے او امانات ټول دینی او دنیوی ذمه وارو ته شامل دی۔ او عهد نه مراد هغه امور دی چه انسان ئے په ځان باندے لازم اوګرځوی که حقوق الله دی او که حقوق العباد دی۔

ف۹:۔ دا اووم صفت دے او مراد د محافظت د صلوٰۃ نه پوره شرطونه او ارکان دی او همیشه کول د مونځ او په سنت طریقے سره کول او مفسداتو او مکروهاتو نه بچ ساتل دی۔ خشوع صفت قلبی او باطنی وو۔ او محافظت صفت ظاهری دے۔

ف۱۰، ف۱۱:۔ دا بیان د فلاح دے چه په اول آیت کښ ذکر شویده او مراد د وراثت نه استحقاق دے لکه وارث چه حقدار د میراث دے نو دارنګ دوی حقدار د جنت دی۔

ف۱۲:۔ دا اول دلیل عقلی نفسی دے مراد د انسان نه آدم علیه السلام دے او سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ، نه مراد دا دے چه نرمه خټه

قَرَارٍ مَّكِيْنٍ ﴿۱۳﴾ ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ

ځاے د قرار مضبوط کښې. بیا شکل هم ورکړو نطفې لره

عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً

د ټکړې د وینې بیا شکل هم ورکړو ټکړې د وینې لره پوټې د غوښې

فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظٰمًا فَكَسَوْنَا

پس اوګرځوو موږ پوټې هډوکو والا بیا واغوستله موږ

الْعِظٰمَ لَحْمًا ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ خَلْقًا

هډوکو ته غوښه بیا پیدا کړو موږ هغه په پیدائش

اٰخَرَ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ ﴿۱۴﴾

بل سره، پس برکات ورکوونکے دے الله تعالیٰ چه ښائسته د شکل جوړولو دے

ثُمَّ اِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ ﴿۱۵﴾

بیا یقیناً تاسو روستو د دے نه خامخا په مړه کیږئ۔

په موټي کښې اونیولے شي او زور ورکړے شي او په ګوتو کښې ختمه را اوځي نو هغې ته سلٰلة وائي۔

۱۳، ۱۴:- جَعَلْنٰهُ، ضمیر نه مراد اولاد د آدم دے یعنی جعلنا نسله په قرینه د سورة سجده ۸۔ او د عام انسانانو د پیدائش ښیږ حالات ئې ذکر کړے دي۔ او دا رنګ سورة الحج کښې تیر شویدي۔ او مراد د خلق آخر نه د روح اچولو نه روستو تر مرګه پورې ټول حالات مراد دي۔ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ، دعوه د سورت ده او معنیٰ د دې په سورة اعراف کښې تیره شویده او اَحْسَنُ، په معنیٰ د مضبوط او کلک دے یا خلق په معنیٰ د شکل جوړولو دے او اَحْسَنُ په معنیٰ د ښائسته دے۔

۱۵:- دا حکم عام دے، انبیاؤ اولیاؤ ته هم شامل دے او په دے کښې اشاره زوال د مخکنی نعمت چه ژوند دنیوی دے۔

ثُمَّ اِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ تُبْعَثُوْنَ ﴿۱۶﴾

بیا یقیناً تاسو په ورځ د قیامت به دوباره ژوندی کیږئ۔

وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَآئِقَ ۖ

او یقیناً پیدا کړی دی موږ او چتے ستاسو نه اوۀ لارے

وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غٰفِلِيْنَ ﴿۱۷﴾

او نه يو موږ د مخلوق نه ناخبره۔

وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۢ بِقَدَرٍ

او راورولے دی موږ د طرف د آسمان نه اوبه په اندازه سره

فَاَسْكَنّٰهُ فِى الْاَرْضِ ۖ وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍ ۢ

نو اوسولے دی موږ هغه په زمکه کښ، او یقیناً په اوچولو

بِهٖ لَقٰدِرُوْنَ ﴿۱۸﴾ فَاَنْشَاْنَا لَكُمْ بِهٖ

د هغے باندے خامخا قدرت لرونکی یو۔ نو پیدا کړل موږ تاسو لره په دے اوبو

۱۶:۔ دا ذکر د دویم ژوند دے او هغه هم ژوند حقیقی دے پشان د ژوند د دُنیا، او د قبر ژوند هم شته د نورو دلیلونو په وجے سره لیکن هغه ژوند حقیقی نه دے ځکه ئے نه دے ذکر کړے۔

۱۷:۔ دا دویم دلیل عقلی آفاقی علوی دے۔ طَرَآئِقَ نه مراد دا دے چه د یو بل د پاسه دی یا مراد د دینه دا چه لارے دی د ملائکو د تلو راتلو د پاره۔

عَنِ الْخَلْقِ، دا مصدر په معنیٰ د مفعول دے یعنی ټول مخلوق او په دیکښ اشاره ده چه د آسمانونو حفاظت او امساك هم الله تعالیٰ کوی۔

۱۸:۔ دا دریم دلیل عقلی وسطی دے او اَسْكَنّٰهُ مطلب دا دے چه دا اوبه د باران په زمکه کښ په طریقه د کوهیانو او چینو، خوړونو سیندونو سره موجود دی۔

وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍ آه، کښ تخویف دے بندګانو ته که الله تعالیٰ دا

جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ لَكُمْ فِيْهَا

باغونه د کجورو او د انګورو ستاسو د پاره په هغې کښ

فَوَاكِهُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿١٩﴾

میوې ډیرې دي او بعضې د هغې نه تاسو خورئ (او پیدا کړې مو)

وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُوْرِ سَيْنَاۗءَ

او ونه چه را اوځي د غر خائسته نه

تَنْۢبُتُ بِالدُّهْنِ وَصِبْغٍ لِّلْاٰكِلِيْنَ ﴿٢٠﴾

راټوکوي تیل او ښخکرې د پاره د خوراک کوونکو۔

وَاِنَّ لَكُمْ فِي الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۭ نُسْقِيْكُمْ

او یقینًا تاسو لره په څاروو کښ خامخا عبرت دے، څکوو مونږ تاسو باندے

مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهَا وَلَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ

د هغې نه چه په خیټو د هغې کښ دي او تاسو لره په هغې کښ فائدے

او به اوچې کړي نو هیڅوک بے نشي واپس کولے دا سے په سورة ملک ۳۰ کښ هم دي۔

۱۹:۔ دا څلورم دلیل سفلي دے۔ فَوَاكِهُ نه مراد نورے میوے دي سوا د کجورو او انګورو نه یا مراد دا دے چه د کجورو او انګورو نه مختلف او ډیر قسمونه جوړیږي۔

وَمِنْهَا کښ اشاره ده چه د خوراک نه علاوه نورے فائدے هم په دیکښ شته۔

۲۰:۔ دا پنځم دلیل سفلي دے۔ د دے ونے نه مراد خونه دے چه د هغې تیل د دهن په ځائے استعمالیږي (یعني غوړول پرے کیدلے شي) او د خوراک د پاره د سالن (ښخکرې) په ځائے هم استعمالیږي او طور سینا هر هغه غر ته ویلے کیږي چه په هغې کښ ډیرے ونے او بوټي او میوے دي او په هغې سره خائسته ښکاره کیږي۔

كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَأْكُلُوْنَ ﴿٢١﴾ وَعَلَيْهَا وَعَلَى

ډیرے دي او بعضے د هغے نه تاسو خورئ - او په هغه څاروو باندے او په

الْفُلْكِ تُحْمَلُوْنَ ﴿٢٢﴾ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا

کشتو باندے سورولے شئ تاسو - او یقینًا لیږلے دے موږ

نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَقَالَ يٰقَوْمِ

نوح علیه السلام قوم د هغه ته پس هغه اوئیل اے قومه زما

اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ

بندگي کوئ د الله تعالیٰ خاص نشته تاسو لره حقدار د بندگۍ سوا د هغه نه ،

اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿٢٣﴾ فَقَالَ الْمَلَؤُا الَّذِيْنَ

آیا پس ولے نه ویریږئ تاسو - پس اوئیل غټانو هغه چه

كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ

کفر یې کړے دے د قوم د هغه نه چه نه دے مگر بنده دے

۲۱:- دا شپږم دلیل دے - مَنَافِعُ د پیو ډیر زیات دي د دے وجے نه عرب دینه زکا) هم وائي شوملے ، لسی ، ماسته ، کُچ ، غوړی وغیره د دینه جوړیږي - او مَنَافِعُو د غرمنو او ویختو وړئ ته هم شامل دے.

۲۲:- دا اووم دلیل عقلي دے او د سورلۍ د پاره د انعام نه اوښان مراد دي ځکه چه غویانو باندے سورلۍ مناسب نه ده په حدیث شریف کښ د هغے منعے ته اشاره ده - او آیت کښ اشاره ده سورلۍ د اوچے او دریاب ته -

۲۳:- خلاصه :- د دے آیت نه دویم باب دے تر ۵۰ پورے په دیکښ شپږ نقلي دلیلونه دي د انبیاء علیهم السلام نه په رد د شرک فی البرکات باندے یعنی دغه انبیاء علیهم السلام او د هغوی ملگرو ته نجات او مخالفینو ته عذاب د الله تعالیٰ د طرف نه وو او دیته برکات وئیلے شي -

مِّثْلُكُمْ ۙ يُرِيْدُ اَنْ يَّتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ ؕ

ستاسو پشان غواړي چه غوره والے حاصل کړي په تاسو باندے،

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً ۚۖ

او که غوښتلے الله تعالیٰ خامخا نازل کړے به ئے وے ملائیکو لره

مَّا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِيْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ ﴿۲۴﴾

نه دی آوریدلی موږ دا خبرے په مشرانو مخکنو کښ۔

اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلٌۢ بِهٖ جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوْا

نه دے دا مګر سړے دے په ده باندے لیونتوب دے نو انتظار کوئ

بِهٖ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۲۵﴾ قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ

په باره د ده کښ تر یو وخت پورے۔ اُوئیل ده اے ربه زما امداد اوکړے زما

تفسیر:۔ او دے آیت نه اول دلیل نقلی دے۔ هر کله چه رسولان رالیږل نعمت دے د الله تعالیٰ د طرف نه نو د دے وجے نه دا ئے عطف کړو په مخکښ انعاماتو باندے۔

۲۴:۔ په دے آیت کښ د مخالفینو د طرف نه څلور اعتراضونه ذکر شوي دي په نوح علیه السلام باندے۔

يُرِيْدُ اَنْ يَّتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ، دا عادت دے د دنیا پرستو چه هغوی حق پرست په ځان باندے قیاس کوی او وائی چه دے اقتدار او مشري غواړي۔

بِهٰذَا، مسئله د توحید ته اشاره ده یا دعوای د نبوت ته او خپل جهل ئے په دلیل کښ پیش کړے دے دا ئے بل جهل دے۔

۲۵:۔ دا پنځم اعتراض دے او په یکښ د هغه ډیره بے عزتی ئے کړیده۔

حَتّٰى حِيْنٍ، مراد دا دے چه څه وخت پس به د ده لیونتوب ښکاره شی یا دا چه دے به مړشی نو موږ به تړینه خلاص شو۔

بِمَا كَذَّبُوْنِ ﴿۲۶﴾ فَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِ

پہ سبب چہ دوی ماتہ دروغژن وائی - نو وحی اوکړه مونږ دهٔ ته

اَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِاَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا

چہ جوړوه کشتۍ په مخامخ دَ سترګو زمونږ او په وحی زمونږ سره

فَاِذَا جَآءَ اَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّوْرُ ۙ

پس کله چه راشی حکم دَعذاب زمونږ او اوخوټیږی تنور

فَاسْلُكْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ

نو ورننه باسه په کشتۍ کښی دَ هر قسم حیوان نه جوړې

اثْنَيْنِ وَاَهْلَكَ اِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ

دوهٔ ځیزه او اهل خپل ماسوا دَ هغه چانه چه مخکښ شوې په هغه باندې

الْقَوْلُ مِنْهُمْ ۚ وَلَا تُخَاطِبْنِيْ

فیصله دَ دوی نه ، او مه کوه خبرې ماسره

فِى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۚ اِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ ﴿۲۷﴾

په باره دَ ظالمانو کښی یقیناً دوی غرق کولے کیږی

۲۶:- نصرت دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه برکت دے او انبیاء هم په برکاتو کښی الله تعالیٰ ته محتاج دی -

۲۷:- دَ دے تفسیر په سورۃ هود ۴۰ کښی تیر شوې دے -

فَاسْلُكْ ، مراد کَ دینه داخلول دی او سورۃ هود کښی ئے احمل ذکر کړے دے یعنی اول ئے داخل کړه . نو سواره ئے کړه - او هر کله چه په دے سورت کښی سورلی دَ کشتو مخکښ ذکر کړے ده نو دَ دے وجے نه دلته ئے احمل ذکر نه کړو -

بِاَعْيُنِنَا ، دا دَ صفاتو دَ الله تعالیٰ نه دے او دا په ظاهری معنیٰ سره مراد دے بغیر دَ تشبیه او تمثیل او تاویل نه دا دَ سلف صالحینو عقیده ده -

فَإِذَا اسْتَوَيْتَ أَنْتَ وَمَنْ مَّعَكَ عَلَى

نو هر کله چه برابر شے ته او څوک چه ستا سره دی په

الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي

کشتۍ باندے نو اوایه ستائنه د خدائے ده الله تعالیٰ لره هغه ذات

نَجّٰنَا مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢٨﴾ وَقُلْ

چه نجات ئے راکړے دے موږ له د قوم ظالمانو نه ۔ او وایه

رَّبِّ أَنْزِلْنِيْ مُنْزَلًا مُّبٰرَكًا وَّأَنْتَ

اے ربه زما راکوز کړے مالره ځائے د کوزیدلو برکت والا او ته

خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ ﴿٢٩﴾ إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

غوره ئے د کوزونکو نه ۔ یقیناً په دیکښ خامخا عبرتونه دی

وَّإِنْ كُنَّا لَمُبْتَلِيْنَ ﴿٣٠﴾ ثُمَّ أَنْشَأْنَا

او یقیناً مونږ امتحان کوونکی یو ۔ بیا پیدا کړه مونږ

ف ٢٨ :- په دے آیت کښ تصریح ده چه برکات ورکوونکے صرف الله تعالیٰ دے او په دیکښ ذکر د تعلیم دے په وخت د سورلۍ کښ ۔

ف ٢٩ :- په دیکښ تصریح ده چه برکات ورکوونکے الله تعالیٰ دے ۔

مُنْزَلًا ، دا مصدر دے یعنی کوزول یا ظرف دے یعنی ځائے د کوزیدلو او مُبٰرَكًا نه مراد دا دے چه په هغے کښ سلامتیا او نجات وی او د دین د اشاعت او د الله تعالیٰ د رضا د پاره وی ۔ او په دے آیت کښ اشاره ده چه هر کله څوک په یو ځائے کښ اقامت (دیره) کوی یا مسجد او بل مکان ته داخلیږی نو دا دُعاء دِ لولی ، دا رنګ ئے تفسیر قرطبی کښ هم لیکلے دی ۔

ف ٣٠ :- یعنی په دے واقعه کښ ډیر دلیلونه دی د پاره د توحید فی البرکات او نور عبرتونه دی ۔ او یو حکمت پکښ ابتلاء ده د مؤمنانو او عبرت د عذاب دے د پاره د کافرانو ۔

مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿۳۱﴾ فَاَرْسَلْنَا

روستو دَ دوی نه پیړئ بله - پس اولیږه موږ

فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

په هغوی کښې رسول دَ هغوی نه چه بندګی خاص کوئ الله تعالی لره.

مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۳۲﴾

نشته تاسو لره حقدار دَ بندګئ سِوا دَ هغهٔ نه، آیا پس نه یېږ کیږئ دَ شرک نه.

س۳۱۔ قَرْنًا اسم جنس دے عاد، ثمود، قوم لوط، اصحاب مدین ټولو ته شامل دے او هرکله چه په دے کښې عموم مقصد دے دَ دے وجے نه روستو آیت کښې رسول ئے مبهم ذکر کړلو دَ پاره دَ دے چه ټولو ته عام شی۔

س۳۲۔ دَ دے آیت نه دویم دلیل نقلی دے۔ او په دے کښې اختلاف دے بعضے مفسرینو وئیلی دی چه دا قصه دَ عادیانو ده۔ او دَ رسول نه مراد هود علیه السلام دے ځکه چه نورو سورتونو کښې چه دَ انبیاؤ قصص ئے ذکر کړے دی نو په نوح علیه السلام پسے دَ هود علیه السلام ذکر دے لیکن په دے باندے اعتراض دا دے چه په دے قصه کښې عذاب دَ صیحه (چغې) ذکر کړے دے او په عادیانو باندے عذاب دَ سیلئ راغلے دے دَ دے جواب دا دے کیدے شی چه سیلئ سره عذاب دَ چغې جمع کړے شوے وی لکه چه تفسیر قرطبی لیکلے دی۔ او بعضے مفسرینو وئیلی دی چه دا قصه دَ ثمودیانو ده او دَ رسول نه مراد صالح علیه السلام دے ځکه چه عذاب دَ صیحه اول په هغوی باندے راغلے وو لکه چه سورة هود کښې ذکر کړے شوید ی او بعضے مفسرینو وئیلی دی چه مراد دَ دیته قوم دَ لوط علیه السلام دے ځکه چه دَ هغوی عذاب په صیحه سره په سورة حجر کښې ذکر دے چه دا قوم دَ شعیب علیه السلام دے لیکن دا قول ضعیف دے ځکه چه روستو دَ دے نه دَ موسی علیه السلام ذکر دے او دَ شعیب او موسی علیه السلام په مینځ کښې نور

وَقَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا

او وئیل غټانو د قوم د هغه نه هغه کسانو چه کفر ئے کړیوو

وَكَذَّبُوا بِلِقَاءِ الْآخِرَةِ وَأَتْرَفْنَاهُمْ

او دروغژن ئے ګڼلو ملاقات د آخرت او بډمسته کړي وو دوي لره

فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا مَا هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ

په ژوند دنیوي کښ چه نه دے دے مګر بنده دے

مِّثْلُكُمْ يَأْكُلُ مِمَّا تَأْكُلُونَ مِنْهُ

پشان ستاسو خوراک کوي د هغے نه چه تاسو خوراک کوئ د هغے نه

وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُونَ ﴿۳۳﴾ وَلَئِنْ

او څښاک کوي د هغے نه چه تاسو څښل کوئ ۔ او که

أَطَعْتُم بَشَرًا مِّثْلَكُمْ إِنَّكُمْ إِذًا

تابعداري اوکړه تاسو د یو بنده چه ستاسو پشان دے یقینًا تاسو به ئے دغه وخت

لَّخَاسِرُونَ ﴿۳۴﴾ أَيَعِدُكُمْ أَنَّكُمْ إِذَا مِتُّمْ

تاوان والا ۔ آیا وعده کوي دے ستاسو سره چه یقینًا تاسو کله چه مړه شئ

رسولان نوؤ رالیږلے شوے لکه سورة قصص نه معلومیږي او دلته په مینځ کښ ذکر دے چه ارسلنا رسلنا تترًا ، خوره دا ده دلته هغه ټول قومونه مراد دي چه په هغوي باندے عذاب د صیحه راغلے دے.

۳۳ :۔ پدے آیت کښ د هغه قوم ئے دوه صفتونه ذکر کړل (کفر او تکذیب) کفر نه مراد انکار د توحید او د رسالت نه دے او بیا ئے د دے صفتونو سبب ذکر کړو چه هغه وسعت (فراخي) د نعمتونو د دنیا دے او بیا د دوي اعتراض ئے په رسول باندے ذکر کړو چه دے بشر دے او دا رنګ په ده کښ لوازم د بشریت دي (یعني خوراک څښاک کوي) یعني زمونږ او د ده هیڅ فرق نشته یعني د دنیا دارئ

وَكُنْتُمْ تُرَابًا وَّعِظَامًا اَنَّكُمْ مُّخْرَجُوْنَ ﴿۳۵﴾

او تاسو شئ خاورے او هډوکی یقینًا تاسو به راویستلے کیږئ۔

هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوْعَدُوْنَ ﴿۳۶﴾

لرے دہ لرے دہ هغه چه تاسو سره ئے وعدہ کیدے شی۔

اِنْ هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوْتُ

نه دے دا مګر ژوند زمونږ دنیوی دے مره کیږو بعضے مونږ

وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ ﴿۳۷﴾

او پیدا کیږی بعضے او مونږ نه یو دوباره ژوندی کړے شوے۔

اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلُ ِۨافْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ

نه دے دا مګر سړے دے چه جوړ کړیدی په الله تعالیٰ باندے

دَ دے وجے نه ئے تکبر اوکړو په رسولانو باندے۔

۳۳:۔ په دے آیت کښ دَ هغوی لوئے جرم ئے ذکر کړو یعنی خلقو لره دَ نبی دَ اطاعت نه منع کول او هغه سبب دَ خسران او تباهی ګرځول۔

۳۵، ۳۶:۔ په دیکښ په نبی باندے دَ هغوی دَ طرف نه بل اعتراض ذکر کوی په باره دَ (بعث بعد الموت) کښ او دویم آیت کښ دَ دوی انکار ذکر کوی چه دا خبره دَ عقل نه لرے خبره دہ یعنی دَ عقل نه خلاف دہ۔

هَيْهَاتَ، په معنیٰ دَ مصدر دے یعنی بُعْدًا یا په معنیٰ دَ فعل دے چه بَعُدَ دے او تکرار ئے دَ تاکید دَ پاره کړے دے۔

۳۷:۔ دا دَ مخکښ سره تاکید دے په باره دَ انکار دَ بعث بعد الموت۔

نَمُوْتُ وَنَحْيَا، دَ دے نه مراد دا دے چه بعضے مره کیږو او بعضے ژوندی پاتے کیږو (ترڅه وخت پورے)۔

كَذِبًا وَّمَا نَحْنُ لَهٗ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿۳۸﴾

دروغ | او نه يو موږ دۀ لره | ايمان لرونكي -

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ بِمَا كَذَّبُوْنِ ﴿۳۹﴾ قَالَ

دۀ اووئيل اے ربه زما مدد اوكړے زما سره په وجه چه دوى ماته دروغژن وائى. اووئيل الله تعالىٰ

عَمَّا قَلِيْلٍ لَّيُصْبِحُنَّ نٰدِمِيْنَ ﴿۴۰﴾

روستو د لږ وخت نه خامخا شى به دوى | پښيمانه -

فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ بِالْحَقِّ فَجَعَلْنٰهُمْ

پس اونيوو دوى لره چغے هيبت ناكے په عذاب سره | نو اوګرځول موږ دوى لره

غُثَآءً ۚ فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۱﴾

تورشوى بوس | نو هلاكت دے | قوم | ظالمانو لره -

۳۸:- دا هم انكار دے د رسالت نه او نسبت دے رسول ته د افْتَرَاء عَلَى اللهِ تعالىٰ - او دا دليل دے چه مشركانو الله تعالىٰ منلو او په الله تعالىٰ باندے افْتَرَاء كول هم د هغوى په نيز قبيح كار وو - ليكن حق نبي ته نسبت د افتراء كولو كفر دے -

۳۹، ۴۰، ۴۱:- دا دُعَا د رسول ده او ښكاره دليل دے چه انبياء هم په نصرت كښ الله تعالىٰ ته محتاج دى - او لَيُصْبِحُنَّ ئے ځكه اوفرمائيل چه عام عذابونه په وخت د صبا كښ راغلے دى. او نٰدِمِيْنَ نه مراد پښيمانتيا ده په كفر كولو باندے او ندامت اګرچه توبه ده ليكن دا په وخت د عذاب كښ نه قبليږى -

صَيْحَةُ، كه مراد د دے قوم نه عاديان وى نو معلومه شوه چه په هغوى باندے د عذاب د سيلئ سره عذاب د صيحه هم راغلے وو لكه چه تفسير قرطبى او ابن كثير كښ ليكلے دى -

بِالْحَقِّ نه مراد عذاب دے يا معنىٰ د دے ده استحقاق د عذاب -

غُثَآءً، هغه خس وخشاك ته وئيلے كيږى چه سيلاب د پاسه اوچت روان وى -

ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قُرُوْنًا

بیا پیدا کړل موږ روستو د دوی نه پیړۍ

اٰخَرِيْنَ ﴿۴۲﴾ مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ اَجَلَهَا

نورې. نه وړاندې کیږي هیڅ امت د خپلې نیټې نه

وَمَا يَسْتَاْخِرُوْنَ ﴿۴۳﴾ ثُمَّ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا

او نه روستو کیږي. بیا اولیږل موږ رسولان خپل

تَتْرَا ؕ كُلَّمَا جَآءَ اُمَّةً رَّسُوْلُهَا كَذَّبُوْهُ

پرله پسې. هرکله چه راغی یو امت ته رسول د هغوی دروغژن اوګڼل هغه ئې

فَاَتْبَعْنَا بَعْضَهُمْ بَعْضًا وَّجَعَلْنٰهُمْ

پس هلاک کړل موږ بعضې روستو د بعضو نه او وګرځول موږ دوی لره

اَحَادِيْثَ ۚ فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۴۴﴾

قصې د عبرت پس هلاکت دے هغه قوم لره چه ایمان نه لري.

ثُمَّ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى وَاَخَاهُ هٰرُوْنَ ۙ

بیا اولیږه موږ موسی علیه السلام او ورور د هغه هارون علیه السلام

س۴۲، س۴۳، س۴۴. دا دلیل نقلی اجمالی دے په دیکښې مراد هغه قومونه او رسولان د هغوی دی چه د قوم عاد نه تر فرعون پورې په مینځ کښې پرله پسې راغلی وو.

تَتْرَا، متتابعة (پرله پسې). اَحَادِيْثَ، مراد ترینه واقعات د عبرت دی او دا لفظ اکثر په شر او عذاب کښې استعمالیږي.

لِقَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ، دا مشترکه وجه ده د ټولو قومونو تکذیب کوونکو او عادیانو کښې ظلم ډیر وو د دے وجې نه په س۴۱ کښې ظالمین لفظ ذکر کړو.

بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٤٥﴾ اِلٰى فِرْعَوْنَ

په خپلو آيا تونو سره او په دليل ښکاره سره - فرعون ته

وَمَلَا۠ئِهٖ فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا

او غټانو د قوم د هغه ته نو لوئي او کړه دوئ او دوئ وو قوم

عَالِيْنَ ﴿٤٦﴾ فَقَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ

زور آور - پس او ئيل دوی آيا ايمان راوړو موږ په دوه بندګانو

مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عٰبِدُوْنَ ﴿٤٧﴾

چه پشان زموږ دی او قوم د دے دواړو موږ لره عبادت کوونکی دی -

فَكَذَّبُوْهُمَا فَكَانُوْا مِنَ الْمُهْلَكِيْنَ ﴿٤٨﴾

پس دوی دروغژن کړل هغوی لره پس شول د هلاک کړے شوو نه -

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ لَعَلَّهُمْ

او يقينًا ورکړے وو موږ موسٰی عليه السلام ته کتاب د دے د پاره چه دوی

يَهْتَدُوْنَ ﴿٤٩﴾ وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ

هدايت او موی - او کرځولے دے موږ ځوے د مريم

۴۵، ۴۶، ۴۷، ۴۸ - دا بيل دليل نقلی دے فَقَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ دا بيان دے د اسْتَكْبَرُوْا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عٰبِدُوْنَ . دا بيان دے د عَالِيْنَ او عٰبِدُوْنَ نه مراد خدمتګاران دی - فرعون د بنی اسرائيلو نه خدمتګاران جوړ کړے وو - بلکه سورة شعراء کښ اَنْ عَبَّدْتَّ بَنِيْٓ اِسْرَآئِيْلَ -

فَاسْتَكْبَرُوْا کښ فَا د پاره د عطف دے فَقَالُوْٓا کښ فَا د پاره د تفسير ده فَكَذَّبُوْهُمَا او فَكَانُوْا دواړو کښ فَا سببيه ده يعنی استکبار سبب شو د پاره د تکذيب او تکذيب سبب شو د پاره د اهلاک -

۴۹ - تورات صرف په موسٰی عليه السلام نازل کړے شوے وو ځکه په دے آيت کښ خاص د موسٰی عليه السلام ذکر ئے اوکړو - او تورات

وَاُمَّهٗۤ اٰيَةً وَّاٰوَيْنٰهُمَاۤ اِلٰى رَبْوَةٍ

او مور د هغهٔ لره نخښه او ځائے ورکړے وو موږ دواړو له يو ځربے زمکے ته

ذَاتِ قَرَارٍ وَّمَعِيْنٍ ﴿۵۰﴾ يٰۤاَيُّهَا الرُّسُلُ

چه د آرام ځائے وو او او بو چينه داره ـ روانيے وو موږن) اے رسولانو

كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ؕ

خورئ د حلال څيزونو نه او عملونه کوئ نيک ،

اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿۵۱﴾ وَاِنَّ هٰذِهٖۤ

يقيناً زهٔ په هغه عملونو چه تاسو کوئ پوهه يم ـ او يقيناً دا

ورکول روستو د اهلاک د فرعون نه وو د پاره د هدايت د بنى اسرائيلو. سته :- دا هم دليل نقلى دے د عيسىٰ عليه السلام او د مور د هغه نه چه دوى په بركاتو كښ الله تعالىٰ ته محتاج دى.

اٰيَةً ئے مفرد ځکه ذکر کړو چه مراد تريه پيدا کيدل د عيسىٰ عليه السلام د مور نه بغير د ناريته نه وو نو دا يو آيت دے او يا اٰيَةً په معنىٰ د جنس آيت دے نو د مريم عليه السلام حالات او د عيسىٰ عليه السلام حالاتو ته اشاره ده.

رَبْوَةٍ هره ځربه زمکه دى چه سطحه ئے اوچته وى او قَرَارٍ نه مراد دا دے چه د اوسيدلو پوره اسباب پکښ موجود وو - او مَعِيْنٍ نه مراد دے چه د اوبو چينے پکښ موجود وے او په يکښ اختلاف دے چه دا رمله وه ، يا بيت المقدس يا دمشق وو - او د دے سبب دا وو چه يهودى ظالم بادشاه وو هغه اراده کړے وه چه عيسىٰ عليه السلام لره قتل كړى نو مريم او عيسىٰ عليهما السلام دواړو هجرت اوکړو د پاره د حفاظت د خپل ځان.

سك :- خلاصه :- د دے نه دريم باب دے تر سکے پورے په دے يکښ دليل نقلى اجمالى د ټولو انبياؤ نه ذکر کوى بيا زجر دے په تفرق د خلقو سره بيا زجرونه دى په ذکر کولو د اوصاف قبيحه ځوارلس د مشرکينو او په مينځ کښ اووه صفات د مؤمنانو ذکر کوى او آخر د باب کښ

أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَّاحِدَةً وَّأَنَا رَبُّكُمْ

دین ستاسو دے دین یو او زۀ ستاسو رب یم

فَاتَّقُوْنِ ﴿۵۲﴾ فَتَقَطَّعُوْٓا أَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ

نو ویریږئ زما نه۔ نو ټکړے کړو دوی دین خپل کور ئے کښ

تخویف دنیوی دے په دوه آیاتونو کښ۔

تفسیر:- پدے آیت ۵۱ کښ خوړه توجیه دا ده چه دا حکم ټولو رسولانو ته ورکړے شوے وو۔ او په خپله خپله زمانه کښ او دلته قلنا پټ مراد دے۔ یعني هر کله چه تیر شوے آیاتونو کښ د انبیاؤ علیهم السلام مدد د الله تعالیٰ د طرف نه ذکر کړے شو نو پدے آیت کښ اشاره ده سبب د دغه مدد ته۔ او اشاره ده چه ټول انبیاء د الله تعالیٰ محکوم بندګان دی نو هغوی د الله تعالیٰ په برکات ورکولو کښ شریک نشی کیدلے۔ او طَيِّبَاتِ هغه د خوراک شیزونو ته وئیلے کیږی چه د شرک او حرمت د شبها تو نه پاک وی۔ او پاک حلال خوراک سبب دے د قبولیت د عمل صالح نو د دے وجے نه ئے مخکښ ذکر کړلو۔ او عمل صالح نه مراد عمل دے موافق د وحی الٰهی سره۔

۵۲:- دا دلیل دے چه حلال خوراک کول او د وحی سره موافق عمل کول د ټولو پیغمبرانو اتفاقی دین دے۔

فَاتَّقُوْنِ کښ مراد دا دے چه د حرام خوراک نه او مخالف د شرع د عمل نه ځان بچ ساتئ هم دا سے سورة انبیاء ۹۲ کښ تیر شویدی په هغه سورت کښ د انبیاؤ علیهم السلام دعاګانے او عبادتونه ئے ذکر کړے وو، نو ځکه ئے دے امت ته او فرمائیل فَاعْبُدُوْنِ او پدے آیاتونو کښ تقویٰ ئے ذکر کړه چه د حرامونه ځان او ساتئ۔ چه مخکښ آیت سره مناسبت دے۔

زُبُرًا ۭ كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ

ټکړے ټکړے، هره ډله په هغه دین چه دوی سره دے

فَرِحُوْنَ ﴿۵۳﴾ فَذَرْهُمْ فِيْ غَمْرَتِهِمْ

خوشحالیږی۔ نو پریږده دوی لره په ګمراهئ د دوی کښ

حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۵۴﴾ اَيَحْسَبُوْنَ اَنَّمَا

تر یو وخت پورے۔ آیا ګمان کوی دوی چه یقینًا

ف۵۳ :- په دے آیت کښ زور نه ده په تفرق او تحزب سره په سبب مخالفت کولو سره د دین د پیغمبرانو نه۔ هرکله چه په دعا او عبادتونو کښ تفرق څه موده روستو وؤ او ډیر زیات تفرق نه وؤ نو د دے وجے نه سورة انبیاء کښ وَتَقَطَّعُوْا په واو سره ذکر کړے وؤ او زُبُرًا ورسره نه دے ذکر کړے او په طعامونو او اعمالو کښ مخالفت زر شروع شوے وؤ۔ او په هغے سره ډیرے ډلے پیدا شوے وے نو په دے وجه په دے آیت کښ فَتَقَطَّعُوْا په فا سره او زُبُرًا ئے ذکر کړلو۔

كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ ، په دے کښ اشاره ده چه هر جماعت خپل عمل او طریقے ته دین او ثواب وائی اګرچه مخالف وی د دین د پیغمبرانو نه لکه ډلے د بدعتیانو چه دی۔ او سورة انبیاء کښ صرف مخالفت ذکر کړے وؤ اګرچه خپلو طریقو ته ثواب نه وائی نو هلته ئے د تخویف د پاره وَاِلَيْنَا يَرْجِعُوْنَ ذکر کړے وؤ۔

ف۵۴ :- د دے آیت نه حالات خوارلس د منکرینو ذکر کوی۔ په دے آیت کښ یو حال ذکر دے یعنی غفلت او ګمراهی د هغه کسانو چه په دین کښ ئے ټکړے پیدا کړیدی۔ او په لفظ د فَذَرْهُمْ کښ تسلی ده نبی ته چه د دے منکرینو په مهلت او روستو کیدلو د عذاب باندے خفګان مه کوه۔

نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرٰتِ ؕ بَلْ لَّا يَشْعُرُوْنَ ﴿۵۶﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ﴿۵۷﴾

(نَمِدُّهُمْ بِهٖ مِنْ مَّالٍ وَّبَنِيْنَ ﴿۵۵﴾)

هغه چه مونږ زياتوؤ دوی لره مالونه او ځامن

دا زر بدله ورکوو دوی لره د نيک عملونو د وجې نه بلکه دوی

نه پوهيږي - يقيناً هغه کسان چه دوی

د وجې د ويرې د رب خپل نه ويرېدونکي دي د هغه سره -

۵۵، ۵۶: په دے آياتونو کښې دوه حالات د منکرينو ذکر کړے دی - ګمان د خير او عدم شعور مطلب دا دے چه د دوی مالونه او ځامن وخت په وخت زياتيږي نو د دوی ګمان دا دے چه دا د دوی په دنيا کښې د نيکو اعمالو بدله او اثر دے يا دا د دوی د ښه حالاتو د پاره اسباب دی او حال دا چه دا استدراج دے لکه چه سورة آل عمران ۱۷۸ کښې تير شوی دی-

نُسَارِعُ لَهُمْ، مسارعت نه مراد زر ورکول يعنی د دنيا جزا او بدله ده فِي الْخَيْرٰتِ، فی اجليه دے يعنی د وجې د نيک عملونو د دوی نه -

۵۷: دا په طريقه د مقابلې سره د مؤمنانو د صفاتو ذکر دے چه هغه اووه دی او اووه په اول د سورت کښې ذکر شوی دی نو ټول څلور شول - او دا صفتونه سبب د خيرات دے او دا بشارت دے هغه کسانو ته چه دين د انبياؤ نه يې مخالفت نه دے کړے - خَشْيَتِ، د زړه حال دے او مُشْفِقُوْنَ د ظاهر حالت دے، چه د ويرے اثر په ظاهری اندامونو باندے ښکاره شی - او زړه هم نرم شی، او دا دوه صفتونه دی - او دا دواړه صفتونه کمال عقيدے د توحيد ته اشاره ده -

وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ

او هغه کسان چه دوی په آیاتونو د رب خپل باندے

يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۸﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِرَبِّهِمْ

ایمان لری۔ او هغه کسان چه دوی د خپل رب سره

لَا يُشْرِكُوْنَ ﴿۵۹﴾ وَالَّذِيْنَ يُؤْتُوْنَ

شرک نه کوی۔ او هغه کسان چه ورکوی

مَآ اٰتَوْا وَّقُلُوْبُهُمْ وَجِلَةٌ اَنَّهُمْ

هغه څه چه ورکوی او زړونه د دوی ویره کوونکی دی چه یقیناً

اِلٰى رَبِّهِمْ رٰجِعُوْنَ ﴿۶۰﴾ اُولٰٓئِكَ يُسٰرِعُوْنَ

دوی خپل رب طرف ته په ورګرځی۔ دغه کسان ورزغلی

فِى الْخَيْرٰتِ وَهُمْ لَهَا سٰبِقُوْنَ ﴿۶۱﴾

نیکو کارونو ته او دوی هغو ته ډیر بل نه وړاندے کیږی۔

۵۸، ۵۹:۔ په دیکښ دوه صفتونه ذکر شوی دی۔ هر کله چه ایمان په آیتونو باندے سبب دے د شرک نه د بچ کیدلو د پاره نو د دے وجے نه ایمان بالآیات ئے په شرک نه کولو باندے مقدم ذکر کړلو۔

۶۰:۔ په حدیث د ترمذی کښ ذکر شویدی چه مراد دے نه هغه کسان دی چه روژے نیسی او مونځونه کوی او تصدق کوی او بیا هم ویریږی چه قبول به نه کړے شی، او دا کمال ایمان دے په نسبت د هغه چا چه ګناه کوی او د الله تعالیٰ نه ویره کوی۔ او په دے آیت کښ د مؤمنانو بل صفت ذکر کړے شویدے۔ روستو د عقیدے نه ذکر د اعمالو دے سره د ویرے کولو د عذاب نه او ورسره ذکر د عقیدے د قیامت دے۔

۶۱:۔ په دے آیت کښ دوه صفتونه ذکر کړے شوے دی۔ يُسٰرِعُوْنَ، سارعه وئیلے شی اهم فَالْاَهَمُّ، مخکښ کول او دا مقابل د عجلت دے

وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا وَلَدَيْنَا

او تکلیف نه ورکوو هیڅ نفس ته مګر په قدر د وس د هغه او زمونږ سره

كِتَٰبٌ يَنطِقُ بِٱلْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٦٢﴾

کتاب دے چه ګویا په ښي په حق ویئیلو سره او په دوي به ظلم نشي کیدلے.

بَلْ قُلُوبُهُمْ فِى غَمْرَةٍ مِّنْ هَٰذَا

بلکه زړونه د دوي په غفلت کښ دي د دے (کتاب نه)

وَلَهُمْ أَعْمَٰلٌ مِّن دُونِ ذَٰلِكَ هُمْ

او دوي لره نور عملونه دي سوا د دغه عملونو نه چه دوي

لَهَا عَٰمِلُونَ ﴿٦٣﴾ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَخَذْنَا

هغې لره کوونکي دي (همیشه) ترهغې پورے چه هرکله اونیسو موږ

او باب مفاعله د مبالغې د پاره ده - لَهَا لام په معنیٰ الیٰ دے او معنیٰ نښکاره ده یا لام اجلیه دے معنیٰ دا ده چه دوي د وجے د خیرات نه سبقت کوونکے دي په درجاتو کښ یا جنت ته -

سلا ؛- اوله جمله جواب د سوال دے چه دا تیر صفتونه حاصلول ډیر ګران دي نو جواب اوکړے شو چه دا د انسانانو د طاقت نه بهر نه دي او دویمه دریمه جمله کښ تسلي ده چه د دوي د عملونو جزاء به نه ضائع کیږي ځکه چه په عملنامه د ملائیکو کښ موجود دي -

سلا ؛- د دے ځائے نه بیا صفتونه د منکرینو شروع شول او متصل دے په معنیٰ کښ د بَلْ لَا يَشْعُرُونَ سره ، او غَمْرَةٍ په معنیٰ د غفلت دے - او هَٰذَا اشاره ده صفاتو د مؤمنانو ته په تاویل د مذکور سره یا اشاره ده کتاب (عملنامے) ته -

وَلَهُمْ أَعْمَٰلٌ ، مراد دا دے چه د شرک او کفر نه علاوه عملونو نه د بدعاتو او رواجونو او فسق و فجور دي - یا مراد دا چه اعمالو د مؤمنانو نه سوا (خلاف) د دوي عملونه دي -

مُتْرَفِيْهِمْ بِالْعَذَابِ إِذَا هُمْ يَجْأَرُوْنَ ﴿٦٤﴾

بدمستئه دَ دوی په عذاب سره دغه وخت به دوی کړ تجیږی رفریاد به کوي

لَا تَجْأَرُوا الْيَوْمَ إِنَّكُمْ مِّنَّا

مه کوئ نجیږئ نن یقیناً تاسو سره زمونږ دَ طرفه

لَا تُنْصَرُوْنَ ﴿٦٥﴾ قَدْ كَانَتْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى

هیڅ مدد نشی کیدلے۔ یقیناً وُو آیاتونه زما لوستلے کیدل په

عَلَيْكُمْ فَكُنْتُمْ عَلٰى أَعْقَابِكُمْ

په تاسو باندے نو وئ تاسو چه په پوندو خپلو باندے به

تَنْكِصُوْنَ ﴿٦٦﴾ مُسْتَكْبِرِيْنَ بِهٖ سٰمِرًا

اوښتلئ۔ لوئی کوونکی وئ دَ دے نه قصه گوئی تاسو به پریښودو به

تَهْجُرُوْنَ ﴿٦٧﴾ أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا

تاسو دا لره۔ آیا پس سوچ نه کوي دوي

۶۴:۔ دا تخویف دنیوی دے حتّیٰ متعلق دے په عاملون پورے او په مُتْرَفِيْهِمْ کښ اشاره ده سبب دَ ناکاره عملونو ته چه هغه عیش پرستی اوسرمایه داری ده۔

۶۵:۔ دا وئیلے کیږی په زبان حال سره یا ملائک ورته په وخت دَ نزع کښ وائی یا دا په معنیٰ دَ جملے خبریئے سره دے۔ یعنی دا چغے تاسو ته هیڅ فائده نه درکوی۔ مثلاً زمونږ دَ طرف نه تاسو سره امداد نشی کیدے یا زمونږ دَ عذاب نه تاسو بچ کیدے نشئ۔

۶۶:۔ دا ذکر دَ سبب دَ عذاب دے او دا نور احوال دَ منکرینو په تفصیل سره ذکر کوی۔

۶۷:۔ په یکښ ذکر دَ درے حالاتو دَ منکرینو دے۔ مُسْتَكْبِرِيْنَ بِهٖ یعنی لوئی کوئ په نورو خلقو باندے په سبب دَ حرم او په سبب دَ نزول دَ قرآن دَ دوی په قوم او په ملک کښ۔ یا مراد دا دے چه لوئی

الْقَوْلَ اَمْ جَآءَهُمْ مَّا لَمْ يَأْتِ اٰبَآءَهُمُ

| پدے قرآن کښ بلکه راغلے دے دوی ته هغه څیز چه نه وو راغلے مشرانو د دوی |
|---|

الْاَوَّلِيْنَ ﴿۶۸﴾ اَمْ لَمْ يَعْرِفُوْا رَسُوْلَهُمْ

| مخکنو ته ۔ | آیا دوی ته پیژنی | رسول خپل |
|---|---|---|

کوئ د قرآن نه ۔ په اوله معنیٰ بآء سببیه ده او په دویمه معنیٰ با په معنیٰ عن سره ده او په اوله معنیٰ ۂ ضمیر راجع دے یا نزول قرآن ته او په دویم معنیٰ ضمیر راجع دے د قرآن او رسول ته ۔

سَامِرًا ، په معنیٰ د جمعے سره دے یعنی (قرآن نه آوری) او ماسخوتن قصے کوئ ۔ او دا عادات د مشرکانو وو د دے وجے نه حدیث د مسلم کښ منع شوے دے د ماسخوتن نه روستو د خبرو کولو نه رسوا د دین د خبرو نه یا د خپل اهل سره خبرے کول) او قرطبی روایت نقل کړیدے چه عمر رضی الله عنه به د ماسخوتن نه روستو په خبرو کولو باندے خلق وهل ۔ یا سَامِرًا په معنیٰ د مفرد دے او تقدیر د عبارت دا دے تظنون به سامرًا یعنی گمان کوئ تاسو پدے نبی او قرآن باندے د قصّه کو ۔

تَهْجُرُوْنَ ، د هجران نه دے یعنی پریږدئ تاسو قرآن او رسول لره ۔ یا د هُجر نه دے یعنی بے فائدے خبرے کوئ چه هغے نه بکواس و ښیلے کیږی او دا جمله حالیه ده ۔

۶۸ :۔ دا زجر دے او ذکر د دوؤ صفاتو د منکرینو دے او د قَوْلَ نه مراد قرآن کریم دے او هم دا سے په سورة نساء ۸۲ او سورة محمد ۲۴ کښ دی ۔ او پدیکښ زور ته ده هغه خلقو ته چه د قرآن تلاوت او ختمونه کوی لیکن ځان په هغے باندے نه پوهه کوی ۔

اَمْ جَآءَهُمْ دا زجر دے یعنی نوے مسئله دوی ته راغلے ده چه هغه توحید دے نو دوی د هغے نه انکار کوی لکه سورة ص ۵ کښ ۔

فَهُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿۶۹﴾ اَمْ يَقُوْلُوْنَ بِهٖ

تو دوی هغهٔ لره ناآشنا گڼرونکی دی۔ آیا دوی وائی چه دهٔ پانده

جِنَّةٌ ؕ بَلْ جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ وَاَكْثَرُهُمْ

لیونتوب دے، بلکه راوړے ئې دے دوی ته حق او اکثر دَ دوی ته

لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ ﴿۷۰﴾ وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ

حق لره بد گڼرونکی دی۔ او که برابر وے حق

اَهْوَآءَهُمْ لَفَسَدَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ

دَ خواهشاتو دَ دوی سره خامخا خراب شوی به وے آسمانونه او زمکه

وَمَنْ فِيْهِنَّ ؕ بَلْ اَتَيْنٰهُمْ بِذِكْرِهِمْ

او هغه څوک چه په یکښ دی، بلکه راوړے دے مونږ دوی ته یادښت (نصیحت) دَ دوی

فَهُمْ عَنْ ذِكْرِهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۷۱﴾

پس دوی دَ یادښت خپل نه مخ گرځوی۔

سلا ۔ دا زجر دے او ذکر دَ یو صفت دَ منکرینو دے یعنی دوی ضد او عناد کوی ځکه چه دَ دے رسول صداقت او امانتداری دَ مخکښ نه پیژنی لیکن دَ ضد دَ وجے نه ئې نه منی۔ یعنی اَمْ کښ استفهام انکاری دے۔

سئے ۔ دا هم زجر دے او دوهٔ صفتونه دَ منکرینو ئې ذکر کړی دی، عله نبی ته نسبت دَ جنون کول۔ عظ او حق بد گڼرل دَ وجے دَ حسد او دَ تقلید نه، دا سے په تفسیر قرطبی کښ ذکر دی۔

سلے ۔ دا هم زجر دے په طریقه دَ دلیل سره مطلب ئې دا دے که حق موافق شی دَ دوی دَ خواهشاتو سره یعنی دوی چه معبودان من دون الله جوړ کړی دی دا حق شی او دا رنګ دوی چه کوم بدعات خرافات جوړ کړی دی دا دین شی نو دا به سبب شی دَ عالم دَ خرابیدلو او دَ تباه کیدلو دَ پاره ځکه چه شرک او بدعت سبب دَ فساد دَ عالم دے۔

أَمْ تَسْأَلُهُمْ خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ

آیا ته غواړې د دوی نه آمدن نو آمدنی د رب ستا

خَيْرٌ ۖ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴿٧٢﴾ وَإِنَّكَ

غوره ده، او هغه غوره رزق ورکوونکے دے۔ او یقینًا ته

لَتَدْعُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ﴿٧٣﴾

خامخا دعوت ورکوے دوی لره نیغې لارے ته۔

وَإِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ

او یقینًا هغه کسان چه ایمان نه لری په آخرت باندے

لکه په سورة انبیاء ۲۴ کښ۔ او په دے آیت کښ په وصفت د دوی ذکر شوے دے یعنی اعراض کول د ذکر د توحید نه۔

۷۲ :۔ دا جواب د وهم دے یعنی که اوئیلے شی کیدے شی چه مانع د ایمان د دے منکرینو د پیغمبر د طرف نه په موجود وی؟ لکه مزدوری غوښتل نو جواب ئے ورکړو چه نبی د دوی نه هیڅ اجر نه دے طلب کړے۔ فرق د خرج او د خراج دا دے چه خرج هغه اجرت ته وائی چه مقرر کړے شوی وی او خراج هغه اجر دے چه په عطا او بخشش سره حاصلیږی د دے وجه نه د الله تعالیٰ په جانب کښ خراج ذکر کړے شو۔

۷۳ :۔ دا جواب دے د بل وهم، که او ئیلے شی چه د دے نبی مقصد د دعوت په غلط وی څکه ئے دوی نه منی؟ جواب او شو چه د هغه مقصد صحیح دے او په دے کښ ذکر د صدق رسول دے۔

عَنِ الصِّرَاطِ لَنٰكِبُوْنَ ﴿۷۴﴾ وَلَوْ رَحِمْنٰهُمْ

دَ لارے نیغے نه خامخا اوړیدونکي دي - او که چیرته رحم او کړو مونږ پدوی باندې

وَكَشَفْنَا مَا بِهِمْ مِّنْ ضُرٍّ لَّلَجُّوْا فِيْ

او لرې کړو هغه چه په دوي باندې شته ضرر دے خامخا ورننوځي به دوی په

طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۷۵﴾ وَلَقَدْ اَخَذْنٰهُمْ

سرکشۍ خپله کښې پریشان به وي - او یقینًا نیولي وو مونږ دوئ

بِالْعَذَابِ فَمَا اسْتَكَانُوْا لِرَبِّهِمْ

په عذاب سره پس کابعداري ئې اونکړه د رب خپل

وَمَا يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿۷۶﴾ حَتّٰىٓ اِذَا فَتَحْنَا

او نه ئې ورته عاجزي اوکړه - ترهغې پورې چه هرکله پرانځو مونږ

عَلَيْهِمْ بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيْدٍ اِذَا

په دوی باندې دروازه سخت عذاب والا دغه وخت

۷۴ :- په دے آیت کښې هم زجر دے او آخري صفت قبیحه دَ دوی ذکر کړے شو نو معلومه شوه چه دَ پیغمبر دَ طرف نه هیڅ مانع او نقصان نشته بلکه نقصان دَ دوی دَ طرف نه دے۔ په آیت کښې اشاره ده چه کفر بالاخرة سبب دے دَ اعراض دَ صراط مستقیم نه۔

۷۵ ، ۷۶ :- روستو دَ زجرونو نه تخویف دے په عذاب دنیوی سره چه هغه قحط او لوږه وه چه په مکے والا باندے دَ عذاب په شکل مسلّط شویوه لیکن دوی توبه دَ شرک نه اونه کړله او هرکله چه عذاب دَ دوی نه لرے کړے شو نو بیا ئې سرکشي شروع کړله۔

لَلَجُّوْا دَ لجاج نه اخستلے شوے په ضد او عناد سره په مخالفت کښې ورننوتل

فائده :- اسْتَكَانَتْ خاص دَ عذاب په وخت کښې وي یعني توبه کول نو هغه په صیغه دَ ماضي سره ذکر کړے شو او تضرع په هر وخت کښې پکار وي یعني روستو دَ عذاب لرے کیدلو نه توحید منل نو هغه په

هُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ ﴿۷۷﴾ وَهُوَ الَّذِيْ

دوی په په هغې کښې ناامیده وی - او الله تعالیٰ هغه ذات دے

اَنْشَاَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ؕ

چه پیدا کړی دی ستاسو دپاره غوږونه او سترګے او زړونه ،

قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿۷۸﴾ وَهُوَ الَّذِيْ

لږه غونډے شکر په کوئ تاسو - او الله تعالیٰ هغه ذات دے

ذَرَاَكُمْ فِى الْاَرْضِ وَاِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۷۹﴾

چه خواره کړی ئے تاسو په زمکه کښې او خاص هغه ته په جمع کړے شئ تاسو -

صیغه د مستقبل سره ذکر کړے شو -

۷۷ - دا هم تخویف دنیوی یا اخروی دے ځکه چه د عذاب نه مراد دنیوی عذاب دے لکه واقعه د بدر یا فتح مکه - او بابًا نه مراد یو قسم او نوع دے یا د عذاب نه مراد جهنم دے - او بابًا نه مراد دروازه د جهنم ده چه کله دوی جهنم ته اورسیږی نو دروازے د جهنم به دوی ته پرانستلے شی لکه چه سورة زمر ۷۱ کښې راغلی دی -

۷۸ - خلاصه :- د دے ځائے نه خلورم باب دے تر آخر د سورت پورے په دیکښې شپږ عقلی دلیلونه دی درے د هغې نه دلیلونه محضه ردے اقرار دی - بیا زورنه ده په انکار د بعث بعد الموت نو بیا درے عقلی دلیلونه اعترافی (اقرار والا) دی دپاره د اثبات د توحید او قیامت - بیا رد دے په مشرکانو باندے بیا درے آداب د دعوت دی سره د تخویف دنیوی نه بیا تخویف دے په حالت برزخیه سره او مختصر بشارت دے بیا اوږده حالات د عذاب د آخرت دی او اوږده اسباب د هغې دی - بیا مسئله د توحید ده سره د اختتام نه په دعا سره -

تفسیر :- په دے آیت ۷۸ کښې دلیل عقلی دے او د لږ شکر نه مراد اقرار د دے نعمت دے سره د شرک کولو نه -

۷۹ - دا بل دلیل عقلی دے او دا رنګ په سورة ملک ۲۳ ۲۴ کښې هم راغلی دی -

وَهُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ وَلَهُ

او الله تعالىٰ هغه ذات دے چه ژوندی کول کوی او مړه کول کوی او خاص د هغه په اختیار کښ دی

اخْتِلَافُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٨٠﴾

بدلیدل د شپے او د ورځے، آیا پس عقل نه لرئ تاسو۔

بَلْ قَالُوا مِثْلَ مَا قَالَ الْأَوَّلُونَ ﴿٨١﴾

بلکه دوی وائی پشان د وینا د مخکنو۔

قَالُوا أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا

دوی وائی آیا کله چه مړه شو مونږ او خاورے شو مونږ او هډوکی شو آیا

أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿٨٢﴾ لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ

مونږ به دوباره ژوندی کیږو۔ یقینًا وعده کړے شوی ده زمونږ

وَآبَاؤُنَا هَٰذَا مِنْ قَبْلُ إِنْ هَٰذَا

او د مشرانو زمونږ سره دا وعده د مخکښ راسے، نه دی دا

إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٨٣﴾ قُلْ لِمَنِ

مګر دروغ قصے د مخکنو خلقو دی۔ ته اُووایه د چا په اختیار کښ ده

ف۸۰:- دا بل عقلی دلیل دے او په یکښ ئے انقلاب د حالتونو ذکر کړے دے اختلاف د شپے او د ورځے په رنړا او تیارے سره او په اوږدوالی او لنډوالی سره او په تلو راتلو سره مراد دے هر کله چه احیاء اماتت هر وخت نوے نوے کیږی نو هغه ئے په فعل مضارع سره ذکر کړو او اختلاف د شپے او ورځے همیشه جاری وی نو هغه ئے په اسم سره ذکر کړو۔

ف۸۱، ف۸۲، ف۸۳:- په دے آیتونو کښ زجر دے په انکار د بعث بعد الموت سره روستو د ذکر کولو د دلیلونو د قدرت نه۔ او په آ ۆ لُوْنَ کښ حواله ده د دے سورت په ف۳۵ آیت یا ته دے او دا سے آیا تونه په سورة نمل کښ ف۶۷ ف۶۸ راغلی دی۔ او وجه د فرق هلته به ذکر کړیشی۔

الْأَرْضُ وَمَنْ فِيهَا إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۸۴﴾

زمکه او څوک چه په دے زمکه کښ دی که چرے تاسو پوهه لرئ -

سَيَقُولُونَ لِلّٰهِ ۚ قُلْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿۸۵﴾

خامخا دوی به وائی الله تعالیٰ لره (اختیار دے)، أو وایه آیا تو ذلے نصیحت نهٔ قبلوئ -

قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ وَرَبُّ

أو وایه څوک دے اختیارمند دَ اوؤ آسمانونو او اختیارمند

الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ﴿۸۶﴾ سَيَقُولُونَ لِلّٰهِ ۚ

دَ عرش لوے شان والا - خامخا دوی به وائی الله تعالیٰ لره (اختیار دے)

قُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿۸۷﴾ قُلْ مَنْ بِيَدِهٖ

أو وایه آیا تو ځان نهٔ ساتئ دَ شرک نه - نه أو وایه دَ چا په لاس کښ

مَلَكُوتُ كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ يُجِيرُ وَلَا

پوره بادشاهی دَ هر څیز ده او هغه پناه ورکوی دَ هر مصیبت نه او نشی ورکیدے

يُجَارُ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۸۸﴾

پناه دَ هغهٔ په مقابله کښ که چرے تاسو پوهیږئ -

سَيَقُولُونَ لِلّٰهِ ۚ قُلْ فَأَنّٰى تُسْحَرُونَ ﴿۸۹﴾

خامخا دوی به أو وائی الله تعالیٰ لره (اختیار دے) أو وایه نو څرنګ اړولے شئ تاسو (دَ حق نه)

۸۴، ۸۵، ۸۶، ۸۷، ۸۸، ۸۹ - په دے آیتونو کښ عقلی دلیلونه اعترافی دی (یعنی په دیکښ اقرار دَ مشرکانو ئے ذکر کړیدے او په دیکښ اثبات دَ توحید او دَ بعث بعد الموت دواړه دے) او په دیکښ احسن (ښائسته) ترتیب دے ځکه چه اول دَ زمکے او دَ زمکے اوسیدونکو په باره کښ تپوس دے بیا پورته او وه آسمانونه او بیا دَ هغے نه اوچت عرش ئے ذکر کړیدے - بیا ئے دے ټولو نه عام شامل صفت دَ بادشاهئ او دَ تصرف ذکر کړیدے او په دے ټولو دلیلونو کښ دَ تصرف او دَ واکن اوئ دَ الله تعالیٰ ذکر دے -

بَلْ أَتَيْنٰهُمْ بِالْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۹۰﴾

بلکه راوړي دي موږ دوی ته حق او یقیناً دوی خامخا دروغ وائي۔

مَا اتَّخَذَ اللّٰهُ مِنْ وَّلَدٍ وَّمَا كَانَ مَعَهٗ

نه دے نیولے الله تعالیٰ هیڅ ځوئے او نشته د هغه سره برابر

مِنْ اِلٰهٍ اِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ اِلٰهٍۢ

څوک واکدار دغه وخت به بوتلے وے هر اختیار مند

فائده :- د اول سره تِذَکَّرُ ذکر کړیں نے ځکه چه زمکه نزدے ده د هغے ته یاداشت بنه حاصلیږی او د آسمانونو او عرش سره تَتَّقُوْنَ ذکر کړیده ځکه چه آسمانونه او عرش دلالت کوی په عظمت او هیبت شان باندے او د هغے سره تقوی مناسب دہ۔ په دریم کښ تُسْحَرُوْنَ سره د تعجب نه ذکر کړیدے یعني چه بادشاهی او پناه د مصیبت نه ورکول، او عجز د ټول مخلوق د الله تعالیٰ د مقابلے کولو نه داچه یوکس د الله تعالیٰ صفت منی او بیا هم د هغه سره شریک جوړوی نو د دغه کس دماغ خراب وی او مجنون وی۔

فائده :- هر کله چه رب (په دویم دلیل کښ) په معنیٰ د تصرف کوونکی دے نو مراد دا دے چه تصرف د آسمانونو او د عرش د چا د پاره دے نو د دے وجے نه په جواب کښ لام په لِلّٰهِ کښ ذکر کړے شو۔

۹۰ :- دا زجر دے یعني قرآن کښ ذکر د توحید او اثبات د بعث بعد الموت حق مسئله ده لیکن دوی چه الله تعالیٰ لره شریک یا ولد منی او د بعث نه انکار کوی نو دا دروغ دی۔

بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ؕ

هغه څیز لره چه ده پیدا کړی وو او خامخا زورآور شوی به وو بعضی په بعضی باندی (یعنی په بل)

سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿٩١﴾ ۙ

باندی) پاک دے الله تعالیٰ د هغې نه چه دوی ئې بیانوی۔

عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَتَعٰلٰى عَمَّا

عالم دے په هر پټ او ښکاره باندے پس اوچت دے د هغې نه

يُشْرِكُوْنَ ﴿٩٢﴾ ع قُلْ رَّبِّ اِمَّا تُرِيَنِّيْ

چه دوی ئې د هغه سره شریکوی۔ ته اُووایه اے ربه زما که چرے ته ما ته ښائې

۵ع۱۵ ۵

سلا ۹ :۔ دا بیان د هغه حق دے چه مخکښ آیت کښ ئې ذکر کړو او رد دے په عقیده د اتخاذ ولد (چه ادنیٰ شریک دی) او رد دے په هغه شریک چه د الله تعالیٰ سره ئې په صفت د تصرف یا په حق د الوهیت کښ برابر ګڼړی۔ او حاصل د دلیل دا دے چه اِلٰه مستقل اختیار والا ته وائی نو که بل څوک الله وے نو هغه به پیدائش کړے وے او بیا به ئې خپل مخلوق د بل نه ضرور جدا کولے د پاره د دے چه مستقل تصرف پکښ اوکړی او په دغه وخت به ئې د بل اِلٰه په برخه باندے ضرور غلبه او تسلط کولے او جګړه به ئې ورسره کولے چه یو اِلٰه د بل اِلٰه حق او تصرف نه مني ځکه چه د دې په الوهیت کښ نقص راځي۔ او هر کله چه یو غلبه په بل باندے کولے نو هغه مغلوب اِلٰه نشي کیدے او دا دلیل یقیني قطعي دے لکه چه د دے تفصیل سورة انبیاء سلا۲۲ کښ تیر شوے دے۔

عَمَّا يَصِفُوْنَ، اشاره ده د نسبت د ولد او د شریک الله تعالیٰ ته ځکه ولدیت او شرکت صفات دی۔

سلا۹۲ :۔ هر کله چه مخکښ دلیلو نو کښ تصرف د الله تعالیٰ ذکر شوے وو نو په دے آیت کښ صفت د علم د هغهٔ ذکر کوی او ورسره تفریع ده په دے دلیل باندے په رد د شرک۔ تسبیح د صفاتو سره تعلق لری او علو د ذات سره تعلق لری د دے وجے نه د اول سره یصفون او دویم سره یشرکون ذکر کړے دے۔

مَا يُوْعَدُوْنَ ﴿٩٣﴾ رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِيْ

هغه عذاب چه دوی سره یې وعده کیږی شی - اے ربه پس مه گرځوې ما لره

فِي الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٩٤﴾ وَاِنَّا عَلٰۤى اَنْ نُّرِيَكَ

په قوم ظالمانو کښې - او یقینًا یو مونږ خبره باندے چه او ښایو مونږ تاته

مَا نَعِدُهُمْ لَقٰدِرُوْنَ ﴿٩٥﴾ اِدْفَعْ بِالَّتِيْ

هغه چه دوی سره یې وعده کوو خامخا قدرت لرونکی یو - دفعه کوه په هغه طریقه

هِيَ اَحْسَنُ السَّيِّئَةَ ؕ نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا

چه ښائسته ده بدی لره ، مونږ ښه پوهیږو په هغه خبرو چه

يَصِفُوْنَ ﴿٩٦﴾ وَقُلْ رَّبِّ اَعُوْذُ بِكَ

دوی یې بیانوی - او ته اووایه اے ربه زما پناه غواړم په تا سره

س۹۳، س۹۴ :- په دے آیاتونو کښې عذاب دنیوی ته اشاره ده د پاره د مشرکانو او دارنګ تعلیم د یو ادب د دُعا دے دعوت کوونکی ته -

نُرِيَنَّكَ ، یعنی زما په ژوند او په موجودګۍ کښې په ظالمانو باندے عذاب راولے -

فَلَا تَجْعَلْنِيْ فِي الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ، کښې مراد دا دے چه ما د سبب د عذاب د دوی نه بچ اوساتے چه هغه شرک او ظلم دے او حدیث د ترمذی کښې هم د دے پشان دعا ذکر کړے شوے ده (واذا اردت في الناس فتنة فاقبضني اليك غير مفتون)-

س۹۵ :- په دے کښې دلیل د عذاب د راتلو ذکر کړے دے چه ستا په ژوند کښې په عذاب راوستلو باندے الله تعالیٰ قدرت لری -

س۹۶ :- په دے آیت کښې د داعی د پاره دویم ادب علمی دے - اَلَّتِيْ اَحْسَنُ نه مراد دعوت د توحید او سنت دے او السَّيِّئَةَ ، نه مراد شرک او بدعات او نور ګناهونه دی - او دارنګ مراد د اَلَّتِيْ اَحْسَنُ نه ښائسته اخلاق دی لکه صبر او تحمل او عفو کول او سَيِّئَةَ نه مراد د مخالف د طرف نه ظلم کول کنځل کول وغیره دی - او دارنګ اَلَّتِيْ اَحْسَنُ نه مراد دعا ده چه مخکښې آیت کښې تیره شوه او سَيِّئَةَ نه مراد عذاب دے -

مِنْ هَمَزٰتِ الشَّيٰطِيْنِ ﴿٩٧﴾ وَاَعُوْذُبِكَ

دَ وسوسو (تيزوونكو) دَ شيطانانو نه . او پناه غواړم په تا سره

رَبِّ اَنْ يَّحْضُرُوْنِ ﴿٩٨﴾ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ

اے ربه زما دَ حاضريدلو دَ دوى نه ما ته. (دوى به مخالفت كوى) تر هغه وخت پورے چه

اَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُوْنِ ﴿٩٩﴾

يو تن دَ دوى ته مرګ وائي به اے ربه زما واپس كړے ما لره.

لكه چه په سورة رعد سلا كښ تير شويدى او سورة قصص سلا او حم سجده سلا كښ.

سلا ، سلا :- پدے آياتونو كښ درسيم ادب دے په طريقه دَ دُعا سره او دَ هَمَزٰتِ نه مراد دَ شياطينو هغه وسوسے دى چه دَ خلقو په سينو كښ په باره دَ دعوت كوونكي كښ اچوى دے دَپاره چه هغوى دا دعوت قبول نه كړى - او اَنْ يَّحْضُرُوْنِ نه مراد دا دے چه شيطان داعى ته حاضرشى دَ هغه په زړه كښ رياء ، تكبر او غضب وغيره واچوى او دعوت ته نقصان اورسيږى.

سلا :- دا آيت تعلق لرى دَ سلا سره او تخويف دے يعنى دوى شرك وكفر كښ مشغول دى تر مرګ پورے بيا په وخت دَ مرګ كښ سوالونه ازمانوته كوى دَ واپس كيدلو دنيا ته.

ارْجِعُوْنِ ئے جمع صيغه ذكر كړيده دَپاره دَ تعظيم دَ رب تعالى يا دا جمع دَپاره دَ تكرار ده يعنى زر زر وائي چه ما واپس كړه. او دا وينا په وخت دَ يقين دَ مرګ كښ ده او دا سے قول دَ مؤمن ګنهګار هم دے لكه سورة منافقون سلا كښ - يا دا وينا په عالم برزخ كښ ده پس دَ مرګ نه - او داسے آياتونه په ډير سورتونو كښ دى لكه سورة اعراف سلا سورة ابراهيم سلا سورة انعام سلا ، سجده سلا مؤمن سلا ، فاطر سلا شورى سلا بعضے په وخت دَ نزع كښ او بعضے په وخت دَ نشور كښ او بعضے په قبر كښ او بعضے په وخت دَ پيش كيدلو كښ الله تعالى ته يا او ر دَ جهنم ته.

لَعَلِّيٓ أَعْمَلُ صَالِحًا فِيمَا تَرَكْتُ كَلَّا ؕ

دَ پاره دَ دے چه عمل اوکړم نیک عمل په بدله دَ هغے کښ چه ما پریخودے دے اَو درا او وګیلے شی ورته

إِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَائِلُهَا ؕ وَمِن وَرَآئِهِم

یقینًا دا یوه خبره ده چه دے وائی هغے لره. او دَ دوی مخے ته

بَرْزَخٌ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿۱۰۰﴾ فَإِذَا نُفِخَ

لو یه پرده ده تر هغه ورځ پورے چه دوی به دوباره ژوندی کولے شی. پس هر کله چه پو کے اوکړے شی

فِي الصُّورِ فَلَآ أَنسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ

په شپیلئ کښ پس نه به وی نسبونه په مینځ دَ دوی کښ په دغه ورځ

وَلَا يَتَسَآءَلُونَ ﴿۱۰۱﴾ فَمَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ

او نه به دوی تپوس نه کولے شی دَ یو بل نه. پس هغه څوک چه درانه شی عملونه دَ هغوی

ف۱ :- په یکښ مقصد دَ واپسئ ذکر کوی او عمل صالح شامل دے توحید او سنت ته. تَرَکْتُ په معنیٰ دَ پریخودلو او بربادولو دے په کَلَّا سره دَ هغهٔ جواب دے یعنی هیڅ کله نشی واپس کیدے. او دوی هیچرے عمل صالح نه کوی لکه سورة انعام ۲۸ کښ تیر شویدی. او بیا ئے دَ واپس راتللو نه مانع ذکر کړو چه هغه برزخ دے او هغه په اصل کښ مانع او پردے ته وائی او هغه وخت چه دَ مرګ نه تر دوباره ژوندن پورے دے هغے ته عالم برزخ ویلے شی که روح په علیین کښ وی او که په سجین کښ وی، او بدن که په قبر کښ دی، او که بل ځائے کښ وی، روغ وی، او که ذرے ذرے وی، تو هغے ته برزخ ویلے کیدیشی. دا برزخ غیر محسوسی دے لکه برزخ په مینځ دَ بحرین کښ په سورة رحمٰن ۲۰ کښ هغه هم محسوس نه دے ابن کثیر دَ ابو صخر نه نقل کړے دے یعنی دوی نه په دنیا کښ دی او نه په آخرت کښ دی.

ف۲ :- دَ دے آیت نه تخویف اخروی شروع کوی او مراد دَ صُور نه دویمه شپیلئ ده چه دَ دوباره ژوندی کیدلو دَ پاره ده او احتمال شته چه اوله شپیلئ مراد شی او دغه قول دَ بعضے مفسرینو دے.

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۲﴾ وَمَنْ خَفَّتْ

نو دغه پس دوی بچ دی د عذاب نه . او هغه څوک چه سپک وی

مَوَازِيْنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا

عملونه د هغوی نو دا هغه کسان دی چه تاوان کړی دی

اَنْفُسَهُمْ فِيْ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ ﴿۱۰۳﴾ تَلْفَحُ

ځانونه خپل په جهنم کښ به دوی همیشه وی. سوځوی به

وُجُوْهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيْهَا كٰلِحُوْنَ ﴿۱۰۴﴾

مخونه د دوی لره اور او دوی به په هغې کښ بد شکله وی.

اَلَمْ تَكُنْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَكُنْتُمْ

آیا نه وو آیا تونه زما چه لوستلے کیدل په تاسو باندے پس تاسو وئ

بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ﴿۱۰۵﴾ قَالُوْا رَبَّنَا غَلَبَتْ

چه د روغږن کول هم هغې لره. دوی به وائی اے ربه زمونږه غلبه شوے وه

فَلَآ اَنْسَابَ، نه مراد دا دے چه نسبونه فائده نشي ورکولے بلکه ډیو بل نه په تپختنه کوی لکه سورة عبس ۳۵ کښ. وَّلَا يَتَسَآءَلُوْنَ، که اعتراض اوکړیشي چه سورة صافات ۲۷ کښ تساؤل ذکر دے نو دے آیت کښ د هغې نفي څنګه اوشوه؟ اول جواب دا دے چه د قیامت حالات مختلفه دی بعضے حالاتو کښ کولے شي. دویم جواب دا دے چه دے آیت کښ اوله شپیلۍ مراد ده، پس هغه وخت به تساؤل نشي کولے او د دویمه شپیلۍ نه روستو به کولے شي دا تفسیر قرطبي کښ د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړیدی. دریم جواب دا دے چه د یو بل نه د رحم کولو په باره کښ هیڅ نشي غوښتلے او د زړه نه تپوس به نه کوی.

۱۰۲۔ دا مختصر بشارت ده او مراد د مَوَازِيْنُ نه عملونه دی او ثِقَلْ نه مراد موافقت د هغې دے د کتاب الله او سنت رسول سره دا سے په سورة اعراف ۸ کښ تیر شویدی.

۱۰۳۔ نه تر ۱۱۱ پورے پورے آیتونو کښ اتګوه احوال د عذاب او اووه اسباب د

عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَآلِّيْنَ ﴿۱۰۶﴾

په موږ باندې بدبختي زموږه او موږه وو خلق بې لارې.

رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْهَا فَاِنْ عُدْنَا فَاِنَّا

اے ربه زموږه اوباسه موږه د دې نه پس که موږ واپس شو (مراۓ ته) نو یقینًا موږ

ظٰلِمُوْنَ ﴿۱۰۷﴾ قَالَ اخْسَـُٔوْا فِيْهَا

به ظالمان یو. او به وائي الله تعالیٰ کوږ شئ لاړ سپو) په جهنم کښې

وَلَا تُكَلِّمُوْنِ ﴿۱۰۸﴾ اِنَّهٗ كَانَ فَرِيْقٌ

او ما سره خبرې مه کوئ. یقینًا وه یو ډله

مِّنْ عِبَادِيْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اٰمَنَّا

د بندګانو (موحدینو) زما نه هغوی به ویل اے ربه زموږه ایمان راوړے موږ

فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۱۰۹﴾

نو بخنه او کړه موږ ته او رحم او کړے په موږ باندې او ته یې غوره د رحم کوونکو نه.

فَاتَّخَذْتُمُوْهُمْ سِخْرِيًّا حَتّٰٓى اَنْسَوْكُمْ

پس کرځول تاسو هغوی لره سپک سپورے تردې چه غافل یې کړئ تاسو

ذِكْرِيْ وَكُنْتُمْ مِّنْهُمْ تَضْحَكُوْنَ ﴿۱۱۰﴾

د توحید زما نه او وئ تاسو چه په هغوی پورے مو خندا کوله.

عذاب ذکر کړیدی. هغه په فکر او تدبر سره معلومیږی. كَالِحُوْنَ،
د دے بد شکلۍ تفصیل په حدیث د ترمذی کښې ذکر شویدے چه مخونه
به د دوی په اور کښې او سوځی نو بره شونډه به یې د سر مینځ پورے
اورسیږی او لاندې شونډه به تر نامه پورے اورسی او غابونه به یې ښکاریږی.
شِقْوَتُنَا، د دے نه مراد خواهشات او مزے د دُنیا دی چه سبب د بدبختۍ
دے یا مراد کړ دے نه تقدیری شقاوت دے. اِخْسَـُٔوْا، عرب دا کلمه
د سپو د شړلو د پاره ذکر کوی نو په یکښې اشاره ده چه د دوی حال به

إِنِّي جَزَيْتُهُمُ الْيَوْمَ بِمَا صَبَرُوا أَنَّهُمْ

يقيناً ما بدله ور كړه هغوى ته نن ورځ په وجه د صبر د دوى

أَنَّهُمْ هُمُ الْفَائِزُونَ ﴿۱۱۱﴾ قَالَ كَمْ لَبِثْتُمْ

چه يقيناً دوى خاص دوى كامياب دى. او به وائى الله تعالى څومره وخت تير كړو تاسو

فِي الْأَرْضِ عَدَدَ سِنِينَ ﴿۱۱۲﴾ قَالُوا لَبِثْنَا

په زمكه كښ په شمار د كلونو سره. دوى به اوائى تيره كړيده موږ

يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ فَاسْأَلِ الْعَادِّينَ ﴿۱۱۳﴾

يو ورځ يا ټكړه د ورځے پس تپوس اوكړه د شمار كوونكو نه.

قَالَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا لَّوْ أَنَّكُمْ

او به وائى الله تعالى نه دے تير كړے تاسو مگر لږ وخت كه چرے

كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۱۱۴﴾ أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا

تاسو پوهيدلے. آيا پس گمان كړيدے تاسو چه يقيناً

د سپو پښان شي يا دا چه دنيا كښ دوى د سپو پښان مؤحد پېنو (دعوت كوونكى) لره دا رل اوچيچل او په هغوى پسے ئے غپل. لكه روستو آيت كښ ذكر كوى چه تاسو مؤحدينو پورے مسخرے او خندا كوله او مراد د فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِي، نه هغه كسان دى چه په هغوى كښ هغه صفتونه وو چه د دے سورت په ابتداء او په مينځ كښ ذكر كړے شويدى او سره د دے نه دوى د الله تعالى نه مغفرت او رحم غواړى. وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ، لكه چه سورة تطفيف ۲۹ كښ ذكر دى. فَاسْأَلِ الْعَادِّينَ، د دے نه مراد حساب دان خلق دى يا ملائيك كراماً كاتبين دى يعنى د ډير هيبت او حيرانتيا د وجے نه دا صل جواب نه غافل دى.

أَفَحَسِبْتُمْ، دا زورنه هم په آخرت كښ به وى. يا دا د سر نه خبره ده او زورنه ده منكرينو د توحيد او د بعث نه.

خَلَقْنٰكُمْ عَبَثًا وَّاَنَّكُمْ اِلَيْنَا لَا

پیدا کړی یئ مونږ تاسو لره فائده او یقینًا تاسو به مونږ طرف ته نشئ

تُرْجَعُوْنَ ﴿۱۱۵﴾ فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ

راګرځولے. پس اوچت دے الله تعالیٰ بادشاه دے

الْحَقُّ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ

حق دے نشته حقدار د بندګئ سوا د هغه نه رب دے د عرش

الْكَرِيْمِ ﴿۱۱۶﴾ وَمَنْ يَّدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا

عزتمند. او چا چه رامد د شه او نیل د الله تعالیٰ سره بل مدد ګار ته

اٰخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهٗ بِهٖ فَاِنَّمَا حِسَابُهٗ

(چه الله ئې ګنړي) نشته دلیل د ده لره په هغې باندے پس یقینًا پوره حساب د ده

عَبَثًا، عبث نه مراد دا دے چه مکلف نه دی او حساب کتاب ورسره نه کیږی.

۱۱۶:- دا دلیل دے د مخکښ آیت یعنی الله تعالیٰ عبث کار نه کوی هغه د عبث کارونو نه لوے دے یا تفریع ده په ټول سورت باندے یعنی هرکله چه د سورت په ابتدا کښ ذکر کړو فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ او نور تصرفات او دلیلونه ئې د ربوبیت او الوهیت ذکر کړل او اثبات د بعث بعد الموت ئې ذکر کړو نو د هغې نتیجه ئې ذکر کړه چه معلومه شوه چه الله تعالیٰ لوے دے او پاک دے د شریکانو نه او د عبث کارونو نه او ورپسے څلور صفات د الله تعالیٰ ذکر کړل د پاره د دلیل.

الْكَرِيْمِ، عرش د الله تعالیٰ کریم دے ځکه چه ټول نعمتونه رحمتونه د هغې نه نازلیږی.- او دا رنګ کریم دے یعنی د هغې مقابله څوک نشی کولے او عزت ئې نشی کمولے.- او کریم په معنیٰ د ښائسته هم دے.- او په دے آیت کښ دعوی د توحید ده په ذکر د عُلُوّا د الله تعالیٰ سره او په توحید د الوهیت او ربوبیت سره.

عِنْدَ رَبِّهٖ ۭ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۱۱۷﴾

د رب د دهٔ سره دے یقیناً نشي بچ کیدلے کافران۔

وَقُلْ رَّبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاَنْتَ

او اووایه ته اے ربه زما بخنه اوکړے او رحم اوکړے او ته

خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۱۱۸﴾

غوره د رحم کوونکو ته یئے۔

سکا :- دا تفریع ده په مخکښ آیت باندے په رد د شرک فی الدعاء سره۔

لَا بُرْهَانَ ، دا قید واقعي دے یعنی په شرک باندے هیڅ دلیل نشته۔

فَاِنَّمَا حِسَابُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ، اشاره ده خپ والی د سزا د شرک ته او اشاره ده چه دهٔ ته بخنه نه کیږی۔

اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ، دا اجمالی حساب ئے ذکر کړو او په دیکښ تصریح ده چه دُعاء د غیرالله کفر دے او دا جمله د سورت د ابتداء په مقابله کښ ده چه قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ، یعنی فلاح په کفر سره نشته بلکه فلاح خاص ده په ایمان پورے۔

سکاا :- دا امر دے نبی صلی الله علیه وسلم ته په دُعا سره د پاره د امتیانو چه د کفر او د شرک نه ئے ځان بچ کړیدے او هغه مؤمنان دی چه د هغوی صفتونه د سورت په اول کښ بیان شول نو په آخر کښ د هغوی د پاره دُعا د نبی ذکر شوه۔ او په سکا کښ دا دُعا د ټولو موحدینو ذکر کړے وه۔

بسم الله الرحمن الرحیم

## سورة نور

ربط :۔ د مخکښې سورت سره دا دے ۔ ۱ مخکښې سورت کښې منع کول د مؤمنانو دی د اوصاف المشرکین نه نو په دے سورت کښې د صفاتو د منافقینو نه منع کول کوی۔ ۲ مخکښې سورت کښې مسئله د توحید په دلائیل نقلیو او عقلیو سره ثابت کړه نو په دے سورت کښې منع کول کوی د اسبابو د طعن نه په مؤمن باندے چه د هغے د وجے نه منافقان بد نامے لګوی په مؤمن باندے۔

دعوٰی د سورت :۔ دروازه د فحشاء او تهمتونو بندول په منع کولو سره د هغے د اسبابو نه او په ذکر د ادابو سره په وخت د تهمت لګیدلو کښې، او په ذکر د ډیرو زجرونو او تخویفاتو د پاره د تهمت لګوونکو۔ او په ذکر د صفات د مؤمنانو او منافقینو د پاره د تمیز او د فرق ۔ او دعوت دے توحید ته په ذکر د مثالونو سره او په ذکر کولو د عقلی دلیلونو او په رد سره په اقسامو د شرک چه شرک فی العلم او فی التصرف او فی العبادة دے ۔ او په ټولو اسماء حسنیٰ د الله تعالیٰ۔ تفسیر قرطبی کښې لیکلی دی مقصد د دے سورت احکام د ستر او د پاکدامنئ دی او عمر رضی الله عنه کوفے والا ته لیکلی وو چه خپلو زنانو ته دا سورت اوښائی۔

خلاصه د سورت :۔ دے تقسیم دے پنځو بابونو ته ۔ اول باب تر منځ پورے دے په دے باب کښې اول ترغیب دے د راتللو لګو حکمونو منلو ته

اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ

زناکاره زنانه او زناکار سړے نو اووهئ هر

وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ ۖ وَّلَا تَاْخُذْكُمْ

یو ډدے دواړو نه شل شل ذرے او نه دے نیسي تاسو لره

بِهِمَا رَاْفَةٌ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ

په دے دواړو باندے ترس کول په جاری کولو ډدین د الله تعالیٰ کښ که چرے یئ تاسو

تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۚ

چه ایمان لرئ په الله تعالیٰ او په ورځ روستنئ باندے

وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝۲

او حاضر دې شي عذاب ډدے دواړو ته یو ډله ډ مؤمنانو نه۔

او دا مأخذ دے ډ دعوی ډ سورت بیا شلور احکام ئے ذکر کړے دی ډ پاره ډ بندولو ډ فحش کار ئے سلا آیت کښ ترغیب دے۔

تفسیر سلا:۔ په دے اول آیت کښ ترغیب دے ډدے سورت په عظمت شان ذکر کولو سره په پنځو وجو سره۔ اول یعنی دا ډ قرآن اوچت شان والا ټکړه ده۔ دویم دا چه نازل کړے شوے ده۔ دریم دا چه په دے باندے عمل کول الله تعالیٰ فرض کړے دی۔ څلورم دا چه ډ دے حکمونه واضح او ښکاره دی۔ پنځم دا چه په دے کښ ډ تذکر او نصیحت اخستلو فائده ده۔

سلا:۔ په دے کښ اول حکم دے ډ فحشاء ډ بندولو ډ پاره په جاری کولو ډ حد ډ زنا په شل دورو وهلو سره۔ او ظاهر ډ آیت نه دا ده چه هر زناکار سړے او زنانه که نکاح او واده ئے کړے وی او که نه وی کړی په هغوی باندے شل دورے وهل دی او بیا ډ حدیث صحیح په وجه سره په واده شوی باندے ورسره رجم دے سره ډ اختلاف ډ اهل علم نه او په غیر واده والو باندے ډ یو کال ډ پاره بهر ډ ملک نه شړل دی سره ډ اختلاف ډ علماء نه او زانی زانیه ورته هله ویلے کیدے شی چه

اَلزَّانِيْ لَا يَنْكِحُ اِلَّا زَانِيَةً اَوْ مُشْرِكَةً ز

زناکار سړے نکاح نه کوی مګر د زناکارے یا مشرکے زنانه سره

وَّالزَّانِيَةُ لَا يَنْكِحُهَآ اِلَّا زَانٍ اَوْ مُشْرِكٌ ج

او زناکاره زنانه نکاح نه کوی د هغے سره مګر زناکار یا مشرک سړے

وَحُرِّمَ ذٰلِكَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۳﴾

او حرام کړے شوے دا کار په مؤمنانو باندے۔

زنا ئے ثابت شی په اقرار یا په شرعی شهادت سره۔ او الزَّانِيَةُ د دے وجے نه ئے مخکښ کړے دے چه د زنا کولو سبب اکثر د زنانه د طرف نه وی او بله وجه دا چه زنا کول په زنانه کښ ډیر شرم او ډیر نقصان دے۔ فَاجْلِدُوْا کښ عام خطاب دے مسلمانانو ته ځکه د انظام قائمول په ټولو مسلمانانو باندے واجب دی یا دا خاص خطاب دے امراؤ د مسلمانانو ته نو دا دلیل دے چه اسلامی خلافت قائم کول په مسلمانانو باندے فرض دی۔ وَلَا تَأْخُذْكُمْ، د دے مراد دا چه د الله تعالی په دے حکم نافذ کولو کښ د زناکارانو سره هیڅ نرمی او رعایت کول جائز نه دی یعنی د سلو دورو نه کم وهل یا په دمه وهل یا معاف کول نه دی پکار۔ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا، دا د دے د پاره چه عام خلق هم عبرت واخلی او بل د دے د پاره چه دا مجرمان هم بند او شرمیږی۔ او دا حکم په ټولو حدودو او قصاص کښ دے چه د خلقو په وړاندے وی د پاره د عبرت اخستلو۔ طَآئِفَةٌ، یو شخص نه هم وئیلے کیږی او د زنا تو څه حد نشته۔

سؔ:۔ په دے آیت کښ دویم حکم دے د فحش کاری د بندولو او مقصد د دے نفرت ورکول دی مؤمنانو ته د زنا او د اهل زنا نه دی او د هغوی نه تعلق قطع کول لکه څنګه معامله چه د شرک والا سره کوی۔

فائده :۔ په دے آیت کښ اشکال د دوؤ وجو نه دی۔

اوله وجه دا ده چه د آیت ظاهر دا دے چه زانی نکاح نه کوی مګر صرف د زانیے او مشرکے سره یعنی د ده ښځه به یا زانیه وی یا مشرکه وی۔ او دا جمله خبریه ده او حال دا دے چه دا سے ډیر زناکار سړی دی چه ښځے

وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ ثُمَّ

(او هغه کسان چه بدنامه کوي (په زناکارئ سره) په پاک لمنو نفسونو باندے بیا

لَمْ يَاْتُوْا بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ فَاجْلِدُوْهُمْ

رانوړی | څلور | ګواهان | نو او وهئ دوی لره

ثَمٰنِيْنَ جَلْدَةً وَّلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ

اتيا | دُرے | او مه قبلوئ | دوی لره

ئے پاک لمنے وي او ډیرے زناکارے ښځے دي چه خاوندان ئے پاک وي۔ دویم اشکال دا دے چه دَ وَحُرِّمَ ذٰلِكَ، ظاهري معنیٰ دا ده چه نکاح دَ زناکارو سره په مؤمنانو باندے حرام دے او حال دا دے چه مشهور قول دَ علماء دین دا دے چه نکاح دَ زناکارے دَ مؤمن سره جائز دے په دلیل دَ عام آیاتونو دَ نکاح سره چه اُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ او وَاَنْكِحُوا الْاَيَامٰى مِنْكُمْ، جواب دا دے چه پدے آیت کښ دَ مفسرينو ډیر اقوال دي بعضو دا آیت خاص کړیدے په معیّن مؤمنانو (اصحاب صفّه) پورے او بعضو خاص کړیدے په معیّن بدکارو ښځو پورے لیکن تخصیص دَ آیت کمزورے قول دے ځکه چه قوي دلیل ئے نشته۔ او دَ اکثر مفسرينو په نيز آيت عام دے ليکن دَ بعضو په نيز توجيه دا ده چه پدے آيت کښ نفي په معنیٰ دَ انکار ده او آیت منسوخ دے۔ او دَ بعضو په نيز په آيت کښ عادت اکثریه دَ بدکارو ذکر کوي چه په قرينه دَ الخبيثات للخبيثين، او پدے توجيه سره جائز ده که نکاح په معنیٰ دَ عقد سره او که په معنیٰ دَ جماع سره شي۔ او ذٰلِكَ اشاره ده دے عادت بیولوته او دا روښانه توجيه غوره ده او دَ دے مقصد دا دے چه زنا ډير قبيح عمل دے اثر ئے په دواړو طرفونو باندے بوشان دے يعنې پدے عمل سره معلوميږي چه دا بل جانب هم زناکار دے۔ که دے عمل ته ګناه وائي او کوي ئے يا دا بل جانب مشرک دے ځکه چه دا عمل جائز ګڼړي نو دلالت کوي په خباثت دَ دواړو طرفونو باندے دَ دے وجه نه زاني دَ خپلے ښځے په زنا خفه کيږي او هغه ته دَيوث ويلے کيږي۔

شَهَادَةً اَبَدًا ۚ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ

گواهي | هيڅ چرې | او | دغه کسان | دوی

الْفٰسِقُوْنَ ۝۴ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا

نافرمان دي. | مګر | هغه کسان | چه | توبه اوکړي

نو حاصل دا دے چه د زناکارو په ډيوبل سره تعلق وی د نکاح او د غير نکاح ليکن مؤمنانو لره د دوی سره تعلق لرل حرام دی يعنی د دوی نه دِ براءت اوکړی او د دوی سره دِ دوستانه نه لری د پاره د دے چه دوی دا خباثت پريږدی يا د معاشرے د پاکانو نه جدا شی.

ف :- په دے آيت کښ دريم حکم دے د پاره د بندولو د استعمال د لفظ د فحش کارئ روستو د بندولو د عمل د هغے نه او دے ته حد (سزا) د قذف (تهمت د زنا) وئيلے کيږی. او اصل سبب د نزول د دے آياتونو تهمت لګول وو په عائشه رضی الله عنها باندے ځکه په آيت کښ د زنانو صفات يے ذکر کړيدی ليکن حکم نارينو ته هم شامل دے او بعضو وئيلے دی چه مراد د المحصنات نه النفوس المحصنات دی نو آيت عام دے نارينو او زنانو دواړو ته.

بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ، په لفظ اربعة کښ ة دلالت کوی چه مراد د شهداؤ نه صرف نارينه دی. (د زنانه شهادت په باب د زنا کښ صحيح نه دے) ځکه چه اسماء د عدد کښ چه ة وی نو تميز يے مذکر وی.

او د دوی يے درے سزاګانے ذکر کړيدی. يو اتيا دورے وهل دوئيم شهادت د دوی نه قبولول، اشاره ده چه دا سے انسان د معاشرے نه ويستل غواړی ځکه چه دے فساد خوروی - دريم حکم کول چه دے فاسق دے او د فاسق شرعی احکام په ده باندے مرتب کيږی او دا ځکه چه ده دروغ اوئيل بل دا چه د مسلمان بے عزتی يے کړيده او دا دواړه ګناهونه کبيره دی. او په دے آيت کښ دليل دے چه څوک بهتان په عائشه رضی الله عنها رشتيا ګڼړی او حال دا چه په هغے باندے څلور ګواهان نشته نو دغه مردود الشهادة دی لکه اکثر شيعه ګان د دے وخت.

مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ وَاَصْلَحُوْا ۚ فَاِنَّ اللّٰهَ

روستو دَدے کار نه او نیک کړی عملونه پس یقیناً الله تعالیٰ

غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ۝۵ وَالَّذِیْنَ یَرْمُوْنَ

بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔ او هغه کسان چه بدنامه لګوی

اَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ یَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَآءُ

په بیبیا نو خپلو باندے (په نسبت دَ زنا سره) او نه دی دوی لره ګواهان

اِلَّآ اَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ اَحَدِهِمْ

مګر ځانونه دَ دوی پس ګواهی دَیو دَ دوی (خاوند) لره

اَرْبَعُ شَهٰدٰتٍۭ بِاللّٰهِ ۙ اِنَّهٗ لَمِنَ

څلور ګواهے دی په قسم دَ الله تعالیٰ باندے چه یقیناً دے خامخا دے

الصّٰدِقِیْنَ ۝۶ وَالْخَامِسَةُ اَنَّ لَعْنَتَ

دَ رشتینو نه۔ او پنځمه ګواهی داده چه لعنت

اللّٰهِ عَلَیْهِ اِنْ كَانَ مِنَ الْكٰذِبِیْنَ ۝۷

دَ الله تعالیٰ دِ وی پدهٔ باندے که چرے دے وی دَ دروغژنو نه۔

ف ۵ دَ دے استثناء اثر خو دَ فسق په لرے کولو کښ اجماعی دے لکه چه پدے سره حَد بالاتفاق نه معاف کیږی لیکن دَ قبولیت دَ شهادت سره دَ دے په تعلق کښ اختلاف دے دَ بعضے اهل علم په نیز شهادت دَ دوی همیشه مردود دے او دَ بعضے اهل علم په نیز روستو دَ توبے نه دَ دوی شهادت قبولے شی۔

ف ۶، ف ۷، ف ۸، ف ۹۔ پدے ۲ آیاتونو کښ څلورم حکم ذکر کوی دَ پاره دَ بندش دَ لفظ دَ فحشاء په مینځ دَ ښځے او خاوند کښ په طریقه دَ لِعان کولو سره۔ او څلور نه شهادات وائی ځکه چه ادا کیږی به په لفظ دَ اشهد بالله سره او دا په معنیٰ کښ قسم دے او په پنځم کرت کښ لفظ

وَيَدْرَؤُا عَنْهَا الْعَذَابَ أَنْ تَشْهَدَ

او اړوي د ښځې نه عذاب لره چه ګواهي اوکړي

أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ

څلور ګواهۍ سره د قسم نه په الله تعالیٰ باندې چه یقیناً دا (خاوند) خامخا

الْكَاذِبِينَ ﴿٨﴾ وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ

د دروغژنو نه دے - او پنځم ځل (داسې) وائي په چه غضب

اللَّهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٩﴾

د الله تعالیٰ دې وي په دې ښځې باندې که چرې دا خاوند وي د رښتینو نه -

د اشهد نه علاوه بلکه د جانب د خاوند نه دعاء شرده په ځان باندې په لعنت سره په شرط د دروغ وئیلو سره او د جانب د ښځې نه دعاء شرده په ځان باندې په غضب سره په شرط د صدق ثابتیدلو د خاوند سره په دې ښځې باندې او په دعاګانو کښې لفظ د اشهد نه استعمالیږي فائده علا:- په جانب د خاوند کښې لعنت ذکر دے او په جانب د ښځه کښې ئې غضب ذکر کړے دے - یو وجه دا ده چه زنانه لفظ لعنت اکثر استعمالوي او هیڅ پرواه نه کوي لکه چه په حدیث کښې راغلي دي "تکثرن اللعن" د دے وجې نه دوي د پاره لفظ د غضب ذکر کړے شو او نارینه د لعنت د لفظ نه ډیر اجتناب کوي نو د هغوي په باره کښې هغه ذکر کړے شو - دویمه وجه دا ده چه لفظ د غضب کښې ډیر شدت دے په نسبت د لفظ د لعنت سره ځکه چه لعنت کښې د رحمت نه محروم کیدل دي او په غضب کښې د محروم والي د رحمت سره نزول د قهر او د عذاب هم وي - پس هر کله چه اثبات د صدق د خاوند سره په ښځه باندې حد د زنا ثابتیږي سره د اختلاف د اهل علم نه او ثبوت د کذب د خاوند باندې حد قذف راځي او حد زنا خوزیات دے د حد قذف نه - دریمه وجه دا ده چه خاوند په داسې معامله کښې اکثر رښتني دي او ښځه سره د دینه چه زنا ئې کړے وي لیکن دروغ وائي نو ځوک چه سره د علم نه انکار کوي نو هغه مغضوب علیه دي د دے وجې نه د ښځې په جانب کښې

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ

او که چرته نه وے فضل د الله تعالیٰ په تاسو باندے او رحمت د هغهٔ

وَاَنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ حَكِيْمٌ ﴿۱۰﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ

او یقیناً دا چه الله تعالیٰ ډیر توبه قبلوُنکے د حکمتونو والا دے - یقیناً هغه کسان

جَآءُوْ بِالْاِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنْكُمْ ط

چه راوړے دے دوی بهتان په (عائشه رضی الله عنها باندے) یوه مضبوطه ډله ده ستاسو نه،

لَا تَحْسَبُوْهُ شَرًّا لَّكُمْ ط بَلْ هُوَ خَيْرٌ

گمان مه کوئ په دے باندے بد ده ستاسو د پاره، بلکه هغه ده فائده منده

لَّكُمْ ط لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ مَّا اكْتَسَبَ

تاسو له، د پاره د هر یو تن د دوی نه (سزا) د هغے ده چه کړے وی

غضب ذکر کړو -

فائده ۲ :- هر کله چه اکثر عادت د ناریتو په آرام او په دمه خبره کول دی نو د دهٔ په جانب کښ ئے وَالْخَامِسَةُ (په پیش سره) ذکر کړو چه مستقله جمله ده او عطف ده په ما قبل باندے - او عادت اکثری د زنانو په خبرو کښ تلوار او عجلت کول دی نو د هغے په جانب کښ وَالْخَامِسَةَ (په زور سره) ذکر کړے دے چه متصل د دے د ما قبل سره یعنی ان تشهد الشهادة الخامسة ، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ، او نور احکام د لعان په احادیثو او فقه کښ تفصیلًا ذکر کړے شویدی.

سلـ ۱ - په دے آیت کښ ترغیب دے عمل کولو ته په تیرشوو حکمونو باندے او ذکر د نعمت الٰهیه دے ، او فضل نه مراد بیج کول دی د اعمالو د فحشاء نه په اول دوه حکمونو کښ او د رحمت نه مراد بیج کول دی د اقوالو د فحشاء نه په روستو دوه حکمونو کښ په ذکر کولو د حدود او د لعان سره - او جزاء د لولا محذوف ده - لَاُبْتُلِيْتُمْ بالفحشاء یعنی ضرور به مبتلا شویوے په فحشاء سره -

مِنَ الۡاِثۡمِ ۚ وَالَّذِیۡ تَوَلّٰی کِبۡرَہٗ

دَ گناه نه ، او هغه تن چه را اوچت کړیدے لوئے بوج

مِنۡهُمۡ لَهٗ عَذَابٌ عَظِیۡمٌ ﴿۱۱﴾ لَوۡلَاۤ

دَ دوی نه هغهٔ لره عذاب لوئے شان والا دے ۔ ولے نه وه

سلہ خلاصه :۔ دَ دے آیت نه دویم باب تر سلاً پورے دے په دیکښ زجرونه دی منافقانو ته چه بد نامے لګوی په مؤمنانو باندے او آداب دی مؤمنانو ته په وخت دَ بد نامه لګیدلو په یو مؤمن باندے او اوصاف دَ منافقانو دی سره دَ تخویف اخروی نه ۔ او ترغیبات دی مؤمنانو ته سره دَ بشارت نه ۔

تفسیر :۔ په دے آیت سلہ کښ زجر دے هغه منافقانو ته چه بد نامه ئے لګولے وه په عائشه رضی الله عنها باندے او په دے بد نامه لګولو کښ صرف درنے دَ اهل ایمان نه شریک شویو حسان بن ثابت مسطح بن اثاثه او حمنه بنت جحش رضی الله عنهم او باقی ټول منافقان وو ۔

عُصۡبَةٌ مِّنۡکُمۡ ، عُصۡبَةٌ ، دَ درے نه تر لسو پورے جماعت ته وئیلے کیږی او مِنۡکُمۡ ئے ځکه اوفرمائیل چه منافقان هم ځان په مؤمنانو کښ شمار کوی ۔

لَا تَحۡسَبُوۡهُ ، دا تسلی ده مؤمنانو ته ځکه چه دا واقعه سبب اوګرځیدله دَ نزول دَ سورت نور دَ پاره او دا لوئے خیر دے او دا رنګ په بهتان لګیدلو سره ګناهونه معاف شی او درجات اوچت شی ۔ په دیکښ اشاره ده چه کوم مصیبتونه چه په اولیاء الله باندے راځی په دیکښ دَ هغوی دَ پاره خیر وی ۔

لِکُلِّ امۡرِیٍٴ مِّنۡهُمۡ مَّا اکۡتَسَبَ مِنَ الۡاِثۡمِ ، یعنی په ګناه دَ بهتان کښ چه چا څومره حصه اخستلے ده دومره ګنهګار دے چا ابتداء کړے ده او چا یو کس ته خبره ښکاره کړیده او چا ډیرو کسانو ته چا په ظن باندے عمل کړے او چا یقین کړیدے ۔

وَالَّذِیۡ تَوَلّٰی کِبۡرَہٗ مِنۡهُمۡ ، مراد دے نه عبد الله بن ابی بن

إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَٰتُ

کله چه تاسو دا (خبر) واوریدلو چه گمان کړی وے مؤمنانو سړو او مؤمنو زنانو

بِأَنفُسِهِمْ خَيْرًا وَقَالُوا هَٰذَا إِفْكٌ

په یو بل باندے د خیر او ویلے وے چه دا دروغ

مُّبِينٌ ⑫ لَّوْلَا جَاءُو عَلَيْهِ بِأَرْبَعَةِ

ښکاره دی۔ ولے نه راوړی دوی په دے باندے څلور

شُهَدَاءَ ۚ فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا بِالشُّهَدَاءِ

گواهان نوکله چه دوی راؤ نه ړل گواهان

فَأُولَٰئِكَ عِندَ اللَّهِ هُمُ الْكَاذِبُونَ ⑬

نو دغه کسان په نیز د الله تعالیٰ دوی دروغژن دی۔

سلول دے چه رئیس د منافقانو وؤ او دهٔ د دے بهتان ابتدا اوکړیوه او د دے نشر و اشاعت به ئے هم کوؤ او دا په روایت د امام بخاری کښ دی او دا صحیح قول دے۔ او چا چه حسان بن ثابت رضی الله عنه ته د دے نسبت کړے دے هغه قول صحیح نه دے هغه قول د هغهٔ راوی اجتهاد دے۔

۱۲:- په دیکښ ادب اول ذکر دے د پاره د مؤمنانو په وخت د بهتان لگیدلو کښ په یو مؤمن باندے یعنی مؤمنانو لره تصدیق د بهتان تړونکو نهٔ دے پکار بلکه دوی لره گمان د خیر پکار دے په مؤمنانو باندے ځکه چه ظاهر حال د مؤمن پاکدامنی او عفت دے۔

۱۳:- په دے آیت کښ زجر دے منافقانو ته۔ او علّت د ماقبل دے یعنی هر کله چه دوی څلور گواهان نشی پیش کولے نو بغیر د ثبوت شرعی نه ولے په مؤمنانو باندے گمان د بدئ کوی۔

عِندَ اللَّهِ، د دے نه مراد حکم د شرع دے یعنی په داسے امورو کښ گمان د انسان ته اعتبار نشته بلکه چه ثبوت شرعی ورسره نه وی نو په دهٔ باندے حکم د دروغژن کیدلے شی۔

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ

او كه چيرے نه وے فضل دَ الله تعالىٰ په تاسو باندے او رحمت دَ هغه

فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ لَمَسَّكُمْ فِيْ مَآ

په دنيا او آخرت كښ خامخا رسيدلے به وے تاسو ته په وجه دَ هغه كار

اَفَضْتُمْ فِيْهِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۴﴾ اِذْ

چه ورننوتلي تاسو په هغې كښ عذاب لوے شان والا - كوم وخت چه

تَلَقَّوْنَهٗ بِاَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُوْلُوْنَ

را اخستله تاسو دا خبره ډيو بل نه په ژبو خپلو سره او وئيل تاسو

بِاَفْوَاهِكُمْ مَّا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ

په خپلو خُلو هغه خبره چه نۀ وو تاسو لره په هغې باندے هيڅ علم (دليل)

وَّتَحْسَبُوْنَهٗ هَيِّنًا ۖ وَّهُوَ عِنْدَ اللّٰهِ

او گمان كوو تاسو پدے باندے معمولي خبره او هغه په نيز دَ الله تعالىٰ

عَظِيْمٌ ﴿۱۵﴾ وَلَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ

لويه بده خبره ده - او ولے نه وه هر كله چه تاسو واؤريدله چه وئيلے تاسو

۱۴:- پدے كښ ترغيب او تسلي ده مؤمنانو ته او مراد دَ فضل نه زجرونه دي منافقانو ته په بهتان لګولو سره په مؤمنانو باندے - او مراد دَ رحمت نه ذكر دَ خائسته آدابو دے چه په دنيا او آخرت كښ فائده وركوونكي دي يا مراد دَ فضل نه توفيق دَ توبے وركولو دے او مراد دَ رحمت نه توبه قبلول دي دَ هغه مؤمنانو چه په بهتان كښ دَ شركت كولو نه روستو توبه يے اوويستله -

۱۵:- پدے كښ بيا زجر دے منافقانو ته او دا علت دَ مخكښ تير شوي مضمون دے چه استحقاق دَ عذاب دے - او پدے كښ زجر دے په درے كارونو سره اول په ژبه دَ يو بل نه نقل كول بے تحقيقه،

مَا يَكُونُ لَنَآ أَنْ نَّتَكَلَّمَ بِهٰذَا ق
نه دي روا موږ لره چه خبره اوخوځوو پس دې باندې
سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۶﴾
پاکي ده تالره دا بهتان لوئې ده۔
يَعِظُكُمُ اللّٰهُ أَنْ تَعُوْدُوْا لِمِثْلِهٖٓ
منع کوي تاسو لره په نصيحت سره الله تعالى چه بيا اوګرځئ پشان د دې
أَبَدًا إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۷﴾ وَيُبَيِّنُ
هيڅ کله که يئ تاسو مؤمنان يئ۔ او بيانوي
اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ ۚ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ
الله تعالى تاسو ته احکام ، او الله تعالى پوهه دې
حَكِيْمٌ ﴿۱۸﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ يُحِبُّوْنَ
حکمتونو والا دې۔ يقيناً هغه کسان چه خوښوي

دويم خبره کول بے دليله ، دريم غټه ګناه معمولي خبره ګنړل او دا صفتونه د منافقانو دي۔

سلا :- په يکښ ذکر د دريم ادب دے مؤمنانو ته يعني منافقان خو په دې باندې ژبې خوځوي ليکن مؤمنانو له پکار دي چه خپلې ژبې د دې نه اوساتي او په يکښ د اوں آدب نه زيات تاکيد دے په اول کښ صرف ترغيب وو خاښته ګمان کولو ته او په يکښ ترغيب دے بنکاره انکار کولو د بهتان ته۔

سُبْحٰنَكَ ، دا هم د قُلْتُمْ د لاندې داخل دے۔

سلا :- په دې آيت کښ دا بل ادب دے مؤمنانو د پاره يعني منع کول د بهتان نړلو ته هميشه۔

سلا :- په دې آيت کښ ترغيب دے تعميل د دې آدابو ته۔ مراد د آيت نه آداب او علامات د منافقانو دي۔

أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا

دا چه خوره شي بدکاري په مؤمنانو کښې

لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا

دوی لره عذاب دردناک دے په دنیا

وَالْآخِرَةِ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ

او آخرت کښې، او الله تعالی پوهیږي او تاسو

لَا تَعْلَمُونَ ﴿١٩﴾ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ

نه پوهیږئ. او که چرے نه وے فضل د الله تعالی په تاسو باندے

وَرَحْمَتُهُ وَأَنَّ اللَّهَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ﴿٢٠﴾

او رحمت د هغه او دا چه یقینا الله تعالی شفقت کوونکے رحم کوونکے دے.

ف۱۹. په دے کښې ذکر د صفت د منافقانو دے او تخویف دنیوی او اخروی
دے. او مراد د اشاعت د فاحشه نه عام دے. بدنامي د یو مؤمن
خورول او د کفر او د شرک اشاعت او بدعات او رسم رواج
ته دعوت ورکول دا رنګ د فحاشۍ او د بدکارۍ اسباب عام کول
سینما ته ترغیب ورکول دا ټول په اشاعت د فاحشه کښې داخل
دی. او عذاب مشروط دے په شرط د توبې نه کولو سره.
ف۲۰. په دے آیت کښې ترغیب دے. او تخویف ته اشاره ده په حذف
د جزاء د لَوْلَا سره چه لعذبکم دے او دے آیت کښې د فضل
نه مراد بیان د علاماتو د منافقانو دے او مراد د رحمت نه حفاظت
دے د فاحشے او د اشاعت د هغې نه او دا دواړه خبرے د مؤمنانو
د پاره رأفت او رحمت دے ځکه چې په آخر کښې رؤف رحیم
ذکر کړو.

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّبِعُوْا
اے ایمان والو مه ځئ
خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ وَمَنْ يَّتَّبِعْ خُطُوٰتِ
قدمونو د شیطان پسے، او څوک چه روان شو په قدمونو
الشَّيْطٰنِ فَاِنَّهٗ يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ
د شیطان پسے نو یقیناً هغه خو دَ ته کوی. د گنده کارونو
وَالْمُنْكَرِ ؕ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ
او د ناکاره خبرو، او که چرے نه وے فضل د الله تعالی په تاسو باندے
وَرَحْمَتُهٗ مَا زَكٰى مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ
او رحمت د هغهٔ پاک به نه وے پاتے شوے د بس تاسو ستاسو نه هیڅوک
اَبَدًا ۙ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ
هیچرے او لیکن الله تعالی پاکی ساتی چالره چه اوغواړی،
وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝۲۱ وَلَا يَاْتَلِ
او الله تعالی هرڅه آوری او په هرڅه پوهیږی۔ او قسم دِ نه کوی

ف۲۱۔ په دے آیت کښ ذکر د ادب دے د پاره د مؤمنانو او منع د کارونو د منافقت نه ده چه هغے ته اشاره ده په خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ سره۔
فَحْشَآءِ، نه مراد هغه عملونه دی چه د ټولو اهلِ عقلو په نیز باندے قبیح وی لکه دروغ وئیل او بهتان تړل بد کاری کول۔
وَالْمُنْكَرِ نه مراد هغه کارونه دی چه د هغے نه شریعے منع کړے وی اگر چه نور خلق ئے بد نه گنړی۔ او دے آیت کښ د فَضْلُ نه مراد قرآن کریم دے چه منع کوونکے دے د تابعدارئ د شیطان نه۔ او د رَحْمَتُهٗ نه مراد د دے سورت نازلول دی د پاره د عفت او د پاکدامنئ یا بعثت د نبی صلی الله علیه وسلم مراد دے او دا پشان د سورة نساء سره دے۔
مَا زَكٰى مِنْكُمْ، مراد د دے نه بچ کیدل دی د شرک او کفر او بدعاتو

أُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ أَنْ يُؤْتُوٓا

خوره والي والا ستاسو نه او مال والا د ورکولو نه

أُولِي الْقُرْبَىٰ وَالْمَسٰكِينَ وَالْمُهٰجِرِينَ

خپلوانو ته او مسکینانو ته او هجرت کوونکو ته

فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۖ وَلْيَعْفُوا وَلْيَصْفَحُوا ۗ

په لار د الله تعالیٰ کښې او معافي دې کوي او مخ دې اړوي (د ملامتۀ کولو نه)،

أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ

آیا تاسو نه خوارئ چه بخنه اوکړي الله تعالیٰ تاسو ته، او الله تعالیٰ

غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٢﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَرْمُونَ

بخنه کوونکے او رحم والا دے. یقینًا هغه کسان چه بد نامے لګوي

الْمُحْصَنٰتِ الْغٰفِلٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ لُعِنُوا

په پاکو زنانو ساده ګانو ایمان والو باندے لعنت کړی شوی دے په دنیا کښې

او د اسبابو د تهمت او بهتان نه يُزَكِّي مَنْ يَّشَآءُ، مراد پرے سره توفیق ورکول دی د تزکیے او د تقوٰی او اشاره ده چه انسان په تزکیه کښې الله تعالیٰ ته محتاج دے.

ف۲۲:- په یکښې ذکر د درے آدابو دے مؤمنانو ته یعنی لوے مرتبے والا مؤمن د پاره لوے اخلاق پکار دی - او په دے آیت کښې ذکر د عظمت شان د صحابه کرامو دے ځکه آیت نازل شوے دے په باره د ابوبکر او مسطح بن اثاثه رضی الله عنهما کښې - مسطح د ابوبکر رضی الله عنه د خاله ځوے وو مسکین وو مهاجر وو او ابوبکر رضی الله عنه به په هغه باندے خرچ کوو- لیکن په بهتان د عائشه رضی الله عنها کښې شریک شوے وو نو ابوبکر رضی الله عنه قسم اوکړو چه زۀ به دۀ ته آئنده د پاره هیڅ نفقه او صدقه نه ورکوم نو روستو د دے آیاتونو د نزول نه او د توبے د مسطح رضی الله عنه نه دا آیت نازل شو - او اشاره ده چه په

فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۠ وَلَهُمْ عَذَابٌ
په دنیا او آخرت کښې او دوی لره عذاب
عَظِيْمٌ ﴿۲۳﴾ يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ
لوے شان والا دے. په هغه ورځ چه ګواهي کوي په دوی باندے ژبے د دوی
وَاَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا
او لاسونه د دوی او خپے د دوی په هغه عملونو باندے
يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۴﴾ يَوْمَئِذٍ يُّوَفِّيْهِمُ اللّٰهُ
چه دوی به کوی. په هغه ورځ به پوره ورکړی دوی ته الله تعالیٰ
دِيْنَهُمُ الْحَقَّ وَيَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ
بدله د دوی (چه دوی ئے حق لري) او یقین به اوکړي چه الله تعالیٰ
هُوَ الْحَقُّ الْمُبِيْنُ ﴿۲۵﴾ اَلْخَبِيْثٰتُ
هغه حق دے ښکاره دے (حقانیت د هغه) . پلیتې د پاره

یو ګناه (بغیر د شرک او کفر نه) سره عملونه برباد کیږي د داسے شخص سره قرابت او د هغهٔ په عمل د هجرت کښې نقصان نه راځي. او دا آیت دلیل دے چه یلی چاته (مومن) د هغهٔ جرم معاف کول سبب د مغفرت د ګناهونو دے.

۲۳، ۲۴، ۲۵: پس دے آیاتونو کښې تخویف اخروی دے په تامه لګوونکو منافقانو ته چه هغوی دا عمل جائز ګڼړی او توبه ئے نه وه کړے او دا صفت د منافقانو دے او آیت عام دے ناریتو او زنانو ټولو ته شامل دے یعني د المحصنات نه مراد نفسونه پاک امن دی که ناریته وی او که زنانه وی او هرکله چه منافقانو پدے واقعه کښې ژبے او لاسونه او خپے استعمال کړے دی نو د هغے شهادت ئے ذکر کړو. او داسے شهادت په سورة یٰس ۶۵ او سورة حم سجده ۲۱ کښې ذکر شوے دے.
اَلْحَقُّ الْمُبِيْنُ، نوم دے د نومونو د الله تعالیٰ نه، لازمي معنیٰ دا ده

لِلْخَبِيثِينَ وَالْخَبِيثُونَ لِلْخَبِيثَاتِ ۚ

دَ پليتانو دي او پليتان دَ پاره دَ پليتو دي

وَالطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ وَالطَّيِّبُونَ

او پاکۍ دَ پاره دَ پاکانو دي او پاکان دَ پاره

لِلطَّيِّبَاتِ ۚ أُولَٰئِكَ مُبَرَّءُونَ مِمَّا

دَ پاکو دي دغه کسان پاک دي دَ هغه خبرو نه

يَقُولُونَ ۖ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٢٦﴾

چه وائي (ورپسې) پليتان دَ دوی دَ پاره بخنه ده او رزق عزت والا دے۔

چه ښکاره دے حقانيت دَ الله تعالیٰ په هر قسم دليلونو سره يا منعى معنیٰ ده چه بيا توؤلے دے حق لره۔

ملا:۔ پدے آيت کښ بشارت دے مؤمنانو ته روستو دَ ذکر دَ تخويف نه او اشاره ده دليل ته په براءت دَ عائشه رضی الله عنها يعنی پاکي امتی دَ نبی صلی الله عليه وسلم دليل دے په پاکي امتی دَ بيبيانو دَ هغه پاندے ځکه چه الطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ او أُولَٰئِكَ مُبَرَّءُونَ کښ دليل دے چه په بهتان وئيلو دَ خبيثانو سره دَ پاکي امنو پاکوالی ته نقصان نه رسی۔ او الْخَبِيثَاتُ، او الطَّيِّبَاتُ زنانو او کلماتو او کارونو او عاداتو ټولو ته شامل دی۔

فائده:۔ مفسر قرطبی ليکلی دی چه الله تعالیٰ براءت دَ يوسف عليه السلام ښکاره کړے وو (په بيان دَ يو شاهد سره) او براءت دَ مريم ئے ښکاره کړے وو په ژبه دَ ولد دَ هغې په وړوکوالی دَ هغه کښ۔ ليکن براءت دَ عائشه رضی الله عنها الله تعالیٰ په خپله اوکړو په انزال دَ دے سورت سره او دا اوچته مرتبه ده۔

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَدْخُلُوا۟ بُيُوتًا

اے ایمان والو مه داخلیږئ کورونو ته

غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُوا۟ وَتُسَلِّمُوا۟

سوا د کورونو ستاسو نه ترهغې پورې چه ځان ورته معلوم کړئ په اجازت غوښتلو سره

عَلَىٰٓ أَهْلِهَا ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ

د هغې په اوسیدونکو باندې، دا په غوره دی تاسو لره

لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٢٧﴾ فَإِن لَّمْ تَجِدُوا۟

د دې د پاره چه یاد اولرئ دا حکم۔ پس که چرې ته مومئ

۲۷ خلاصه:۔ د دې آیت نه تر ۳۳ پورې دریم باب دے په دے باب کښې ذکر کیږي لس آداب چه هغه بندش دے د اسبابو د فحش کارئ نه او په آخر کښې ترغیب دے۔

تفسیر:۔ په دے آیت ۲۷ کښې اول ادب ذکر کوي یعنې د یو بل د اوسیدلو ځائے ته په اجازت سره داخلیدل ضروري دي بے اجازته داخلیدل حرام دي او په دیکښې لوئے فساد دا دے چه بے اذنه (ناڅاپه) داخل شي نو کیدیشي چه اوسیدونکے د کور نارینه یا زنانه په داسې حالت کښې وي چه عورت ئے ښکاره وي، او دا بے حیائي ده او د دې وجې نه دا حکم د خپلې ښځې د اوسیدلو د مکان نه علاوه هر کور او ځائے د اوسیدلو ته شامل دے تر دې پورې چه د مور د اوسیدلو ځائے ته هم دا حکم شامل دے لکه چه داسې په حدیث ابن جریر طبري وغیره کښې راغلے دی۔ حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُوا۟، مراد د استیناس نه اجازت طلب کول دي۔ لیکن هر کله چه د دې اذن غوښتلو د پاره الفاظ متعین نشته صرف مقصد تر ینه عرفي تعارف کول دي کورو لو ته ځکه لفظ د استیناس (چه دلالت کوي په معرفت باندې) ئے ذکر کړیدے او د دې د پاره مختلف طریقے دي۔

اوله طریقه دا ده چه د دروازې نه په یو طرف او درېږي او آواز

فِيهَآ اَحَدًا فَلَا تَدۡخُلُوۡهَا حَتّٰى

په هغې کښې څوک (چه اجازت درکړي) نو مه داخلیږئ ترڅو پورې

يُؤۡذَنَ لَكُمۡ ۚ وَاِنۡ قِيۡلَ لَكُمُ

چه اجازت اوکړې شي تاسو ته، او که چرې اوویلې شي تاسو ته

ارۡجِعُوۡا فَارۡجِعُوۡا هُوَ اَزۡكٰى لَكُمۡ ؕ

واپس شئ نو واپس لاړ شئ دا ښه کوډ ګې ده ډیر تاسو له.

ورکړي چه زهٔ فلانے اجازت غواړم دَ دننه داخلیدو او ورسره په سلام هم ملګرے کړي او دے ته سلام استینان وئیلې شي۔

دویمه طریقه دا ده چه قاصد په چا پسے اولیږي او هغه دَ قاصد سره راشي نو بیا اجازت غوښتلو ته حاجت نشته دَ قاصد سره راتلل اجازت دے۔

دریمه طریقه دا ده چه دروازه په دمه سره اوټکوي او دَ اذن انتظار اوکړي دا درے واړه طریقے په احادیث صحیح کښې ذکر کړے شوے دي۔

څلورمه طریقه په حدیث دَ ابن ماجه کښې ذکر ده چه استیناس دا دے چه تسبیح اُواوُ یا الله اکبر یا الحمد لله یا غاړه تازه کړي په داسے طریقه چه کوروالا خبر شي بیا دَ اذن انتظار اوکړي۔

وَتُسَلِّمُوۡا عَلٰۤى اَهۡلِهَا مراد دَ دے نه سلام کول دي په وخت دَ اذن طلب کولو کښې داسے ده اُوایي السلام علیکم ءَ اَدۡخُلُ او درے کرته په داسے سلام کوي یا مراد دَ دیننه سلام دے پس دَ اذن نه کله چه داخل شي۔ او دَ ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه دَ اذن سره سلام اونکړي نو واپس دِ کړے شي ترڅو پورے چه سلام اوکړي۔

فائده :- دَ استیذان دلیل غرض دے که یو کس مخکښې دَ اذن غوښتلو نه دَ چا کور ته نظر اوکړي نو کوروالو ته اجازت دے چه دَ دهٔ سترګه په یو ډکي سره اوباسي دا په حدیث صحیح مسلم کښې راغلي دي او په ظاهر باندے حمل دے۔

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿۲۸﴾ لَيْسَ

او الله تعالیٰ ستاسو په عملونو باندې پوهه دے - نشته

عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا

په تاسو باندې ګناه چه داخل شئ کورونو ته

غَيْرَ مَسْكُوْنَةٍ فِيْهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ ط

چه او سیدل نه کیږی په هغے کښې څۀ فائده وی ستاسو

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَكْتُمُوْنَ ﴿۲۹﴾

او الله تعالیٰ پوهه دے په هغه څیز چه ښکاره کوئ او هغه چه پټوئ تاسو -

قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ

او وایه مؤمنانو ته چه کوز ساتی بعضے د نظرونو خپلو نه

وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ط ذٰلِكَ اَزْكٰى

او بچ ساتی عورتونه خپل ، دا طریقه پاک ساتونکے ده

لَهُمْ ط اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ﴿۳۰﴾

دوی ته ، یقینًا الله تعالیٰ خبر دے په هغه کارونو چه دوی یې کوی -

ف ۲۸ :- مقصد د آیت دا دے چه بغیر د اذن کولو ته داخلیدل منع دی څوک په کور کښې موجود نه وی یا موجود وی لیکن اذن نه ورکوی چپ وی نو نه به داخلیږی - او که د واپس کیدلو اُوئیلے شی نو واپس کیدل ضروری دی په هغے باندې خفګان کول نه دی پکار -

ف ۲۹ :- مراد د دینه داسے مکانونه دی چه څوک پکښې اوسیدل نه کوی مثلاً دکان، منډئ، دفتر وغیره ته څوک د خپل ضرورت د پاره داخلیږی نو اذن طلب کولو ته حاجت نشته دے - فِيْهَا مَتَاعٌ ، یعنی په هغے کښې ستاسو څه ضرورتونه وی اشاره ده چه بے ضرورته او بے حاجته داسے ځایونو ته تلل هم پکار نه دی ځکه چه دا هم سبب کیدے شی د بدنامی جوړیدو.

ف ۳۰ :- دا دریم ادب دے مؤمنانو سره په باره د پابندی کولو په سترګو باندے

وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ

او وايه مؤمناتو زنانو ته چه كوز ساتي د نظرونو خپلو نه

وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ

او بچ ساتي عورتونه خپل او نه ښكاره كوي

زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ

د ول خپل مگر چه ښكاري د هغے نه (بے اختياره مجبوراً) او اچوي دے

بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ

لوپټے خپلے په گريوانونو خپلو باندے او نه دے ښكاره كوي

زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اٰبَآئِهِنَّ

د ول خپل مگر خاوندانو خپلو ته يا پلارانو خپلو ته

او په فروج (عورتِ خاصه) باندے - د ستر كو آدب ئے مقدم ذكر كړو ځكه دا اصل سبب دے زړه ته د اثر رسولو د پاره او د ارنگ د ميلان د پيدا كيدلو د پاره -

مِنْ اَبْصَارِهِنَّ، لفظ د من صله ده د پاره د غض - ځكه چه غض كمولو ته وائي نو معنىٰ دا ده چه د ستر گو د نظر نه د كمے اوكړي او يا د پاره د تبعيض دے او غض په معنىٰ د كوځولو دے نو معنىٰ دا ده چه كوز او ښكته د ساتي بعض د نظرونو خپلو نه او د دوارو مراد دا دے چه په ستر گو باندے د هر څيز او هر ځائے ته نه گوري. بيا دلته مفعول ئے نه دے ذكر كړے ليكن شرعًا او عادتًا معلوم دے چه هغه ځايونه د بدن مراد دي چه د هغے ښكاره كول نارينه او زنانه لره حرام وي - او بعضے نظر چه جائز دے هغه ناڅاپه نظر كول دي او هغه بے اختياره دي په هغے كښ حكم دا دے چه زر به خپل نظر واپس كوي لكه چه په حديث د صحيح مسلم كښ د جرير بن عبد الله رضي الله عنه نه روايت راغلے دے - او بعضے جائز نظر د ضرورت د علاج كولو په وخت كښ هم دے -

أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ

یا سخرانو خپلو ته یا ځامنو خپلو ته

أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ

یا بنځو خپلو ته یا رونړو خپلو ته

أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ

یا وریرونو خپلو ته یا خوریونو خپلو ته

أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ

او ښځو خپلو (یعنی مؤمنو) ته یا هغه (وینځې) چه مالک دی پرے څښتن لاسونه د دوی

أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ

یا خدمتګاران چه نه دی شهوت والا د

الرِّجَالِ أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا

نارینو ته یا هغه واړه چه نه دی خبر شوی

يَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ، حفاظت د فروجو نه مراد ساتل دی د کشف (ښکاره) کولو نه او دا رنګ بچ ساتل د بدکارئ نه پکښ په طریقه اولی سره داخل دی او د دے سره ئے مینځ ندے ذکر کړے ځکه چه حفاظت د فروجو، د ښځو او خپلے وینځے نه علاوه هر وخت لازم او ضروری دے اګرچه انسان ځان له په خلوت کښ ناست وی هم په عورت (بلا ضرورت) نه ښکاره کوی د وجے د حیا د ملائیکو نه او د الله تعالیٰ نه، دا رنګ صحیح حدیث کښ ذکر کړے شوے دی۔

أَزْكَى یعنی پدے آدب پاندے په عمل کولو سره د انسان زړه او اندامونه د بد خیالاتو او ګناهونه پاک وی او دا رنګ د بدنامئ او تهمتونو نه هم پاک شی په دیکښ اشاره ده چه پاکه معاشره په دا سے آدابو سره پیدا کیږی۔

يَصْنَعُونَ، صنع هغه کار ته ویلے کیږی چه عادت ګرځیدلے وی یعنی

عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَآءِ ۪ وَلَا یَضْرِبْنَ

په عورتونو دَ زنانو باندې او نه دې وهي

بِاَرْجُلِهِنَّ لِیُعْلَمَ مَا یُخْفِیْنَ مِنْ

خپلې خپلې په زور سره په زمکه باندې دَ پاره دَ دې چه معلوم شي خلقو ته هغه چه پټ دي

زِیْنَتِهِنَّ ؕ وَتُوْبُوْۤا اِلَى اللّٰهِ جَمِیْعًا

کالو دَ دوی نه ، او توبه اوباسئ الله تعالیٰ ته ټول

اَیُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۳۱﴾

اے مؤمنانو دَ دې دَ پاره چه کامیاب شئ .

چا چه سترګې په ناکاره نظر کولو عادت کړے وي یا دَ عورت دَ ښکاره کولو عادت ئې نیولے وي نو هغه ته زور نه دے .

ف ۳ :- پدې آیت کښې پنځه آداب زنانو مؤمنانو دَ پاره ذکر کړے دي .
اول ادب غض دَ بصر دَ هغې ، تفصیل ئې مخکښې بیان شو یعنې لکه چه نارینه منع دے پردو زنانو ته دَ نظر کولو نه دا رنګ زنانه هم منع کړے شویدي دَ نظر کولو نه پردو نارینو نه .
دویم ادب حفاظت دَ فروجو هغه هم مخکښې ذکر کړے شو .
دریم ادب وَلَا یُبْدِیْنَ زِیْنَتَهُنَّ ، زینت دوه قسمه دے خلقي او کسبي او بیا دوه قسمه ظاهري او باطني . خلقي زینت مخ او بدن دے او کسبي جامے او کالي اچول ، رنګ لګول او رانجه لګول وغیره .
اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ، ظَهَرَ نه مراد هغه دے چه په مجبورئ باندې ښکاره کیږي نو دا استثناء منقطع ده . معنیٰ دا شوه چه زنانه دے قصدًا خپل زینت نه ښکاره کوي او کوم چه مجبورًا ښکاره کیږي نو په هغې کښې ګناه نشته . او مجبورًا ښکاره کیدو ځکه زینت څادر او بورقه پروني دے ځکه چه هغې دَ پاسه نورے جامے نشي اچولے . او دا رنګ دَ لارے دَ لیدلو په ضرورت سره یوه سترګه ښکاره کول دي او دا رنګ کوټے دَ یو لاس چه په هغې سره په ځان باندې څادر پروني راټینګوي او یا سیلئ راشي جامه تر ینه

# وَ اَنۡكِحُوا الۡاَيَامٰى مِنۡكُمۡ وَ الصّٰلِحِيۡنَ

او نكاح اوكړئ د كونډانو ستاسو نه او د نيكانو (مؤحدينو)

واړه وي دا مجبوراً ښكاره كيدل دي.

فائده:- بعضې مفسرينو او فقهاؤ د مَاظهر منها نه مراد مخ او ورغوي اراده كړې دي او مشروط يې لكولې دې چه دا نظر هغه وخت جائز دے چه نه شهوت وي او نه احتمال د شهوت وي. او د دے د پاره يې دليل پيش كړيدے په قول د علي او ابن عباس رضي الله عنهما سره په تفسير د ماظهر منها كښ.

دويم دليل يې حديث د اسماء رضي الله عنها ذكر كړے دے او په هغې كښ نقل دي چه كله زنانه بالغه شي نو نه دي جائز چه ښكاره شي د هغې نه مګر دا او اشاره يې اوكړه مخ او ورغوؤ ته يعني مخ او ورغوي ښكاره كول جائز دي؟

جواب د اول دليل نه دا دے، ابن همام فتح القدير ص۹۷ شرح هدايه كښ وئيلي دي چه د ماظهر منها په تفسير كښ د صحابه كرامو نه نور اقوال هم نقل دي چه هغه دلالت نه كوي په مدعا باندے او دلالت د قول د علي رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما هم واضح نه دے (ځكه د هغوي نه الكحل والخاتم نقل دے) نو ظاهر دا ده چه مراد كحل نه ځائے د كحل دے يعني سترګے او مراد د خاتم نه ځائے د ګوتے مراد دے يعني ګوتے د لاس، د دے وجے نه دا دليل ثابتوونكے د مدعا نه دے.

او د دويم دليل جواب تفسير ابن كثير كښ ذكر كړے دے چه ابو داؤد او ابو حاتم وئيلي دي چه دا حديث مرسل (منقطع) دے ځكه چه خالد بن دريك د عائشة رضي الله عنها نه اوريدل نه دي كړي.

او بل جواب ابن قدامه الحنبلي په المغني ص۵۵۳ جلد ۶ كښ ذكر كړيدے وئيلي دي كه حديث اسماء چرے صحيح شي پس احتمال لري چه دا روايت د نزول حجاب نه وړاندے وؤ او نور احاديث مرفوعه په جواز د ښكاره كولو د مخ باندے بغير د خطبې نه هيڅ دلالت نه كوي. تفسير سمرقندي حنفي ص۴۲۳ جلد ۲ د عبد الله بن

# مِنۡ عِبَادِكُمۡ وَإِمَآئِكُمۡ ۚ إِنۡ يَّكُوۡنُوۡا

| دَ | مریانو | او دَ وینځو ستاسو نه | که | دوی | وی |
|---|---|---|---|---|---|

مسعود رضی الله عنه نه روایت نقل کړیدے چه دَ دهٔ نه تپوس کړے شویوؤ په باره دَ الا ما ظهر منها کښ نو هغه په سر باندے څادر واچوؤ او مخ یئے پټ کړو او یوه سترګه یئے ښکاره کړه او دا رنګ په تفسیر دَ يُدۡنِيۡنَ عَلَيۡهِنَّ مِنۡ جَلَابِيۡبِهِنَّ کښ ذکر کړے شویدی (لکه په تفسیر دَ سورۃ احزاب کښ یه انشاء الله تعالی راشی)

تنبیه :- دَ وجے دَ اختلاف دَ روایاتو نه په باره دَ مخ او ورغوؤ کښ حکم دَ ستر دَ دیکښ تخفیف دے په نسبت دَ نور بدن سره لکه څه رنګ چه صاحب هدایه په باره دَ زنګون او پټون او عورت غلیظه کښ دَ حکم فرق ذکر کړیدے دَ وجے دَ اختلاف دَ روایاتو نه۔

څلورم ادب وَلۡيَضۡرِبۡنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوۡبِهِنَّ یعنی لوپټه او پړونی په داسے طریقه سره دِ اغوندی چه سر او ګریبان پټ شی ۔ او رد دے په طریقه دَ جاهلیت باندے چه دَ هغوی زنانو به په لوپټه باندے سینے نه پټولے بلکه شا ته یا په اوګو باندے به یئے لوپټه آویزاله کړیوه ۔

او خُمُرِهِنَّ جمع دَ خمار ده ، پښتو ډنګی ته وئیلے کیږی نو کومه لوپټه چه تړلی وی او ویخته ، سر ، سینه ورباندے نه پټیږی نو دَ هغے استعمال حرام دے ۔

فائده :- دا آیت دلیل دے چه قمیصونو کښ ګریبان په سینه باندے جوړول پکار دی دا سے مفسر قرطبی ذکر کړیدی او امام بخاری هم باب جیب القمیص عند الصدر ترجمة الباب ذکر کړیدے ۔ تو په قمیصونو کښ ګریبان په اوګه باندے یا په شا باندے جوړول لکه بعضے متصوفه کوی یا زنانه کوی دا خلاف دَ مسنون طریقے نه دے ۔

وَلَا يُبۡدِيۡنَ زِيۡنَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُوۡلَتِهِنَّ هر کله چه مخکښ استثناء مجبوری ذکر کړه نو اوس استثناء اختیاری ذکر کوی ۔ او مراد دَ زینت نه اعضاء (اندامونه) دَ زینت دی یعنی سر ، مخ ، غوګونه ، غاړه ، څنګلے ، لاسونه ، څپے او پنډۍ ځکه چه کالی آکثر یدے اندامونو کښ استعمالیږی ۔ یا زینت

فُقَرَآءَ يُغۡنِهِمُ اللّٰهُ مِنۡ فَضۡلِهٖ وَاللّٰهُ

فقیران نو مالداری به ورکړی الله تعالیٰ د فضل خپل نه او الله تعالیٰ

وَاسِعٌ عَلِيۡمٌ ﴿۳۲﴾ وَلۡيَسۡتَعۡفِفِ الَّذِيۡنَ

فراخ فضل والاعالم په هرڅه باندې دے - او ځان دې پاک ساتي هغه کسان

کالو ته وئیلې شي لکه سورة طٰهٰ ۱۸ کښې او غوره داده چه سر پکښې داخل نه دے - او دا دولس اقسام دي چه د دوی په مینځ کښې هم تفاوت دے په حکم کښې لیکن مطلق ابداء زینت کښې شریک دي -

اَوۡ نِسَآئِهِنَّ دا دلیل دے چه د کافرې او مشرکې زنانه نه ستر د زینت فرض دے -

اَوۡ مَا مَلَكَتۡ اَيۡمَانُهُنَّ د صحابه او تابعینو اختلاف دے چه په دے آیت کښې غلام د ښځې داخل دے او که نه دے داخل که نه وي داخل لکه چه دا غوره قول دے لیکن بیا هم د هغهٔ په باره کښې په حکم کښې تخفیف دے -

غَيۡرِ اُولِي الۡاِرۡبَةِ مِنَ الرِّجَالِ ، مراد د دے نه هغه ناریته دي چه په هغوی کښې ماده د شهوت نه وي او دا رنګ د زنانو په حسن او جمال باندے هم نه پوهیږي او جدا منګاران وي په کورونو کښې او په دے کښې هیجړا ګان او خزنائی نه دي داخل -

فائده :- د دے اقسامو نه علاوه د نورکسانو په وړاندے زینت ښکاره کول حرام دي لکه ترهٔ د ترهٔ اولاد ، ماما او د ماما اولاد ، لیور او بعضے علماؤ د ترهٔ او ماما په باره د جواز کښې قول ذکر کړیدے -

پنځم ادب وَلَا يَضۡرِبۡنَ بِاَرۡجُلِهِنَّ یعنی زنانه دې په داسے طریقه قدم نه ږدي او نه دے رفتار کوي چه د کالو آوازونه اوریدلے کیږي ځکه چه په دے سره حرکت د شهوت په زړونو کښې پیدا کیږي -

۳۲ :- په دے آیت کښې ذکر د اتم ادب دے حاصل دا دے چه بے واده سړے یا زنانه مه پریږدئ او دا رنګ مریان او وینځوله هم ضرور واده اوکړئ ځکه چه په وادهٔ نه کولو سره معاشره کښې فحاشي بدکاري پیدا کیږي او بد نامي هم ډیریږي -

اَلۡاَيَامٰى ، جمع د ایم ده هغه ناریته او زنانه چه د هغې جوړے نه وي یعنی

لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا حَتّٰى يُغْنِيَهُمُ اللّٰهُ

چه نه موهي نكاح لره ترڅو پورې چه مالداري په وركړي الله تعالیٰ

مِنْ فَضْلِهٖ ؕ وَالَّذِيْنَ يَبْتَغُوْنَ الْكِتٰبَ

دوی ته د فضل خپل نه، او هغه كسان چه غواړي مكاتب كيدل

مِمَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوْهُمْ اِنْ

د هغو چا نه چه مالک دي پرې ښي لاسونه ستاسو نو مكاتب كړئ دوی لره كه چيرې

عَلِمْتُمْ فِيْهِمْ خَيْرًا ۖ وَّاٰتُوْهُمْ

پوهيږئ تاسو په هغوی كښې د خير (ايمان) او وركوئ دوی ته

مِّنْ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِيْٓ اٰتٰىكُمْ ؕ

د مال د الله تعالیٰ نه هغه چه دركړے دے تاسو ته،

وَلَا تُكْرِهُوْا فَتَيٰتِكُمْ عَلَى الْبِغَآءِ

او زور مه كوئ په جينكو خپلو باندې د بدكارئ راو د نكاح كولو)

اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا لِّتَبْتَغُوْا عَرَضَ

كه چيرې غواړي هغوی پاكلمني (نكاح كول) د دے دپاره چه اولټوئ سامان

نكاح ئې نه وي يا د اول سره نه بے نكاح وي يا كونډه شوي وي خو بالغ وي۔
يُغْنِيَهُمُ اللّٰهُ، مراد دا دے چه كوم يو غريب سړي پدے نيت نكاح اوكړه چه عفت او پاكلمنئ حاصله كړي نو الله تعالیٰ هغه لره غنا وركوي غنا د مال او غنا د زړه، دواړه وركوي او دلالت كوي پدے باندے حديث د ابن ماجه چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي درے قسمه كسان دي چه الله تعالیٰ د هغوی سره ضرور امداد كوي۔ مجاهد في سبيل الله ۲۔ نكاح كوونكے په اراده د عفت او پاكلمنئ سره ۳۔ مكاتب چه اراده لري د ادا د بدل كتابت۔
او دا آيت دليل دے چه د نكاح دپاره د مال د كفائت شرط نشته۔

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَمَنْ يُّكْرِهْهُّنَّ
دَ ژوند دنیوی او چاچه زور اوکړو په دوی باندے

فَاِنَّ اللّٰهَ مِنْۢ بَعْدِ اِكْرَاهِهِنَّ
نو یقیناً اللّٰه تعالیٰ روستو دَ زور کولو نه په دوی باندے

غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۳۳﴾ وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ
بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔ او یقیناً نازل کړیدی مونږ

۳۳:- ابتداء دَ دے آیت دَ مخکښ آیت سره تعلق لري، مطلب دا دے چه یوکس دَ نکاح وس نه لري دَ فقیرئ دَ وجے یا دَ نورو اسبابو په وجه نو عفت او پاکدامنی دِ نه برباد وي یعني دَ زنا او دَ هغے دَ اسبابو نه دِ ځان بچ ساتي او حدیث صحیح کښ ئے دَ هغے طریقه خودلے ده په روژه نیولو سره۔ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَاِنَّهٗ لَهٗ وِجَاءٌ، بیا پدے آیت کښ نهم ادب دے دَ پاره دَ بندولو دَ اسبابو دَ بدکارئ۔ حاصل دا دے چه په کومه معاشره کښ مریان او وینځے ډیرے وي نو په هغے کښ بدکاري ډیره پیداکیږي ځکه چه هغوی پخپله وس او اختیار دَ نکاح نه لري او مولی ئے دَ نکاح خیال نه ساتي نو دین اسلام دَ مریانو وینځو دَ کمولو مختلف طریقے بنائي۔ ۱۔ هسے آزادول ئے ثواب ډیر لري۔ ۲۔ په کفارو دَ ګناهونو کښ آزادول ۳۔ په مدبّر کولو سره ۴۔ په مکاتب کولو سره۔ هرکله چه انسان حرصناک دے دَ عمل په عوض کښ مال غواړي دَ دے وجے نه پدے آیت کښ دَ کتابت په طریقه دَ آزادولو امر ورکوي چه دا یو ادنٰی طریقه ده دَ آزادولو۔

کتابت دیته وئیلے کیږي چه دَ مریي یا وینځے په طلب یا بغیر دَ طلب دَ هغوی نه مولی ورته اُوائي چه دومره عوض روپئ راوړه په قسطونو سره نو ته به آزاد ئے نو هرکله چه هغه قسطونه پوره ادا کړي نو آزاد به شي۔

پدیکښ دَ معاهدے او دَ قسطونو لیکل پکاردي نو ځکه ورته کتابت وئیلے کیږي۔

# إِلَيْكُمْ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ وَّمَثَلًا مِّنَ

| تاسو ته | آیتونه | وضاحت کوونکې | او | نمونې | دَ |
|---|---|---|---|---|---|

خَيْرًا، دَ دینه مراد ایمان دے او ورسره قدرت دَ هغهٔ په کسب دَ مال پانسے دے او صلاحیت او تقوی۔

وَاٰتُوْهُمْ۔ په دیکښ عام مسلمانان مخاطب دی چه هغوی دَ دهٔ سره په صدقه یا په زکوٰة سره امداد وکړی او مولا هم په دے خطاب کښ داخل دے چه دَ هغه سره دے مالی امداد وکړی۔

وَلَا تُكْرِهُوْا۔ دا لسم ادب دے یعنی لونړه خوبندے دَ نکاح نه منع کول یا خپلے وینځے په زنا پانسے دَ مال دَ کسب کولو دَپاره مجبوره کول لوے سبب دَ بدکارئ دے دَ دے نه ځان بچ کول فرض دی۔

په آیت کښ دوه تفسیره دی۔ اول دا چه فتیات نه مراد وینځے دی او بغاء نه مراد زنا ده تحصنا نه مراد ځان دَ بدکارئ نه بچ کول دی۔

عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا۔ نه مراد اجرت دَ زنا دے یعنی زور مه کوئ په وینځو خپلو دَ زنا کولو، دَ دے دَپاره چه په دے ذریعه سره مال اوګټئ هر کله چه هغوی پاکدامنی غواړی۔ په دے معنیٰ کښ اشکال دا دے اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا شرط دے نو دَ شرط نه معلومیږی چه که پاکدامنی نه غواړی نو بیا په هغوی اکراه دَ زنا کولو جائزه ده؟ جواب اول دا دے اِنْ په معنیٰ دَ اِذْ دے۔ دویم جواب دا دے چه اکراه هله راځی چه هغوی تحصن غواړی کله چه دا وینځے په زنا رضا وی نو بیا خو معنیٰ دَ اکراه پکښ نه راځی۔

دویم تفسیر دا دے چه فتیات نه مراد لونړه خوینړے دی او بغاء نه مراد نکاح نه کول دی او تحصنا نه مراد نکاح کول دی او عرض الحیٰوة الدنیا نه مراد مال اخستل دی په عوض دَ نکاح کښ دَ مهر په نوم سره یا دَ رواج په طریقه سره یعنی کله چه مالدار سړے دَ دهٔ لور خور نه غواړی او دهٔ لره ډیر مال نه ورکوی نو دے دغه لور خور بل چا له په نکاح نه ورکوی او دا سبب اوګرځی دَ هغے دَ ګناهونو کولو دَپاره۔

الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ وَمَوْعِظَةً

هغه کسانو نه چه تیر شوی دی ستاسو نه مخکښ او وعظ دپاره

لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۳۴﴾ اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

د متقیانو دے۔ الله تعالی نور د آسمانونو او د زمکے دے،

مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ ؕ

حال د نور د توحید د هغه (په زړه د مؤمن مبلغ کښ) پشان د طاقچے دے چه په هغے کښ چراغ وی

اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ ؕ اَلزُّجَاجَةُ

او دا چراغ په شیشه کښ وی ، دا شیشه

كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ يُّوْقَدُ مِنْ شَجَرَةٍ

گویا که دا ستورے دے پرقیدونکے بله وله شی (دا چراغ د تیلو) د ونے

مُّبٰرَكَةٍ زَيْتُوْنَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَّلَا غَرْبِيَّةٍ

برکت والا نه چه خونه دے نه ده نمر ته مخامخ، او نه خاص په سوری باندے

يَّكَادُ زَيْتُهَا يُضِيْٓءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ؕ

نزدے دی تیل د هغے چه رنړا او کړی اگر چه نه دے لګیدلے د هغے سره اور

۳۴۔ په دے آیت کښ ترغیب دے قرآن کریم ته عموماً او دے سورت ته خصوصاً دپاره د عمل کولو یعنی احکام واضح او ښکاره دی او د مخکنو قومونو واقعات هم د عبرت دپاره دی او د وعظ او نصیحت خبرے پکښ هم شته او په دے باندے په عمل کولو سره تقوی حاصلیږی۔
بینات اکثر استعمالیږی په احکام د عقیدے کښ او مبینات په اعمالو کښ۔ مثلاً په دیکښ اشاره ده عنادیانو د مخالفینو ته او دا رنګ اشاره ده چه دا سے احکام د عفت په تیر شوے ملتونو د انبیاء علیهم السلام کښ هم وو۔
موعظة کښ اشاره ده بشارتونو د متقیانو ته۔

۳۵ : خلاصه :- د دے آيت نه ترڅو پورے څلورم باب دے په دے کښې دعوی د توحيد او مثال د موحد دے چه دعوت ورکوي توحيد ته سره د اوصاف د اهل نور نه او بشارت د هغوي، بيا دوه مثالونه د ظلماتو والو چه کافران مشرکان دي- بيا پنځه عقلي دليلونه او په آخر کښې ترغيب- نوم د دے آيت (آية النور) دے-

ربط د مخکښې مضمون سره دا دے هر کله چه دفع اوشوه د ظلماتو چه ناکاره اعمال او اخلاق دي نو اوس ترغيب ورکوي نور ته- دا رنګ هر کله چه د اخلاقو د خبيثين نه منع اوکړه نو اوس حال د طيبين ذکر کوي-

تشريح د الفاظو د دے آيت دا ده- اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ نور اسم د الله تعالی دے د اسماء حسنٰی د هغه نه بغير د تشبيه او تمثيل د مخلوق سره- او دلالت کوي چه د آسمانونو او زمکو او ما فيهما پيدا کوونکے او د هغے تدبير او نظام چلوونکے او هدايت کوونکے يو الله تعالی دے په دے معنٰی کښې د هغه شريک نشته نو دا دعوی د توحيد ده چه د هغے په مخالفت کښې منافقانو په توحيد والو باندے بدنامئ لګولے دي او اوس هم لګوي، دغه نور ختمول د دوي مقصد دے ليکن په دے مقصد کښې چرے نه کاميابيږي روستو مثال دلالت کوي چه دے نور مقابله څوک نشي کولے-

سه چراغے را که ايزد بر فروزد — هر آنکس تف زند ريشش بسوزد

مَثَلُ نُوْرِهٖ، دا نور غير دے د اول نور نه ځکه چه دلته په اضافت سره

# فِيْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ

| په كورونو كښې چه حكم كړيدے الله تعالىٰ چه عزت اوكړے شي دَ هغے |
|---|

ذكر كړيدے او مضاف غيروى دَ مضاف اليه نه - پس مراد دَ دے نه هدايت دَ توحيد او دَ ايمان دے دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه په زړه دَ مؤحد كښې بيا دغه مؤحد چه توحيد او ايمان ته دعوت وركوى نو دا نور په دنيا كښې مشهور شي څوك يې مقابله نشي كولے -
كَاَنَّهَا ، دا صفت دَ الزجاجه دَ ډيرے صفا يئ دے - يُوْقَدُ ، دا جمله حال دے المصباح نه مِنْ شَجَرَةٍ مضاف پټ دے يعني مِنْ زَيْتِ شَجَرَةٍ مُبٰرَكَةٍ ، دَ دے بعضے بركات په سورة مؤمنون ۳۰ كښې ذكر شوے دى دَ مصباح دَ پاره مشكوٰة دَ دے وجے نه ذكر كړ دَ چه په هغے كښې راغونډه شي نو چمك يې ډيروى او زجاجه يې دَ دے وجے نه ذكر كړه چه په غير دَ زجاجے نه په هوا كانو او پوكو وركولو سره هغه مصباح پړكيږى دا رنګ په زجاجه سره دَ مصباح چمك او رنړا زياته او لرے پورے ښكاره كيږى -
لَا شَرْقِيَّةٍ وَّ لَا غَرْبِيَّةٍ ، يعنى خالص په مشرق كښې نه وى چه هميشه په نمر كښې وى او خالص په مغرب كښې نه وى چه هميشه په سورى كښې وى بلكه په درميانه زمكه كښې وى - يا دا چه قريب وى مشرق ته نو نمر تر ينه زر واوړى او چه قريب وى مغرب ته نو سورے تر ينه زر راغونډيږى بلكه درميانه ځائے كښې ده نو تيل يې صاف وى -
تشريح دَ مثال ، سينه دَ مؤمن مشابه ده دَ مشكوٰة سره او زړه دَ مؤمن مشابه دے دَ زجاجه سره - په شيشه كښې درے صفات دى -
۱ نه ډيره سخته ده پشان دَ كټے او نه ډيره نرمه ده پشان دَ خاورے يا خټے ۲ صفا والے ۳ شفافت چه پورے راپورے تر يته څيز ښكاريږى -
دا رنګ زړه دَ مؤمن نرم دے دَ مؤمنانو سره سخت دے په كافرانو باندے (اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ، اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ ) او زړه دَ مؤمن صفا او پاك دے دَ شكونو او شبهاتو نه او دَ شفافت دَ وجے نه عمونه او حكمتونه په زړه دَ

وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ ۙ يُسَبِّحُ لَهُ

او ياد كړے شي په هغے كښ نوم دَ الله تعالىٰ تسبيح وائي هغه لره

مؤمن كښ تجلي (رونړا ته) كيږي- او ايمان او عقيده دَ مؤمن مشابه ده دَ مصباح سره چه سبب دَ رنړا دے۔

كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ، يعني څنګه چه شيشه كښ دا رنړا پشان دَ ستوري چمكدار كه ده دا رنګ ايمان په زړه دَ مؤمن كښ سبب دَ رسيدلو دے مقصد ته په تيارو كښ۔

يُوقَدُ مِن شَجَرَةٍ زَيْتُونَةٍ، څنګه چه چراغ دَ زيتون (رخونه) دَ تيلو نه بليږي دا رنګ ايمان دَ مؤمن حاصل شويږي دَ علومو دَ قرآن او دَ حديث نه- او كوم ايمان چه تقليدي وي نو په هغے كښ شكونه شبهات راځي دوام ئے نه وي او كوم ايمان چه دَ قرآن او سنت نه ماخوذ وي نو هغه دَ شك او شبهے نه پاك وي او دائم وي- او څنګه چه شجره (راونه) دَ زيتون دَ درميانه زمكے وي نو دا رنګ نزول دَ قرآن او سنت هم په حجاز مقدس كښ دے چه نه مشرقي ملك دے او نه مغربي ملك دے۔

يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ، څنګه چه تيل دَ دغه اولے دَ زيتون بغير دَ اور لګيدلو نه چمك كوي دا رنګ علمونه دَ قرآن او سنت سره كه څوك وريا ترے ايمان لري او كه نه لري واضح او صفا دي۔

نُّورٌ عَلَىٰ نُورٍ، څنګه چه دَ تيلو دَ چمك سره دَ مصباح رنړا جمع شوه نو دا رنګ دَ قرآن او سنت سره چه دَ عقل دَ دليلونو تائين چه يو ځائے شوي وي نو ايمان پوره او كامل دے۔

وجه دَ تشبيه دا ده څنګه چه دغه نور موصوف دے په دے صفتونو او حالاتو سره چه غالب دے په ټولو تيارو باندے او دَ لرے نه ښكاري او چمك كوي او چه په زجاجه كښ بند دے نو مركول ئے هم ګران دي نو دا رنګ مؤحد چه دَ توحيد دعوت ئے دَ قرآن او سنت په رنړا كښ شروع كړيدے مشهور وي په هر ملك كښ او مؤمنان ورسره محبت كوي۔

فِيهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ﴿۳۶﴾ رِجَالٌ

| په دے کورونو کښې صباؤ او بیګاه . سړی |
| --- |

سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا ، او خلق د رڼا د دین حاصلولو د پاره د دۀ خواته راځي او په ټولو مخالفینو د دین باندے په حجت او په رعب سره غالب وي۔ سنلقی فی قلوب الذین کفروا الرعب. لیظهره علی الدین کله۔ او مخالفین د دۀ د مقابلے نه عاجزوي د دۀ رڼا نشي ختمولے یریدون لیطفوا نورالله بافواههم الآیة ، او د مصباح نه رڼا اخستلے کیږي نو دا رنګ دینداره خلق د هغه رڼا ځان د پاره رڼا (د عملونو) حاصله کړي۔

يَهْدِي اللّٰهُ لِنُوْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ، دا سے هدایت او نور الله تعالی خاص بندګانو ته ورکوي۔

سلسلة: دا آیت تعلق لري د تیرشوي آیت سره۔ د مثال سره او د ممثل له سره۔ تعلق د مثال سره دا دے چه دغه مشکوٰة چه په هغے کښې زجاجه ده او زجاجه کښې مصباح دے او دا وي په مساجدو کښې او په دے کښې ترغیب دے چه په مساجدو کښې رڼا کول سبب د اجر و ثواب دے۔ او تعلق د ممثل له سره دا سے دے چه دعوت د توحید او ایمان وي په مسجدونو او مرکزونو د توحید او مدارسو د دین کښې او مواضعو د دعوت او تبلیغ کښې۔

فائده :- په دے آیت کښې د مساجدو او د مرکزونو د دین آداب ئے ذکر کړے دي۔ اول ادب ، اَنْ تُرْفَعَ مراد د دینه تعظیم د شان د مسجد او احترام د هغے دے په هغه طریقو سره چه په احادیثو نبویه کښې ذکر کړے شویدي بعضے دا دي ، صفائي کول ، خوشبویه کول ، د اوچتوالی د آوازونو نه بچ ساتل۔ د ورک شي د پاره آواز نه کول د مړي په باره کښې اعلان نه کول د تجارت او صنعت کولو نه محفوظ ساتل په داخلیدو کښې ښۍ خپه مخکښې کول او ذکر مسنون کول او راوتلو کښې کسه خپه مخکښې او ذکر مسنون کول او دغسے د نورو آدابو لحاظ ضروري دے

وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهٗ ، په دیکښې قرآن لوستل او درس د حدیث او د علومو

لَا تُلۡهِيۡهِمۡ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيۡعٌ عَنۡ

چه نه غافل کوی دوی لره سوداګری او نه خرڅول دَ

ذِكۡرِ اللّٰهِ وَاِقَامِ الصَّلٰوةِ وَاِيۡتَآءِ الزَّكٰوةِ

یاداشت دَ الله تعالیٰ نه او پابندی کولو دَ مونځ نه او دَ ورکولو دَ زکوٰة نه،

يَخَافُوۡنَ يَوۡمًا تَتَقَلَّبُ فِيۡهِ الۡقُلُوۡبُ وَالۡاَبۡصَارُ ﴿۳۷﴾

ویره کوی دَ هغه ورځ نه چه کړولی به شی په هغې کښې زړونه او سترګے۔

دینیه کول او دعوت او تبلیغ کول او ذکر په شرعی طریقه کول ټول داخل دی او دا جمله یئے دَ ترفع نه روستو ځکه ذکر کړله چه اصل تعظیم دَ مساجدو په ذکر دَ اسم دَ الله تعالیٰ سره دے۔

يُسَبِّحُ لَهٗ، تیر شوے آدب په مسجد پورے خاص وو او تسبیح عام عمل دَ موحد او دَ مؤمن دے چه هغه په اصل کښې آبادی دَ مسجد ده او تسبیح نه مراد مونځونه کول او دَ الله تعالیٰ دَ توحید کلمات په ژبه لوستل او هغې ته دعوت ورکول دی۔

ف ۳۷:- په دے آیت کښې دَ اصحاب نُور (دعوت کوونکی نور ته) شپږ صفات ذکر کړے دی۔ ع۱ رِجَالٌ، مراد دَ دے نه کمالِ رجولیت دے یعنی بهادران دی، او تخصیص دَ رجال ځکه شوے دے چه په مساجدو کښې مونځ او تسبیح کول کمال دَ پاره دَ نارینه دے او دَ زنانه مونځ په خپل کور کښې بلکه دننه په کمره کښې پوره اجر و ثواب لری۔ ع۲ لَا تُلۡهِيۡهِمۡ، یعنی حلال کسب دنیوی کوی او هر کله چه بهتر کسب تجارت دے نو دَ دے وجے نه تخصیص یئے اوکړو لیکن په کسب سره دَ الله تعالیٰ دَ دین نه غافل کیږی نه عمل کوی په سورة منافقون ۹ پاندے۔ ع۳ عَنۡ ذِكۡرِ اللّٰهِ، یعنی الله تعالیٰ یادوی په طاعت کولو سره۔ ع۴ وَاِقَامِ الصَّلٰوةِ، یعنی دَ مونځ پابندی کوی۔ ع۵ وَاِيۡتَآءِ الزَّكٰوةِ، یعنی زکوٰة ورکوونکی وی۔ ع۶ يَخَافُوۡنَ، دَ قیامت دَ حساب و کتاب وغیره نه ویره کوی۔ او دَ قیامت دا سے هیبت په حٰمٓ مؤمن ۱۸ کښې او سورة ابراهیم ۴۲ کښې هم ذکر دے۔

لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا

د پاره د دے چه بدله ورکړی دوی لره الله تعالیٰ ښائسته بدله د عملونو د دوی

وَيَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ وَاللّٰهُ يَرْزُقُ

او زیاتی ورکړی دوی لره د فضل خپل نه، او الله تعالیٰ روزی ورکوی

مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۳۸﴾ وَالَّذِيْنَ

چا لره چه اوغواړی بے حسابه ۔ او هغه کسان

كَفَرُوْٓا اَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍۭ بِقِيْعَةٍ

چه کفر ئے کړے وی عملونه د دوی پشان د بریښ وړنگی ښکے دی په میدان کښی

يَّحْسَبُهُ الظَّمْاٰنُ مَآءً ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَهٗ

چه ګمان کوی په هغے باندے تږے سړے د اوبو، تر هغے پورے چه هرکله راشی هغے ته

لَمْ يَجِدْهُ شَيْئًا وَّوَجَدَ اللّٰهَ عِنْدَهٗ

او نه مومی هغے لره هیڅ څیز او مومی الله تعالیٰ لره د هغے په خوا کښی

فَوَفّٰىهُ حِسَابَهٗ ؕ وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۳۹﴾

نو پوره به کړی ده ته حساب د ده، او الله تعالیٰ زر حساب کوونکے دے۔

۳۸:۔ پدے آیت کښ بشارت دے ۔ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا، دلته احسن مقابل د حسن نه دے بلکه هر عمل چه په اخلاص او اتباع سنت سره وی نو هغه احسن دے۔
وَيَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ، مراد د دینه زیادت د جزاء د نیک عمل دے، د لس چندو نه زیات چه د هغے انداز معلوم نه دے یا دا چه د اعمالو د عوض نه علاوه زیاتی هم ورکوی۔
وَاللّٰهُ يَرْزُقُ، د دینه مراد رزق د جنت دے چه د هغے حساب نشته او انداز ئے هم نشته۔
۳۹:۔ روستو د مثال د اصحاب نور نه مثالونه د اصحاب ظلمات ذکر کوی۔ اول مثال د اعمال صالحه (په اعتبار د ظاهر سره) او اعمال د

أَوْ كَظُلُمٰتٍ فِيْ بَحْرٍ لُّجِّيٍّ يَّغْشٰهُ

بل مثال دَ دې پشان دَ ډېرو تيرو دې په درياب ډوبلي کښ چه پټ کړے وې هغهٔ لره

مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ

څپې دَ پاسه ترېنه بله څپه وې دَ پاسه ترېنه

خيرو دَ مشرک دے لکه مونځونه صدقات روژے يا احسانات کول دَ مخلوق سره ليکن ورسره ئے شرک کړ کړے دے - او دويم مثال دَ بدو اعمالو او ظلمونه کول دَ مشرک او کافر دے - يا دا چه اول مثال دَ هغه کافرانو مشرکانو دے چه دعوت ورکوي شرک او کفر ته يعنې مقتدا دَ کافرانو دي او دويم مثال دَ مشرکانو جاهلانو دے چه تقليد شرکي کوي - دا دويمه توجيه تفسير ابن کثير ذکر کړے ده -

تشريح :- دَ مثال اول دا ده کَسَرَابٍ ، سراب ديته وائي چه په غرمه دَ موسم دَ اوړي کښ صحرا او ميدان ته انسان نظر کوي نو دَ لرے نه هغهٔ ته او په ښکاريږي ليکن هغه اوبه نه وي - دا رنګ ريګستان ته چه په غرمو کښ نظر کوي نو دَ شګو دَ چمک دَ وجې نه اوبه ښکاريږي هغے ته عرف کښ شګے کل وائي يعنې سراب توم دَ معدوم څيز دے - بِقِيْعَةٍ ، صاف ميدانونو ته وائي - حَتّٰۤى اِذَا جَآءَهٗ لَمْ يَجِدْهُ ، دا ضميرونه راجع دي سراب ته يا دا ضميرونه عمل دَ کافر ته راجع دي يعنې عمل به ئے برباد وي نو هيڅ به نه مومي -

وَّوَجَدَ اللّٰهَ عِنْدَهٗ ، بناء په اوله توجيه باندے په کلام کښ تقدير دے يعنې (لَمْ يَجِدْهُ شَيْئًا فَكَذٰلِكَ الْكَافِرُ لَا يَجِدُ مِنْ جَزَآءِ عَمَلِهٖ شَيْئًا بَلْ وَجَدَ اللّٰهَ عِنْدَهٗ) او بناء په دويم توجيه باندے تقدير ته حاجت نشته او عِنْدَهٗ ضمير عمل ته راجع دے او مراد دا دے چه دَ الله تعالىٰ سره به مخامخ شي په وخت دَ جزاء دَ عمل دَ ده کښ -

تطبيق دَ مثال دا دے څنګه چه دغه ګمان کوونکے دَ اوبو چه تږے دے په سراب پسے منډے او وهي او محنت اوکړي ليکن هغه محنت ئے بے فائدے شي دا رنګ کافر مشرک دَ نيکو عملونو کوشش کړے دے او ګمان ئے دا دے چه پدے باندے به ثواب او جنت ملاويږي ليکن دَ

سَحَابٌ ۗ ظُلُمٰتٌ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ ۗ

وريځ وي . تيارے دي بعضے د پاسه د بعضو نه ،

اِذَآ اَخْرَجَ يَدَهٗ لَمْ يَكَدْ يَرٰىهَا ۗ

هركله چه راوباسي دے لاس خپل لنزدے نه ده چه هغه لره اويني

وَمَنْ لَّمْ يَجْعَلِ اللّٰهُ لَهٗ نُوْرًا فَمَا لَهٗ

او هغه څوک چه ورنکړي الله تعالى هغه ته نور نو نشته هغه لره

مِنْ نُّوْرٍ ﴿۴۰﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُسَبِّحُ لَهٗ

هيڅ نور - آيا ته نه گورے چه يقينًا الله تعالى تسبيح وائي هغه لره

جنت نه په سبب د شرک سره محروم شي او محنت ئے برباد شي - دا رنگ مقتدا د کفر او شرک چه په دعوت د کفر او شرک سره اقتدار او عزت د دنيا ئے حاصل کړے دے د ده خيال دا دے چه په آخرت کښ به هم ما لره عزت حاصل شي ليکن په ورځ د حساب دا گمان به ئے غلط ثابت شي -

نکته :- دا مثال د دويم قسم اصحاب ظلمات دے چه جاهلان مقلدين دي يا مثال دے د بد و اعمالو د مشرکانو - تطبيق د مثال دا سے دے لکه چه يو کس په سمندر ډوبگي کښ وي دا يو ظلمت دے او د راگير کړيو يو موج دا دويم ظلمت دے د پاسه نه بل موج وي دا دريم ظلمت دے د پاسه پر ورے وريځے وي دا څلورم ظلمت دے پس اسے ظلماتو کښ دے د ځان نه هم خبر نه وي خپل لاس هم نشي ليدلے - دا رنگ دا کافر په ظلمت د جهل کښ دے بيا په جهل باندے هم نه پوهيږي دا بل ظلمت دے بيا دے په ظلمت د تقليد کښ دے او د ده امام پيشوا هم جاهل مشرک او مبتدع وي دا بل ظلمت دے ، دے د ځان د پاره هيڅ لار د نجات نشي موندلے ځکه چه الله تعالى ده ته نور نه ورکوي نو بل څوک به ئے څه ورکړي -

دويم طريقه د مثال چه يو ظلمت د شرک دے بل ظلمت د انکار جهل

مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالطَّيْرُ

هغه څوک چه په آسمانونو کښې دي او زمکه کښې دي او مارغان

صٰٓفّٰتٍ ؕ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ وَتَسْبِيْحَهٗ ؕ

غوړوونکي د وزرو دي، هر يو بنده پيژني الله تعالىٰ مونځ د هغه او تسبيح وئيل د هغه

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ﴿۴۱﴾ وَلِلّٰهِ مُلْكُ

او الله تعالىٰ بوهه دے په هغه کارونو چه دوی ئے کوی. او خاص الله تعالىٰ لره د بادشاهي

يا عنادي دے دريم ظلمت د فسق و فجور د اعمالو او اخلاقو دے
څلورم ظلمت په خلقو باندے د ظلمونو کولو دے او بيا هم دغه ته خپل
ګناهونه محسوس کيږي نه. د دے وجے نه نور د الله تعالىٰ د طرفه ته
ورکيږي. لُّجِّيٍّ. کښې اشاره ده چه د لاندے طرف نه د ظلمتونو انتها نه ده
معلوم. مِّنْ فَوْقِهٖ سَحَابٌ، په دے کښې اشاره ده چه نمر، سپوږمۍ د ستورو
رنړا هم د دغه د سترګو نه په وړاندې سره بنده ده. اِذَآ اَخْرَجَ يَدَهٗ،
انسان ته خپل لاس د نظر کولو د پاره ډير نزدے وي ليکن هغه هم
نشي ليدلے تو بيل هيڅ څيز ليدلے نشي.
ملګ. د نور د حاصلولو او ظلماتو نه د بچ کيدلو د پاره عقلي دليلونه
په توحيد باندے ذکر کوي، دا اول دليل دے. صٰٓفّٰتٍ، په دے حال
کښې مارغان ښکاريږي انسانانو ته ځکه ئے خاص ذکر کړو بيا په اسے
وخت کښې مارغان ډيره تسبيح وائی. كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ وَتَسْبِيْحَهٗ،
صلات متعلق دے د ملائکو او جناتو او انسانانو سره او تسبيح متعلق
دے په مارغانو پورے يا تسبيح بيان دے د صلات او قَدْ عَلِمَ
کښې ضمير راجع دے الله تعالىٰ ته يعني الله تعالىٰ د هر چا په صلات
او تسبيح باندے عالم دے ځکه وروسته عموم د علم د الله تعالىٰ ئے ذکر
کړو دا توجيه غوره ده يا ضمير د عَلِمَ راجع دے دغه مخلوق ته يعني
هر يو د ملائکو او جناتو او انسانانو او مارغانو نه د صلاة او د تسبيح
پوهه لري په هغه طريقه چه الله تعالىٰ ورته خودلے ده.

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿۴۲﴾

دَ آسمانونو او دَ زمکے او خاص الله تعالیٰ ته دی ورګرځیدل ۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُزْجِيْ سَحَابًا ثُمَّ

آیا ته نه ګورے چه یقیناً الله تعالیٰ راشړی وریځے بیا

يُؤَلِّفُ بَيْنَهٗ ثُمَّ يَجْعَلُهٗ رُكَامًا

جوړخ راولی په مینځ دَ ټکړو دَ هغے کښ بیا اوګرځوی هغهٔ لاندے باندے (رغټه)

فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ

نو وینے ته غټ باران چه راوځی دَ مینځ دَ هغے نه

وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ جِبَالٍ فِيْهَا

او راوروی الله تعالیٰ دَ آسمان دَ طرف نه دَ (وریځو نه) چه پشان دَ غرونو دی په هغے کښ

مِنْ بَرَدٍ فَيُصِيْبُ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ

ږلځے دَ ګلئ نه نو رسوی دے لره هغهٔ چاته چه اوغواړی

وَيَصْرِفُهٗ عَنْ مَّنْ يَّشَآءُ ط يَكَادُ سَنَا

او اړوی دَ هغهٔ چا نه چه اوغواړی ، نزدے وی پرق

بَرْقِهٖ يَذْهَبُ بِالْاَبْصَارِ ﴿۴۳﴾ يُقَلِّبُ اللّٰهُ

دَ بریښنا دَ هغهٔ چه اوتختوی نظرونو لره ۔ بدلوی رابدلوی الله تعالیٰ

سلا ۴۲ :۔ دا دویم دلیل عقلی دے او په اسم دَ الله تعالیٰ باندے دوه کرته تصریح دَ پاره دَ تاکید ده ۔

سلا ۴۳ :۔ دا دریم عقلی دلیل دے په ذکر دَ احوالو متوسطو سره پیدا کیښ وریځے جوړول او دَ هغے نه باران راوروول او ګلئ راوروول او چاته رسول او دَ چانه اړول او تیزی دَ بریښنا دَ بجلئ ئے ذکر کړے ده ۔ يُزْجِيْ ، دَ زمکے او دَ خوا اوشا او اطرافو نه اجزاء راپورته کولو ته ازجاء وائی ۔ جِبَالٍ ، دا استعاره ده ذکر دَ مشبه به او مراد تری نه مشبه ده یعنی

اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً

شپه او ورځ لره، یقیناً په دې نظام کښې خامخا عبرت دے

لِأُولِي الْأَبْصَارِ ﴿٤٤﴾ وَاللَّهُ خَلَقَ كُلَّ

عقلونو والو لره. او الله تعالیٰ پیدا کړے دی هر

دَابَّةٍ مِنْ مَاءٍ ۖ فَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِي

ژندے سر دَ اوبو نه (نطفه) نو بعضے مخه دی چه ګرځی

عَلَىٰ بَطْنِهِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِي عَلَىٰ

په خیټه خپله باندے او بعضے مخه دی چه ګرځی په

رِجْلَيْنِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِي عَلَىٰ

دوه خپو باندے او بعضے مخه دی چه ګرځی په

أَرْبَعٍ ۚ يَخْلُقُ اللَّهُ مَا يَشَاءُ ۚ إِنَّ اللَّهَ

څلورو (خپو) باندے پیدا کوی الله تعالیٰ هغه څه چه اوغواړی، یقیناً الله تعالیٰ

عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٤٥﴾ لَقَدْ أَنْزَلْنَا

په هر څیز باندے قدرت لری. یقیناً نازل کړیدی مونږه

ورځے چه پشان دَ غرونو غټے وی۔ او په دے آیت کښې بیان دَ ملک او دَ تصرف دَ الله تعالیٰ دے په باراتونو وغیره پیدا کولو سره۔

۴۴ :۔ دا څلورم دلیل دے په ذکر نورد احوالو متوسطو سره په یکښې ذکر دَ ملک او تصرف دَ الله تعالیٰ دے په زمانه او زمانیانو کښې۔

۴۵ :۔ دا پنځم دلیل عقلی دے په ذکر دَ احوالو سفلیو سره یعنی احوال دَ زمکے والو سره۔ په اعتبار دَ ګرځیدلو سره په زمکه باندے درے قسمه دی په خیټه باندے ګرځی۔ لکه مار وغیره۔ په دوؤ خپو باندے ګرځی لکه انسان، مارغان۔ په څلورو خپو باندے ګرځی لکه عام څناور۔
يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ، کښې زیاتو خپو ته اشاره ده لکه زرخزه رهزار پائے ورته

اٰیٰتٍ مُّبَیِّنٰتٍ ؕ وَاللّٰهُ یَهْدِیْ مَنْ یَّشَآءُ

آیاتونه ښکاره مضمون والا، او الله تعالی رسوی چاله چه اوغواړی

اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ﴿۴۶﴾ وَیَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا

لارې نیغې ته. او وائی دوی (منافقان) چه ایمان راوړی مونږ

بِاللّٰهِ وَبِالرَّسُوْلِ وَاَطَعْنَا ثُمَّ یَتَوَلّٰی

په الله تعالی او په رسول باندې او تابعداری کوو مونږ بیا مخ اړوی

فَرِیْقٌ مِّنْهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ؕ وَمَآ

یوه ډله د دوی نه روستو د دینه، او نه دی

اُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۴۷﴾ وَاِذَا دُعُوْٓا

دغه کسان مؤمنان. او کوم وخت چه اوبللے شی دوی

وائی) عنکبوت وغیره لیکن معلومه دا ده چه دوی هم په څلورو څپو باندے گرځی نو د دے وجے نه ئے دا مستقل قسم شمار کړے نه دے.

ربط:۔ دا ترغیب دے قرآن ته او امتثال د دے احکامو ته۔ او هر کله تیر شوے آیاتونو کښ د حفیدے د توحید ذکر او شو نو کله د دے اختتام ئے په ذکر د صراط مستقیم سره او کړو۔

خلاصه:۔ د دے آیت نه پنځم باب تر آخر د سورت پورے دے په دیکښ مقابله ده د صفاتو د منافقانو او د صفاتو د مؤمنانو او زجرونه منافقینو ته او بشارتونه اخروی او دنیویه مؤمنانو ته بیا درے آداب دی د پاره د دفع د حرج د مؤمنانو نه۔ بیا آخر کښ مقابله ده د صفتونو د مؤمنانو او منافقانو او زجر او تخویف دے منافقو ته او اختتام د سورت په مسئله د توحید سره دے۔

تفسیر:۔ ۴۷، ۴۸، ۴۹، ۵۰:۔ د نور او د توحید ذکر کولو نه روستو هغه منافقانو ته زجرونه ورکوی چه د دے نور د مړ کولو کوشش نه کوی۔ او د آیت بینت سره منافقانه طرز کوی۔ په دے آیاتونو کښ د منافقانو نهه صفات ذکر کړے دی په اول آیت کښ درے

إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ إِذَا

الله تعالیٰ او رسول دهغهٔ ته دَ دے دَپاره چه فیصله اوکړی په مینځ دَدوی کښې دغه وخت

فَرِيقٌ مِّنْهُم مُّعْرِضُونَ ﴿۴۸﴾ وَإِن يَكُن

یو ډله دَ دوی نه مخ کرځوی - اوکه چرے وی

لَّهُمُ الْحَقُّ يَأْتُوا إِلَيْهِ مُذْعِنِينَ ﴿۴۹﴾

دَ دوی دَپاره فائده (دنیوی) راځی هغے ته زر قبلوونکی -

أَفِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَمِ ارْتَابُوا أَمْ

آیا دَدوی په زړونو کښې مرض دے بلکه دوی بنهٔ شکیان دی بلکه

يَخَافُونَ أَن يَحِيفَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُ

ویریږی چه ظلم به اوکړی الله تعالیٰ په دوی بانْدے او رسول دَ هغهٔ

بَلْ أُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿۵۰﴾ إِنَّمَا كَانَ

بلکه دغه کسان دوی ظالمان دی - یقیناً دهٔ

صفتونه. دویم آیت کښې یو صفت - دریم آیت کښې یو صفت - څلورم آیت کښې څلور صفتونه -

وَيَقُولُونَ، پدے کښې پټ لفظ وَمِنْهُمُ الَّذِينَ يَقُولُونَ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ، مطلب دا دے چه عملونه دَ مقتضیٰ دَ ایمان نه مخالف کوی -

وَمَا أُولَٰئِكَ بِالْمُؤْمِنِينَ، دا آیت دَ سورة بقره ۸ پشان دے -

لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ، یعنی قرآن او سنت رسول ته دَ فیصلے کولو دَپاره را اوبللے شی هسے دَ تلاوت او دَ ختم دَپاره خو راځی لیکن دَ فیصلے نه اعراض کوی -

إِذَا فَرِيقٌ، مراد دَ دینه منافقان دی - مِنْهُمْ، ضمیر ټولو مؤمنانو ته راجع دے -

مُذْعِنِينَ، په تلوار سره قبلوونکی دی لیکن دا قبولیت دَ حق پرستۍ

# قَوْلَ الْمُؤْمِنِيْنَ إِذَا دُعُوْآ

ويتا دَ مؤمنانو كله چه اوبللے شي

# إِلَى اللهِ وَرَسُوْلِهٖ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ

الله تعالىٰ او رسول دَ هغوئ نه دَپاره دَ دے چه فيصله اوكړي دَ دوي په مينځ كښ

دَ وجے نه نهٔ دے بلكه دَ مفاد پرستئ اوخواهش پرستئ په وجے سره دے او دا مراد دَ الحق دے او دَ دے صفت مصداق پدے زمانه كښ هغه خلق دي چه په يو معامله كښ دَ قرآن اوسنت (شرعي) فيصلے ته راوبللے شي نو كه فائده اوګنړي نهٔ وي نو وائي چه مونږ دَ ملک په قانون (غير شرعي) باندے عمل كوؤ اوكه فائده اوګنړه ورته ملاويږي نو وائي چه زهٔ په شريعت فيصله كوؤم- دا رنګ هغه ملايان چه متعصب مقلدين دي چه قرآن اوسنت په مقابله كښ فقهي روايات بے دليله مني او وائي چه مقلديانو ته قرآن اوسنت ته رجوع منع ده او وائي چه مشران زمونږ نه ښه پوهيدل اوكه دَ دوي خه مفاد پكښ ښكاريږي نو بيا په قرآن اوسنت باندے حوالے وركوي۔

مَرَضٌ ، دَ دے نه مراد ضعف دَ ايمان دے اَمْ په معنىٰ دَ بَلْ سره دے۔

اِرْتَابُوْا ، يعني دَ قرآن اوسنت په احكامو كښ پوخ شک كوي او دا زوال دَ ايمان دے۔

اَمْ يَخَافُوْنَ ، يعني بلكه فيصلو دَ قرآن اوسنت ته نسبت دَ ظلم او وحشيت كوي لكه وائي چه حد شرعي دَ زنا اوغلا وغيره ظلم يا وحشي سزاګانے دي ، او داسے وئيل عين كفر دے۔

بَلْ اُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ، كښ اشاره ده چه دَ قرآن اوسنت په فيصلو كښ هيڅ ظلم نشته بلكه دَ دے مخلوق په خود ساخته قوانينو اورواجونو كښ صريح ظلم دے۔

أَن يَقُولُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۚ وَأُولَٰئِكَ

چه وائي دوی واورېدو موږه او تابعداري کوو موږه. او دغه کسان

هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٥١﴾ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ

دوی بچ کېدونکي دي. او چا چه تابعداري اوکړه د الله تعالیٰ

وَرَسُولَهُ وَيَخْشَ اللَّهَ وَيَتَّقْهِ

او د رسول د هغهٔ او وېرېږي د الله تعالیٰ نه رېه باره د تېر شوو عملونو کښې) او تقوی يې راتلونکو

فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ ﴿٥٢﴾ وَأَقْسَمُوا

نو دغه کسان دوی کامیاب دي. او قسمونه کړي دوی

بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِنْ أَمَرْتَهُمْ

په الله تعالیٰ باندې کلک قسمونه خپل که چرې ته حکم اوکړې دوی ته

۵۱، ۵۲:- په دې آیتونو کښې ذکر د شپږ صفاتو او احوالو د مؤمنانو دې د پاره د فرق ښکاره کېدلو د منافقانو نه او بشارت دې دوی لره په فلاح او فوز سره. فرق د فلاح او فوز په مینځ کښې دا دې چه (فلاح نَيْلُ الْخَيْرِ وَالنَّفْعِ الْبَاقِيْ اٰثَرُهٗ) حاصلول د خیر او د داسې فائدې چه اثر يې باقي او همیشه وي. او (فوز الْخَلَاصُ مِنَ الْمَكْرُوْهِ مَعَ الْوُصُوْلِ اِلَى الْمَحْبُوْبِ) بچ کېدل د مصیبت نه او مقصد ته رسیدل (کتاب الفروق اللغویة لابی هلال العسکري). هر کله چه اول صفت د جنت د حصول د پاره کافي دې ځکه چه نفس ایمان دې نو هغې سره فلاح ذکر شوه او په دویم آیت کښې پوره ایمان سره د امتثال د اوامرو او اجتناب د منهیاتو نه ذکر دې نو هغه سبب د پوره کامیابۍ دې چه هغې ته فوز وائي نو د دې وجې نه هغې سره يې فوز ذکر کړې دې.

سَمِعْنَا، سمع د قبولیت مراد ده او دا د زړه صفت دې او اَطَعْنَا، د اندامونو صفت دې.

وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ، کښې اشاره ده د ماموراتو د تابعدارۍ او يَخْشَ اللَّهَ، په باره د هغه اعمالو کښې دې چه مخکښې يې کړې دي

لَيَخْرُجُنَّ ۖ قُلْ لَّا تُقْسِمُوْا ۚ طَاعَةٌ

خامخا دوی به اوځی، ته اُوایه قسمونه مه کوئ تابعداری ستاسو

مَّعْرُوْفَةٌ ۖ إِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۵۳﴾

معلومه ده، یقیناً الله تعالیٰ خبردار دے په هغه کارونو چه تاسو کوئ۔

قُلْ أَطِيْعُوا اللّٰهَ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ

اُوایه تابعداری کوئ دَ الله تعالیٰ او تابعداری کوئ دَ رسول

فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ

پس که تاسو اوګرځوئ تاسو نو یقیناً دَ هغهٔ په ذمه باندے هغه کار دے (یعنی د هغه په ذمه کیخودے شوے) چه هغهٔ ته سپارلے

دَ هغې دَ سزا نه ویریږی۔

وَيَتَّقْهِ، په باره دَ هغه عملونو کښې دے چه په آئنده زمانه کښې ئې کوی دَ مخالفت دَ الله اورسول نه ځان ساتی۔

۵۳:۔ په دے آیت کښې زجر دے منافقانو ته او دَ هغوی دَ یو بل صفت ذکر کوی یعنی هرکله چه په فرق بیانیدلو سره دوی بے اعتباره شول نو دَ دے وجے ډیر تاکید ئې شروع کړو په قسم کولو سره په نوم دَ الله تعالیٰ باندے ځکه چه قسم په غیر الله باندے دوی په عام حالاتو کښې کوو لیکن قسم کول په نوم دَ الله تعالیٰ سره دَ دوی په نیز باندے مضبوط قسم وو۔

لَيَخْرُجُنَّ، یعنی که ته مونږ ته حکم کوے نو مونږ ستا په تابعداری کښې دَ کورونو او اهل وعیال او مالونو نه اوځو او ستا حکم منو۔ یا مراد دا چه دَ جهاد دَ پاره اوځو۔

طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ، دَ دے اول معنیٰ دا ده چه شرعی طاعت کول دَ قسم کولو نه غوره دے نو عبارت داسے دے طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ شَرْعِيَّةٌ خَيْرٌ مِّنْ أَقْسَامِكُمْ، دویم دا چه لازم دے په تاسو باندے طاعتِ شرعیه نو عبارت داسے دے عَلَيْكُمْ طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ، دریمه معنیٰ دا ده ستاسو طاعت معلوم او مشهور دے چه هغه طاعت دے دَ خپل مفاد او خواهش دَ پاره لکه چه مخکښې تیرشو نو عبارت داسے دے طَاعَتُكُمْ طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ مَّعْلُوْمَةٌ۔

وَعَلَيْكُمْ مَّا حُمِّلْتُمْ ۖ وَإِنْ تُطِيعُوهُ

او په تاسو باندې هغه څه دي چه تاسو ته سپارلے شوي (يا تاسو په ذمه باندې ايښودلے شوي) او که تابعداري او کړئ د ده

تَهْتَدُوا ۚ وَمَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ

نو هدايت به او مومئ، او نشته په رسول باندې مګر رسول دې

الْمُبِينُ ﴿٥٤﴾ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا

ښکاره - وعده کړيده الله تعالى د هغه چا سره چه ايمان ئې راوړے دے

مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ

ستاسو نه او عملونه ئې کړي نيک (په تابعدارئ د نبي سره) خامخا خلافت به ورکوي دوي له

فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ

په دنيا کښ لکه چه خلافت ئې ورکړيوؤ هغه کسانو ته

مِنْ قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ

چه د دوي نه مخکښ وؤ، او خامخا ټينګ به کړي دوي له دين د دوي

الَّذِي ارْتَضَىٰ لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِنْ

هغه چه غوره کړيدے د دوي دپاره او خامخا بدل به کړي دوي له

۵۴ :- په دې کښ دعوت د اطاعتِ کامله دے منافقينو ته په اخلاص او په پريښودلو د منافقت سره او نقصان د تَوَلّي (طاعت پريښودل) ئې ذکر کړے دے - فَإِنْ تَوَلَّوْا سره مَا حُمِّلَ نه مراد دعوت او تبليغ او ادائيي د خپلو فرائضو ده - مَا حُمِّلْتُمْ، نه مراد قبلول د احکامو او تابعداري د رسول الله صلى الله عليه وسلم او اکرام د هغه دے او فائده د اطاعت ئې ذکر کړے ده - وَإِنْ تُطِيعُوا ، د دې نه معلومه شوه چه په غير د تابعدارئ د نبي صلى الله عليه وسلم نه هدايت نه حاصليږي نو هغه پيران چه د ځان نه ئې طريقت او حقيقت جوړ کړيدے او وائي چه شريعت جدا دے او طريقت جدا دے او هغه بدعتيان چه د ځان

بَعۡدِ خَوۡفِهِمۡ اَمۡنًا ؕ يَعۡبُدُوۡنَنِيۡ

روستو د ویرے د دوی نه امن ، په داسے حال چه بندګی کوی زما

لَا يُشۡرِكُوۡنَ بِيۡ شَيۡـــًٔا ؕ وَمَنۡ كَفَرَ

شریک نه جوړوی ما سره هیڅ څیز ، او چا چه کفر اوکړو

بَعۡدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓـئِكَ هُمُ الۡفٰسِقُوۡنَ ﴿۵۵﴾

روستو د دے نه نو دغه کسان دوی نافرمان دی۔

نه عقیدے او اعمال جوړوی او د هغے ثوابونه ذکر کوی دا ټول ګمراهان دی د دوی سره هدایت نشته۔

ف۵۵:- په دے آیت کښ بشارت دنیویه دے مؤمنانو لره ۔ یعنی د اجراء د احکامو او قوانینو د دے سورت د پاره به الله تعالی مؤمنانو ته خلافت ورکوی او په هغے کښ تذلیل راځی د منافقانو ۔ او په آیت کښ درے اسباب د بشارت ئے ذکر کړی دی ۔ ۱ ایمان ۲ عمل صالح ۳ عبادت د الله تعالی د هر قسم شرک نه خالی ۔ او درے بشارتونه ئے ذکر کړیدی ۱ استخلاف ، ۲ تمکین د دین اسلام ، ۳ امن ۔ مقصد د خلافت نه غالب کول د دین اسلام دی ۔ او ظاهره خبره ده چه غلبه د دین اسلام سبب د امن دے نو ځکه ئے په دے ترتیب سره ذکر کړل او هر کله چه کفر لوے سبب د خروج د طاعت د الله تعالی دے چه هغه فسق دے او فسق سره د خلافت زوال راځی د دے وجے نه د آیت اختتام کښ الۡفٰسِقُوۡنَ ئے ذکر کړو ۔

الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ ، نه مراد بنی اسرائیل دی روستو د هلاکت د فرعون نه د هغوی خلافت شروع شوے وو ۔ او زمانه د داؤد او سلیمان علیهما السلام پکښ د خلافت بهتر مثال دے ۔

فائده :- د مِنۡكُمۡ ، لفظ دلالت کوی چه دا وعده د هر مؤمن سره نشته بلکه د بعضو مؤمنانو سره ده سره د اراده د الله تعالی نه بیا دا وعده د نبی صلی الله علیه وسلم د وخت نه شروع شوه په ژوند د نبی صلی الله علیه وسلم کښ اسلام غالب شو په مکه ،

وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَآتُوا الزَّكٰوةَ وَأَطِيعُوا

او پابندي کوئ د مونځ او ورکوئ زکوٰة او تابعداري کوئ

الرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٥٦﴾ لَا تَحْسَبَنَّ

د رسول د دے دپاره چه رحم اوکړے شي په تاسو باندے. گمان مه کوه

خیبر، بحرین، جزیرة العرب، یمن، هجر، یرمن اطراف د شام او عمان، حبش کښ ځوک فتح کړے شول او چا باندے جزیه مقرر کړے شوه۔
په زمانه د خلیفه اول ابوبکر صدیق رضی الله عنه کښ د جزیرة العرب نه مرتدین ختم کړے شول او بصری، دمشق، حوران او بلادِ مصر او بعضے علاقه د فارس فتح کړے شوه۔
په زمانه د خلیفه ثانی عمر بن الخطاب رضی الله عنه کښ شام، مصر، أکثر بلاد فارس او روم فتح کړے شول او د کسری او قیصر خزانے په مسلمانانو کښ تقسیم کړے شوے۔
په زمانه د خلیفه ثالث عثمان بن عفان رضی الله عنه کښ مغرب د بحر محیط پورے او په مشرق کښ عراق، خراسان، اهواز، کابل وغیره ته خلافت اسلامیه را ورسیدلو۔ او د هغوی نه روستو هم د دنیا عام اطرافو سنده او هند باندے هم د مسلمانانو قوت غالب شو۔
فائده :- الله تعالی خپله وعده پوره کړیده لیکن هرکله چه مسلمانانو تمسک په کتاب الله او سنت رسول الله باندے پریخودلو او شرکیاتو او مشابهت د کفارو ته یے دین اوګڼلو او د شرعي قانون په بدل کے تور قوانین غوره کړل نو معامله برعکس شوه یعنی کفار په هر ملک کښ په مسلمانانو باندے مسلط شول او ذلیل او مغلوب شول. (اَللّٰهُمَّ وَفِّقْنَا لِمَا تُحِبُّ وَتَرْضٰى وَانْصُرْنَا عَلٰى أَعْدَائِنَا وَأَعِنَّا عَلَيْهِمْ وَامْكُرْ لَنَا عَلَيْهِمْ وَلَا تُسَلِّطْهُمْ عَلَيْنَا) (آمین)۔
ملا :- په دے آیت کښ د بقا د خلافت د پاره درے اوامر ذکر دی اقامة الصلوٰة، ایتاء الزکوٰة او اطاعت رسول د ژوند په ټولو لمحاتو کښ او خصوصًا په طریقه د مونځ او د زکوٰة کښ د هغه طاعت واجب دے۔
ترحمون کښ بقاء د خلافت اسلامیه ته اشاره ده۔

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۚ

په هغه کسانو باندې چه کافر شوي دي چه گوګنې عاجزوونکي د عذاب د الله تعالیٰ ته په زمکه کښې

وَمَاْوٰهُمُ النَّارُ ۖ وَلَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿٥٧﴾

او ځاے د دوي اور دے، او خامخا ناکاره ځاے د ورتللو دے۔

ع ۷ / ١٣

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِيَسْتَاْذِنْكُمُ الَّذِيْنَ

اے ايمان والو پکار دي چه اجازت غواړي ستاسو نه هغه کسان

مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ وَالَّذِيْنَ لَمْ يَبْلُغُوا

چه مالک دي په هغوي باندې ښي لاسونه ستاسو او هغه کسان چه نه دي رسيدلي

الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلٰثَ مَرّٰتٍ ۖ مِنْ قَبْلِ

بلوغ ته ستاسو نه درے وختونه ، مخکښې د

صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَحِيْنَ تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ

مونځ د صبا نه او کوم وخت چه کيږدئ تاسو جامے ستاسو

مِّنَ الظَّهِيْرَةِ وَمِنْ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ ۗ

د غرمې په وخت کښې او روستو د مونځ د ماسخوتن نه،

ثَلٰثُ عَوْرٰتٍ لَّكُمْ ۖ لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا

دا درے وختونه د پردے ستاسو دي ، نشته په تاسو باندې او نه

عَلَيْهِمْ جُنَاحٌۢ بَعْدَهُنَّ ۖ طَوّٰفُوْنَ

په دوي باندې ګناه سوا د دے (وختونو نه) ډير تلونکي راتلونکي دي

سک۔ په يکښې آيت کښې تخويف دے مخالفينو د مؤمنانو ته او تسلي ده رسول او ايمان والو ته چه کافران ستاسو نه خلافت نشي اخستلے ځکه چه الله تعالیٰ سره دوي مقابله نشي کولے۔

عَلَيْكُمْ بَعْضُكُمْ عَلٰى بَعْضٍ ؕ كَذٰلِكَ

په تاسو باندے بعضے ستاسو په بعضو باندے ، دغسے

يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

بیانوی الله تعالیٰ تاسو ته حکمونه ، او الله تعالیٰ پوهه دے

حَكِيْمٌ ﴿۵۸﴾ وَاِذَا بَلَغَ الْاَطْفَالُ مِنْكُمُ

حکمتونو والا دے ۔ او کله چه اورسی واړه بچی ستاسو نه

۵۸ :- هر کله چه مقصد دَ خلافت امن دے سره دَ حرج ریکولو دَ مؤمنانو نه او بنیاد دَ امن عفّت او محبت دے نو اوس درے قوانین دَ دے دَ پاره ذکر کوی -

په دے آیت کښ اول قانون دَ ۵۸ نه ذکر کوی - په یکښ استیذان دَ اولاد او دَ خادمانو ذکر کوی او مخکښ په ۲۷ کښ ئے استیذان دَ اغیارو ذکر کړے وو - مطلب ئے دا دے چه درے وختونه داسے دی چه انسان دَ عام عادت په وجه په دغه اوقاتو کښ بے پردے او بے پرواۍ سره تاست وی . ۱ دَ صبا دَ مانځه نه مخکښ ۲ دَ غرمے په وخت ۳ او دَ ماسخوتن دَ مانځه نه روستو نو په دے اوقاتو کښ دِ غلامان خادمان او نا بالغ اولاد (چه مراهق دی په عوراتو باندے پوهیږی) دِ دَ داخلیدلو دَ پاره اجازت غواړی ، او بغیر دَ دے اوقاتو نه دَ اجازت اخستلو ضرورت نشته ځکه چه دوی هر وخت ځی راځی نو که هر وخت اجازت اخستل فرض شی نو حرج به راشی او الله تعالیٰ په دین کښ حرج نه غواړی - ابو داؤد دَ ابن عباس رضی الله عنه نه روایت راوړے دے - چه په دے آیت باندے اکثر خلق عمل نه کوی (او منسوخ نه دے) او زهٔ خو خپلے وینځے ته هم دا امر کوومه (ابن کثیر)

ثَلٰثَ مَرّٰتٍ ، مراد دَ دے نه درے وختونه دی په شپه او ورځ کښ -

وَحِيْنَ تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ ، مراد دَ دے بتوڼے جامے دی لکه بعض خلق دَ آرام کولو په وخت کښ بتوڼے جامے اوباسی یا مراد دَ دینه زیاتے جامے دی په اسے طریقه سره چه اکثره حصّه دَ عورت ئے ښکاری پروا نه کوی

الْحُلُمَ فَلْيَسْتَاْذِنُوْا كَمَا اسْتَاْذَنَ الَّذِيْنَ

بلوغ ته پس اجازت دِ غواړي هر وخت لکه چه اجازت غوښتلو هغه کسانو

مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ

چه د دوی نه مخکښ (بالغان شویدی)، دغسې بیانوی الله تعالی تاسو ته

اٰيٰتِهٖ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۵۹﴾ وَالْقَوَاعِدُ

احکام خپل، او الله تعالی پوهه دے حکمتونو والا دے. او بوډۍ کانې

مِنَ النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا يَرْجُوْنَ نِكَاحًا فَلَيْسَ

د زنانو نه هغه چه اُمید نه لري د نکاح کولو نو نشته

عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ اَنْ يَّضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ

په دوی باندے گناه چه کیږدی پرونی خپل

غَيْرَ مُتَبَرِّجٰتٍۭ بِزِيْنَةٍ ؕ وَاَنْ يَّسْتَعْفِفْنَ

نه په وی ښکاره کوونکی خپل د ول لره، او ځان بچ ساتل

په دے وخت (غرمه) کښ اکثر جماع کول نه وی نو حست یے صرف وضع الثیاب ذکر کړیدے او مخکښ د مونځ د فجر او روستو د مونځ د عشاء نه دواړه وجے شته نو د هغے ذکر ته حاجت نشته.

طَوّٰفُوْنَ آه داعلت دے د تیر شوی حکم د پاره او مراد د دے د خدمت په وجے سره او مور او پلار نه د بچو د ډیر حاجتونو په وجے سره تله راتله کیږی نو که هر وخت اجازت طلب کول لازم شی نو ډیر حرج به راشی.

۵۹ :- دا د مخکښ قانون تتمه ده یعنی چه دغه هلکان (اولاد) بالغان شی نو بیا هر وخت دا سے اذن غواړی کوم چه په ۲۷ کښ تیر شویدی.

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ نه مراد هغه کسان دی چه د دوی نه مخکښ بالغان شویدی او هغوی ته عام حکم مخکښ ۲۷ کښ تیر شویدے او دا د دواړو آیاتونو په اختتام کښ د تاکید د پاره یے كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ ذکر کړیدے.

هر کله چه په روستو آیت کښ حواله ورکړے وه په مخکښ حکم باندے

خَيْرٌ لَّهُنَّ ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿٦٠﴾

ډیر غوره دي دوی لره، او الله تعالٰی آوریدونکے دے پوهه دے۔

لَيْسَ عَلَى الْاَعْمٰى حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْاَعْرَجِ

نشته په روند باندے گناه او نه په گوډ باندے

حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْمَرِيْضِ حَرَجٌ وَّلَا

گناه او نه په ناجوړه باندے گناه او نه

عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَنْ تَاْكُلُوْا مِنْۢ بُيُوْتِكُمْ

په ځانونو ستاسو باندے چه خوراک کوئ د کورونو خپلو نه

اَوْ بُيُوْتِ اٰبَآئِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اُمَّهٰتِكُمْ

یا د کورونو د پلارانو ستاسو نه یا د کورونو د مائندو ستاسو نه

اَوْ بُيُوْتِ اِخْوَانِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اَخَوٰتِكُمْ

یا د کورونو د ورونړو ستاسو نه یا د کورونو د خویندو ستاسو نه

تو د هغے د اشارے د پاره ابتلاء ذکر کړو او مخکنی آیت کښ ئے مطلق حکم وو نو الایات ئے ذکر کړی دے۔

سلا :- دا دویم قانون دے د پاره د دفع کولو د حرج ، سره د بیان د عفت نه۔ وَالْقَوَاعِدُ ، کښ اشاره ده چه دوی د عام ضروریاتو (چه زنانو سره تعلق لری) نه عاجزے شوے دی۔

اَلّٰتِىْ لَا يَرْجُوْنَ نِكَاحًا ، په دے صفت سره اشاره ده چه دوی د عمر داسے انتهاء ته رسیدلی دی چه شوق او رغبت خاصه تر یته ختم شوے وی او په داسے حال کښ د جانبینو نه د بے اخلاقئ پیدا کیدلو هیڅ خطره نشته۔

ثِيَابَهُنَّ ، مراد د دینه پرونے او برقه او لوے څادر دے۔

غَيْرَ مُتَبَرِّجٰتٍۭ بِزِيْنَةٍ ، یعنی پرونړے نه استعمالول د زینت ښکاره کولو د پاره نه کوی یا دا چه پردو خلقو ته سینه ، غاړه ، مټے ، پنډئ نه ښکاره کوی او دا

أَوْ بُيُوتِ أَعْمَامِكُمْ أَوْ بُيُوتِ عَمَّاتِكُمْ

یا د کورونو د ترونو ستاسو نه یا د کورونو د ترور یا نو ستاسی

أَوْ بُيُوتِ أَخْوَالِكُمْ أَوْ بُيُوتِ خَالَاتِكُمْ

یا د کورونو د ماما کانو ستاسو نه یا د کورونو د ماسی کانو ستاسو نه

أَوْ مَا مَلَكْتُمْ مَّفَاتِحَهُ أَوْ صَدِيقِكُمْ ط

یا د هغه کورونو نه چه مالک یئ تاسو د چابیانو (کنجیانو) د هغې یا د دوستانو ستاسو نه،

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَأْكُلُوا

نشته په تاسو باندې گناه چه خوراک کوئ

جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا ط فَإِذَا دَخَلْتُمْ

په یو ځائې یا ځان ځان له ، نو کله چه داخلیږئ تاسو

بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً

کورونو ته نو سلام اوکړئ په اوسیدونکو د هغې باندې پیشکشی ده

مِّنْ عِنْدِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً ط كَذَٰلِكَ

د طرف د الله تعالیٰ نه برکتونو والا زړه خوشحاله کوونکې، دغسې

يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٦١﴾ ع

وضاحت کوی الله تعالیٰ تاسو ته د حکمونو د پاره د دې چه د عقل نه کار واخلئ

رنگ مخ ته اوشونړ و اولاسونو خپوته رنگ نه ورکوی۔

وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ، په دې کښې اشاره ده چه احکامو کښې دوه قسمونه دی یو عزیمت چه په هغې باندې عمل کول غوره کار دی او دویم رخصت چه په هغې باندې عمل کول جائز وی۔

ملا :- دا دریم قانون دې د پاره د دفع کولو د حرج، سرهٔ د اسبابو د محبت نه په مابین کښې۔ مطلب دا چه کله د انسان د معذورو کسانو سره شریک خوراک کولو کښې حرج او گناه گنړی

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ

يقينًا مؤمنان هغه كسان دي چه ايمان ئې راوړے دے په الله تعالى باندې

هسے نه چه دوي نه زياته اوخوري او دارنګ د پلار او مور او ورور وغيره د كورونو نه خوراك كول (په اسے وخت كښ چه مالك د كورنه وي) حرج او ګناه ګنړي نو په دے آيت كښ د دے حرج نفي كوي - او ترغيب دے چه په دے شركت او خوراك كولو سره ستاسو په مينځ كښ محبت پيدا كيږي - دارنګ د دفع د حرج او د محبت پيدا كولو د پاره په دے آيت كښ په جمع خوراك او ځان ځان له خوراك كولو اجازت وركړے شوے دے او د محبت د پاره د سلام كولو حكم ئې وركړے دے په وخت د داخليدلو كښ دغه كورونو ته -

لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ ، اوله معنى دا ده چه نشته په تاسو باندې ګناه په خوراك كولو كښ د دے معذورينو سره - دويمه معنى دا ده نشته په دے معذورينو باندې څه ګناه چه تاسو سره شريك خوراك كوي.

مِنْ بُيُوتِكُمْ ، مراد د دے نه هغه كور دے چه دغه شخص په هغې كښ اوسيږي او خپل خرچ كوي - دا ئې د دے وجے نه ذكر كړو چه څه رنګ د خپل كور نه خوراك كولو كښ حرج نشته دارنګ دغه نور كورونه هم د دے په شان اوګنړئ - يعني اقرباء او دوستان دے د يو بل نه په خوراك كولو سره خفګان نه كوي - او ابن كثير وئيلي دي چه په بُيُوتِكُمْ كښ كورونه د ځامنو هم داخل دي ځكه چه حديث كښ ذكر دي چه مال د اولاد مال د والد دے (په وخت د ضرورت كښ) او صَدِيقِكُمْ ، دا هسے دوست چه په دے خبره (چه دوست د هغه كور نه خوراك اوكړي) خوشحاليږي -

جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا ، دواړه جائز دي ليكن په جمع سره په يو لوخي كښ خوراك غوره دے د دے وجے نه جميعًا مخكښ ذكر كړے شوے -

فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ نه مراد په كور كښ اوسيدونكي دي اګر چه خپله ښځه او اهل وعيال وي او دے ته ئې تَحِيَّةً ، ځكه اووئيل چه دا سبب د حيات او دعا د حيات ده مقرر د جانب د الله تعالى نه، مُبَارَكَةً ، د دے وجے نه ئې اووئيل چه سبب د محبت او د دوستانې او د لرے كولو د بغض او د حسد دے -

وَرَسُوْلِهٖ وَاِذَا كَانُوْا مَعَهٗ عَلٰٓى اَمْرٍ

اوپه رسول د هغهٔ او کله چه وی د هغهٔ سره په یو کار

جَامِعٍ لَّمْ يَذْهَبُوْا حَتّٰى يَسْتَاْذِنُوْهُ ؕ

جمع کوونکی باندے نو دوی نه ځی د هغهٔ نه تر دے پورے چه اجازت تر ینه او غواړی،

اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَاْذِنُوْنَكَ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ

یقیناً هغه کسان چه اجازت غواړی ستا نه دا هغهٔ خلق دی

يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۚ فَاِذَا اسْتَاْذَنُوْكَ

چه ایمان لری په الله تعالیٰ او په رسول د هغهٔ باندے نو هر کله چه اجازت غواړی دوی ستا نه

لِبَعْضِ شَاْنِهِمْ فَاْذَنْ لِّمَنْ شِئْتَ مِنْهُمْ

د بعضے خپل کار د پاره نو اجازت اوکړه هغه چا ته چه خوښه شی ستا د دوی نه

وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۶۲﴾

او بخنه او غواړه دوی لره د الله تعالیٰ نه، یقیناً الله تعالیٰ بخنه کوونکے رحم کوونکے دے.

طَيِّبَةً، یئے تحکه او ئیل چه او رید ونکے پدے سره خوشحالیږی۔

۶۲۔ تیر آیت سره ربط دا دے چه د سلام حکم لکه چه د مسلمانانو په کورنی کښ دے نو دا رنګ په وخت د رخصتئ کښ د نبی صلی الله علیه وسلم نه هم حکم د سلام دے د پاره د رخصت اخستلو۔ او د کل سورت سره مناسبت دا دے چه مخکښ آداب او احکام قرآنیه بیان شول چه هغے ته آیات بینات وئیلے کیدل نو په آخر کښ شان د رسول ذکر کوی چه د قرآن پشان د نبی صلی الله علیه وسلم د احکامو احترام او عمل کول ضروری دی او پدے آیا تو کښ مقابله ده د صفات د مؤمنانو او د منافقانو۔

اَمْرٍ جَامِعٍ، نه مراد هغه کار دے چه امیر المؤمنین اصحاب الرائے راجمع کړی۔ د مشورے د پاره او بعضے اهل علمو داخل کړیدے پدیکښ مونځ د جمعے او د مونځو نو جماعت هم۔ بلکه کله چه یو کس په سفر باندے او ځی نو هغهٔ له هم پکار دی چه د خپل امیر نه اجازت او غواړی۔

لَا تَجْعَلُوْا دُعَآءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَآءِ

مه گرځوئ بلنه د رسول په کوربنئ کښ پښتان د بعضے

بَعْضِكُمْ بَعْضًا ؕ قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ

د بعضے ستاسو بعضو لره، یقینا پیژنی الله تعالی هغه کسانو لره

يَتَسَلَّلُوْنَ مِنْكُمْ لِوَاذًا ۚ فَلْيَحْذَرِ

چه پټ خوځیږی ستاسو د مجلس نه ځان پټوی، پس او دِ ویریږی

الَّذِيْنَ يُخَالِفُوْنَ عَنْ اَمْرِهٖٓ اَنْ

هغه کسان چه خلاف کوی د طریقے د نبی نه چه

تُصِيْبَهُمْ فِتْنَةٌ اَوْ يُصِيْبَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۶۳﴾

او په رسیږی دوی ته فتنه یا په او رسیږی دوی ته عذاب درد ناک۔

وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللّٰهَ، پدے سره دُعا په وخت د رخصت کیدلو ثابته شوه لیکن لاس پورته کول پکښ ضروری اولازم نه دی۔ او پدیکښ اشاره ده چه هر کله امیر استغفار دُعا او غواړی نو معلومه شی چه اذن یے په خوشحالئ سره کړیدے۔ ۶۳:۔ د دے آیت په اوله جمله کښ ذکر د عظمت شان د نبی صلی الله علیه وسلم دے۔ او دویمه جمله کښ ذکر د حال د منافقانو دے۔ او دریمه جمله کښ تخویف دے مخالفت کوونکو د سنت د نبی صلی الله علیه وسلم ته۔

لَا تَجْعَلُوْا دُعَآءَ الرَّسُوْلِ، پدیکښ درے توجیهات دی اوله توجیه داده چه دُعَآءَ په معنیٰ د آواز کولو ده۔ مطلب دادے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په نامه آواز مه کوئ لکه چه یو بل ته آواز ونه کوئ یعنی یا محمد مه وایئ بلکه په وخت د خطاب کښ یا نبی الله او یا رسول الله وایئ۔ هم دا رنګ ابن کثیر او ابن جریر د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے۔ د دے وجے نه په هیڅ حدیث صحیح کښ نشته چه یو صحابی نبی صلی الله علیه وسلم ته په محمد سره آواز کړیوی بلکه دا آواز منافقانو او یهودیانو

# أَلَآ إِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

خبردار یقیناً د الله تعالیٰ دپاره اختیار دی د هغه څیزونو چه په آسمانونو کښ دی او زمکه کښ دی،

په کوی۔ اوکه د الله تعالیٰ یا د جبرائیل د طرف نه آوازوی په محمد سره نو په هغې باندے قیاس کول صحیح نه دی هغوی د دے آیت مخاطب نه دی۔
دویمه توجیه دا ده دعا په معنیٰ مشهورے سره ده مطب دا دے هر کله چه مخکښ آیت کښ پیغمبر ته ئے او فرمائیل چه وخت د اجازت ورکولو کښ دوی دپاره د الله تعالیٰ نه دُعاء د مغفرت غواړه. نو اوس ترغیب ورکوی چه د نبی صلی الله علیه وسلم دُعا کول د خپلو دعاګانو پشان مه ګنړئ ځکه چه د هغهٔ دعا قبوله ده۔ نو د هغهٔ د دعا د حاصلولو دپاره د هغه نه اذن طلب کول ضروری دی۔ دریمه توجیه دا ده چه دُعا په معنیٰ د حکم سره ده یعنی د نبی صلی الله علیه وسلم حکم کول د خپلو حکمونو پشان مهٔ ګنړئ د هغه د حکم تابعداری کول فرض دی۔
یَتَسَلَّلُوْنَ مِنْكُمْ، تسلل په معنیٰ د پټ پټ خوتیدلو دے۔ لِوَاذًا، معنیٰ ځان پناه کول یعنی منافقانو به د نبی صلی الله علیه وسلم په مجلس کښ ځان د بل شاته کړو اوبے اجازته به د مجلس نه پټ لاړو۔ او دا صفت هغه چاته شامل دے چه په حیلو دهوکو سره د نبی صلی الله علیه وسلم د سنت او طریقے نه د ده کوی او مخالفت کوی۔ يُخَالِفُوْنَ عَنْ أَمْرِهٖ، ابن کثیر وئیلے دی چه أَمْرِهٖ نه مراد منهاج او سنت او شریعت د نبی صلی الله علیه وسلم دے نو ټول اقوال او اعمال به د هغهٔ په سنت سره تللے کیدلے شی که د هغې سره برابر وی ډیره ښهٔ ده او که د هغهٔ د سنت نه خلاف وی نو هغه مردود دی او د دے آیت د لاندے داخل دی۔
فِتْنَةٌ، د دے نه مراد کفر او نفاق او بدعت دے یعنی مخالفت د سنت رفته رفته انسان لره په بدعت او کفر او نفاق کښ اچوی یا مراد د دینه عذاب نه د دنیا دی لکه قحطونه ګرانی ظالم بادشاهان وغیره د سنت د مخالفت د وجے نه راځی لکه پدے زمانه کښ چه نبی صلی الله علیه وسلم سنت طریقے مسلمانانو شاته غورځولے دی او په عقیدو یا عملونو یا په حکمونو، فوانینو متو کښ د قرآن او د حدیث نه خلاف لاړے

قَدْ يَعْلَمُ مَآ اَنْتُمْ عَلَيْهِ ؕ وَيَوْمَ

یقیناً عالم دے اللہ تعالیٰ په هغه حال باندې چه تاسو په هغې باندې یئ، او په کومه ورځ

يُرْجَعُوْنَ اِلَيْهِ فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا

چه او به کرځولے شي دوی هغه ته نو خبر به ورکړي دوی ته الله تعالیٰ په هغه

عَمِلُوْا ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۶۴﴾

عملونو چه دوی کړي دي، او الله تعالیٰ په هر څیز باندې عالم دے۔

ع ۱۵

ئے اختیار کړے دی د دے وجے نه هر ملک کښ د کافرانو په لاسونو باندے ذلیل کیږی او مختلف عذابونو کښ مبتلا دی۔ او عَذَابٌ اَلِيْمٌ، دنیوی او اُخروی دواړو عذابونو ته شامل دے۔

(اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ۔ وَنَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْاَعْدَاءِ وَلَا تُسَلِّطْ عَلَيْنَا مَنْ لَّا يَرْحَمُنَا۔ اَللّٰهُمَّ آمین)۔

۶۴:۔ هر کله چه تیر شوی آیت کښ ذکر د عذاب ئے اوکړو نو په یکښ ذکر کوی چه الله تعالیٰ قادر او پوره اختیارمند دے عذاب ورکولے شی او عالم هم دے په هغه چا باندے چه مستحق د عذاب دی او په دے آیت کښ اختتام د سورت دے په مسئله د توحید باندے په رد د شرک فی التصرف او شرک فی العلم سره۔ او اثبات د قیامت دے په يَوْمَ يُرْجَعُوْنَ سره۔

(ختم شو تفسیر د سورۃ النور په حمد د الله تعالیٰ سره)

بسم الله الرحمن الرحیم

## سورة الفرقان

ربط :- د دے سورت د سورة النور سره دا دے چه په هغه سورت کښې د توحید او شرک فرق ئے په مثالونو سره ذکر کړیدے نو په دے سورت کښې د اهلِ توحید او اهلِ شرک فرق په بیان د صفاتو د فریقینو سره ذکر کوی۔ او دا رنګ په هغه سورت کښې منع او کړه د اعمالو د جاهلانو نه نو په دے سورت کښې منع کوی د هغوی د عقیدو باطلو نه۔ او دا رنګ هر کله چه په نور سره فرق راځی نو د دے وجه نه فرقان ئے په نور پسے راوړو۔

دعوٰی :- د دے سورت ۔ رد دے په شرک فی البرکات باندے په رد د ټولو قسمونو د شرک او په عقلی دلیلونو سره او په نقلی دلیلونو سره د تخویفاتو د منکرینو نه۔ او په زجرونو سره په انکار د مقاصدو څلورو چه توحید او صدق د رسول او صدق د قرآن او اثبات د بعث بعد الموت دے۔

او په ذکر د تقابل د صفاتو د مشرکینو او مؤمنانو سره۔

خلاصه د سورت :- دا سورت تقسیم دے څلورو بابونو ته۔ اول باب تر ۲۰ پورے دے په کښې دعوٰی د سورت ده او په هغے باندے شپږ دلیلونه عقلیه دی۔ بیا شپږ امور ئے نفی کړیدی د معبودانو باطلو نه او دا زجر دے مشرکانو ته۔ بیا زجر دے په انکار د قرآن په شپږ وجوهو سره بیا زجر دے په انکار د رسول په شپږ وجوهو سره۔

تفسیر :- ۱ :- دا دعوٰی د سورت ده په رد د شرک فی البرکات سره او په

لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَمْ يَتَّخِذْ

چه خاص هغهٔ لره پادشاهي د آسمانونو او د زمکے ده او نه یې دے نیولے

وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ

ولد (حوی) او نشته ده لره برخے والا په پادشاهۍ کښ

وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهٗ تَقْدِيْرًا ②

او پیدا کړیدے هر څیز نو اندازه یې ورکړیده خاص اندازه.

دے سورت کښ یې درے ځله ذکر کړیده اول کرت مراد برکات دنیویه دی، دویم کرت مراد برکات اخرویه دی او دریم کرت مراد برکات روحانیه دی.
تَبٰرَكَ. په لفظ د برکت کښ معنیٰ د دوام او ثبات ده او معنیٰ د ډیروالی د خیر او د فائدے ده. په اول معنیٰ سره لازمی دے یعنی همیشه والا او پاک د فنا نه الله تعالیٰ دے او دویمه معنیٰ سره متعدی دے یعنی ډیر خیر او فائده ورکوونکے الله تعالیٰ دے یعنی خیر او نعمتونه پیدا کوونکے او په هغه نعمتونو کښ اثر او زیادت پیدا کوونکے الله تعالیٰ دے او دا دواړه معنے په الله تعالیٰ پورے خاص دی نو د دے وجے نه لفظ د تَبٰرَكَ په الله تعالیٰ پورے خاص دے. او تفسیر القرطبي کښ لیکلی دی چه الله تعالیٰ ته متبارك او مبارك نشی ویلے کیدے (یعنی په زور د ترسره) ځکه چه الله تعالیٰ په برکاتو کښ بل چاته محتاج نه دے.
اَلَّذِيْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ، دا اول دلیل عقلی دے. او قرآن نازلیدل د ټول عالم دپاره برکت دے او لوے برکت پکښ دا دے چه د حق او باطل فرق او تمیز پرے قرآن سره کیږی ځکه لفظ د فُرْقَانَ یې ذکر کړو. لِيَكُوْنَ په دے کښ ضمیر عَبْدِهٖ ته یا فُرْقَانَ ته راجع دے او عٰلَمِيْنَ نه مراد تمام انسانان او پیریان دی او دا دلیل دے چه دا نبی او دا کتاب آخری دی د دے نه روستو بل نوے نبی یا کتاب نشی راتلے.
سـ: په دے آیت کښ پنځه دلیلونه دی په ذکر د صفاتو د الله تعالیٰ سره چه درے صفتونه ثبوتی او دوه صفتونه سلبی دی. یعنی پادشاهی په

وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً لَّا يَخْلُقُوْنَ

او جوړ کړيدي دوی سوا د الله تعالیٰ نه برکات ورکوونکي ايهه چه نشي پيدا کولے

شَيْـًٔا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ وَلَا يَمْلِكُوْنَ

هيڅ څيز او هغوی پيدا کړے شويدي او اختيار نه لري

لِاَنْفُسِهِمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا وَّلَا يَمْلِكُوْنَ

د پاره د ځانونو خپلو د هيڅ نقصان او نه د فائدے او اختيار نه سري

مَوْتًا وَّلَا حَيٰوةً وَّلَا نُشُوْرًا ③ وَقَالَ

د مرګ او نه د ژوند او نه د دوباره ژوند کولو . او وائي

ټولو څيزونو د الله تعالیٰ ده مخلوق ټول د هغهٔ رعيت او مملوک دے نو دوی اختيار د برکاتو ورکولو نه لري بيا سوال پيدا شو که اوليا شي کيدلي شي چه الله تعالیٰ په اختيار د برکاتو ورکولو بل چاته سپارلے وي يا بعيځے په برکات ورکولو کښ بل چا لره د ځان سره حصّه دار جوړ کړے وي نو د دے جواب يے اوکړو پدے قول سره چه وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ، دا رنګ يے اوفرمائيل هر څه الله تعالیٰ پيدا کړے دي نو تمام خيرا و نعمتونه د الله تعالیٰ مخلوق دے - بيا که سوال اوکړے شي چه خالق خو الله تعالیٰ دے ليکن کيدے شي چه بل څوک په نعمتونو او خير کښ کمے زياتے اچوي نو جواب يے اوکړو فَقَدَّرَهٗ تَقْدِيْرًا سره يعنی الله تعالیٰ د هر څيز خاص اندازمقرر کړيدے نو هيڅوک په هغے کښ تبديلي نشي راوستلے نو معلومه شوه چه د برکاتو اختيارمند صرف الله تعالیٰ دے. او دا آيت دليل دے چه تقدير د هر خير و شر الله تعالیٰ کړيدے په تقدير باندے ايمان راوړل فرض (رکن د ايمان) دے او تقدير خو د خلق نه پټ دے ليکن روستو يے په فاء سره ذکر کړو چه دلالت اوکړي په موافقت د خلق د تقدير سره .

مسئله :- پدے آيت کښ زجر دے مشرکانو ته په شرك في البركات سره - اٰلِهَةً . مراد د دينه هغه معبودان ماسوا الله دي چه عقيده اولرے شي

الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اِفْكُ

هغه كسان چه كفر يې كړيدے نه دے دا (قرآن) مګر دروغ دى

اِفْتَرٰىهُ وَاَعَانَهٗ عَلَيْهِ قَوْمٌ اٰخَرُوْنَ

چه ځان ته يې جوړ كړيدى (ده نبي) او مدد كړيدے ده سره پدے باندے خلقو نورو

فَقَدْ جَآءُوْ ظُلْمًا وَّزُوْرًا ﴿۴﴾ وَقَالُوْٓا

نو يقينًا راوړيدة دوى ظلم او د دروغو خبره . او وائي دوى

اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلٰى

دا دروغ قيصے د زړو خلقو دى چه ليكلي دي دے رسول په بل چا ذريعه بيا د هغے إملاء

عَلَيْهِ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ﴿۵﴾ قُلْ اَنْزَلَهُ

(بيان كيدلى شي) په ده باندے صباق او بيګاق . ته او وايه نازل كړيدے دا قرآن

چه اختيار من د بركاتو دوى دى او بندګى ورله كيږى . او په يكبنس شپږ اوصاف د هغوى نه يې نفى كړے او يو صفت يې ورله ثابت كړے يعنى مخلوق دى يعنى چه خالق نه دى او مالک نه دى نو بركات به چاته څنګه ور كړے شي .

ضَرًّا ، هيڅ نقصان مالي او مرض بدني د دفع كولو اختيار نه لرى موتًا ولاحياتًا ولا نشورًا عام دے موت او حيات خپل او د پردى ته د دے وجے نه نكره يې ذكر كړے دى .

سلا . دا زجر دے په انكار د قرآن سره په دريے طريقو سره .

ع۱ افك ، ع۲ افتراء ، ع۳ امداد د بل چا ، اول دوا رو ته يې ظلم او ئيل څكه رشتنى كتاب ته دروغ او افتراء وئيل واقعى ظلم دے او دريم ته يې زور او ئيل څكه چه زور او ريدلو ته وئيلے شي نو د دوى دريمه خبره د حقيقت نه بالكل او ريدلے ده . د وجے د دينه چه قرآن د دوى په شرک باندے رد كوى نو دوى انكار د قرآن نه كوى .

سك . په يكبنس هم زجر دے په دريے طريقو سره . اِكْتَتَبَهَا ، طلب د كتابت د بل چانه ، څكه چه پخپله كتابت نشي كولے . املاء د بل طرفنه ،

الَّذِيْ يَعْلَمُ السِّرَّ فِي السَّمٰوٰتِ

هغه ذات چه پوهیږي په هر پټ څیز په آسمانونو

وَالْاَرْضِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝۶

او زمکه کښ، یقیناً الله تعالیٰ دے بخنه کوونکے رحم کوونکے.

وَقَالُوْا مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ يَاْكُلُ الطَّعَامَ

او دوی وائي څۀ وجه ده دے رسول لره چه خوري خوراک

وَيَمْشِيْ فِي الْاَسْوَاقِ ؕ لَوْلَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ

او ګرځي په بازارونو کښ، ولے نشي نازیدلے دۀ ته

مَلَكٌ فَيَكُوْنَ مَعَهٗ نَذِيْرًا ۝۷ اَوْ يُلْقٰٓى

مَلک (فرښته) چه شي د دۀ ملګرتیاکښ ویره ورکوونکے. یا ولے نه راغورځیدل شي

اِلَيْهِ كَنْزٌ اَوْ تَكُوْنُ لَهٗ جَنَّةٌ يَّاْكُلُ

دۀ ته خزانه او یا ولے نشته دۀ لره باغ چه خوري

څۀ چه دے پخپله خط نشي لوستلے. بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا. شپه او ورځ یا وخت د صبا او بیګا مراد دے.

ﻻ: په دے آیت کښ رد دے په دغه شپږ طریقو باندے او ذکر د صدق د قرآن دے.

اَلسِّرَّ. هر کله چه په پټو څیزونو علم لري نو ښکاره باندے خوا مخوا علم لري. او په اَلسِّرَّ راوړلو کښ اشاره ده چه په قرآن کریم کښ رازونه حکمتونه بے شماره دي نو ولے د دے نه انکار کوئ.

اِنَّهٗ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا. یعني که توبه اوکړے نو الله تعالیٰ به درته مغفرت او رحمت اوکړي په دے کښ ترغیب دے منکرینو ته د توبے او انابت کولو. ابن کثیر د حسن بصري نه نقل کړیدے چه اوګورئ کرم او جود د الله تعالیٰ ته چه دا خلق وژني دوستان د الله تعالیٰ. او الله تعالیٰ دوی لره دعوت ورکوي توبے او رحمت ته.

مِنْهَا ؕ وَقَالَ الظّٰلِمُوْنَ اِنْ تَتَّبِعُوْنَ

دَ هغې نه ، او وائي ظالمان تابعداري نه کوئ تاسو

اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا ۸ اُنْظُرْ كَيْفَ

مګر د سړي چه ليونې شوې په جادو سره . اوګوره چه څرنګه

ضَرَبُوْا لَكَ الْاَمْثَالَ فَضَلُّوْا فَلَا

بيانوي دوي تا سره صفتونه (ناکاره) پس ګمراه شول دوي نو نه

يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا ۹ تَبٰرَكَ الَّذِيْٓ

طاقت د لارې . برکتونو والا دې هغه ذات

ف۷،ف۸ . په دې کښې زجر دې په انکار د رسول سره او هر کله چه قرآن دې رسول راوړونکې د دې وجې نه دوي د هغه د رسالت نه انکار شروع کړو . او په هغه باندې هم شپږ اعتراضونه دي . په اول آيت کښې دوه او په دويم کښې هم دري ، په اول کښې ذکر د صفات د بشريت دې او په هغې باندې د دوي اعتراض کول اشاره ده چه د مشرکانو په عقيده کښې بزرګان هغه وي چه خوراک ته يې حاجت نوي او دا رنګ دنيوي تجارتونه نه کوي او دا رنګ نبي صلى الله عليه وسلم به په بازارونو کښې د دعوت د توحيد د پاره ګرځيدلو او دا په مشرکانو باندې بوج وو نو اعتراض يې کولو . او په دويم باندې طلب د صفاتو د مالدارئ دې ځکه چه د جاهلانو په نيز سبب د عظمت مالداري ده . مَسْحُوْرًا ، چه سحر پرې کړې شوې وي يا مسحور په معنى د ساحر دې يا معنى هغه څوک چه محتاج وي خوراک څښاک ته . يا مسحور په معنى د مجنون دې يعني چه سحر د هغه دماغ خراب کړېدې او دا طعن د هغوي په دې بشر باندې چه د ټول عالم هوښيار دې او ښه صحيح بليغ دې دا عين ظلم دې .

ف۹ . په دې کښې تعجيب دې پيغمبر ته او زجر دې منکرينو ته او اشاره ده چه د هغوي اعتراضونه کول په پيغمبر باندې سبب د دوي د ګمراهۍ دې چه امين تر ينه د هدايت نشته ، او دا په سورۀ بني اسرائيل ف۴۸ کښې هم تير شوې دي .

إِنْ شَاءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِّنْ ذَٰلِكَ

که چرے اوغواړی دریه کړی تالره غوره د دیشه

جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ

باغونه چه بهیږی به لاندے د هغے نه ولے

وَيَجْعَلْ لَكَ قُصُورًا ⑩ بَلْ كَذَّبُوا

او دریه کړی تالره بنګلے . بلکه دروغژن ګنړی دوی

بِالسَّاعَةِ وَأَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ

قیامت لره او تیار کړیدے موږ هغه چا لره چه دروغژن ګنړی

سلا خلاصه :- د دے آیت نه تر سلا پورے دویم باب دے په دیکښ دوباره دعوی د تبارک ذکر ده او مراد تر دینه برکات اخرویه دی یعنی د جهنم نه بچ کول او د جنت نعمتونه ورکول او بیا زجر دے منکرینو د قیامت ته او بیا تخویف او بشارت په شپږ طریقو سره دے بیا تخویف دے په براءت د آلهه د مشرکینو ۔ او جواب د بعضے اعتراضونو دے او زجر او تخویف تفصیلی ، بیا تسلی ده نبی ته او زجر دے په اعتراض سره په قرآن باندے او د هغے جواب او بیا تخویف دے ۔

تفسیر :- په دے سلا آیت کښ تسلی ده نبی ته او اشاره ده جواب د اعتراض د سلا ته ۔

ذٰلِكَ ، کښ اشاره ده کنز او جنة ته چه دوی د هغے مطالبه کوله ۔ جَنّٰتٍ آه د دے مراد باغونه او بنګلے په آخرت کښ مراد دی او دا په معنیٰ د اذا دے ځکه چه د نبی د پاره د جنت نعمتونه ورکیدل یقینی دی یا مراد د دینه د دنیا باغات او بنګلے دی لیکن نبی صلی الله علیه وسلم هغه نه دی خوښ کړی د دے وجے نه الله تعالیٰ نه دی ورکړی ۔

بِالسَّاعَةِ سَعِيرًا ﴿۱۱﴾ إِذَا رَأَتْهُم مِّن

قیامت اُور بل کړیشوے۔ کله چه اُوینی اُور دوی لره دَ

مَّكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا

لرے ځائے نه آوری به دوی هغے لره غږ مبیدل دَ غصے دَوجے

وَزَفِيرًا ﴿۱۲﴾ وَإِذَا أُلْقُوا مِنْهَا مَكَانًا

او هینږیدل۔ او کله چه اوغورځولے شی دوی دَ هغے نه په تنگ

ضَيِّقًا مُّقَرَّنِينَ دَعَوْا هُنَالِكَ

ځائے کښ تړلی شوی غواړی به دغه وخت کښ

ثُبُورًا ﴿۱۳﴾ لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُورًا

هلاکت لره۔ (او به وئیلے شی) مه غواړئ نن هلاکت

وَاحِدًا وَادْعُوا ثُبُورًا كَثِيرًا ﴿۱۴﴾

یو او غواړئ هلاکتونه ډیر۔

ب۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴۔ په دے آیاتونو کښ زجر دے په انکار کوونکو دَ قیامت او تخویف دے په سعیر سره او شپږ احوال ئے ذکر کړے دی ۱ لیدل دَ لرے نه، ۲ تغیظ ۳ زفیر ۴ مکانِ ضیّق (تنگ کور) ۵ ثبور غوښتل ۶ ثبور کثیر۔

دَ دے دویم حال نه معلوم شوه چه جهنم له به الله تعالیٰ شعور او احساس ورکړی نو لیدل به کوی، غصّه او غږ مېار به کوی۔

مَكَانًا ضَيِّقًا، لکه سورة همزه کښ راځی نارٌ مؤصدة فی عمدٍ ممدّدة۔ او دَ ابن کثیر په روایت کښ راځی داسے تنگ ځائے کښ به واچولے شی لکه چه میخ په یو دیوال کښ په زور او ټوهیلے شی۔ ثُبُورًا، داسے لفظ دے چه دلالت کوی په هلاکت او خسران او تباهی یا ندے مراد دا دے چه جهنمیان به مرګ غواړی تو ورته به اُوئیلے شی چه ډیر کرته مرګ به اوغواړئ یعنی اسباب دَ مرګ ډیر راځی لیکن مرګ به در باندے نه راځی۔

قُلْ أَذٰلِكَ خَيْرٌ أَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِي

ووایه ته آیا دا ښه شے دے او که جنت د همیش والی هغه چه

وُعِدَ الْمُتَّقُونَ ۚ كَانَتْ لَهُمْ جَزَآءً

وعده کړے شوې ده د متقیانو سره، وی به دوی لره بدله

وَّمَصِيرًا ﴿١٥﴾ لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَآءُونَ

او د ګرځیدلو ځائے. دوی لره به په هغے کښ هغه نعمتونه دی چه غواړی به یې دوی

خٰلِدِينَ ۚ كَانَ عَلٰى رَبِّكَ وَعْدًا

همیشه، ده ستا په رب باندے وعده

مَّسْئُولًا ﴿١٦﴾ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ وَمَا

غوښتلے شوے. او په کومه ورځ چه جمع به کړی دا مشرکان او هغه څوک چه

يَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ فَيَقُولُ

دوی بندګی کوی د هغوی سوا د الله تعالیٰ نه نو وائی به

ءَأَنْتُمْ أَضْلَلْتُمْ عِبَادِي هٰٓؤُلَآءِ

آیا تاسو ګمراه کړے دی بندګان زما دغه (چه مشرکان دی)

١٥، ١٦: پدے آیاتونو کښ بشارت دے او ذکر د حال د جنت دے په ښیرو احوالو سره۔

١ جَنَّةُ الْخُلْدِ چه وعده کړے شوے ده ٢ جزاء ٣ مَصِيرٌ ٤ دوی له به هر هغه وی چه دوی یې غواړی، ٥ خلود د اهل جنت ٦ وَعْدًا مَّسْئُولًا د دے مطلب دا دے چه متقیان د دے سوال کوی لکه په سورة العمران ١٩٤ کښ تیر شوی دی۔

دویم مراد دا دے چه مسئول په معنیٰ د واجب سره دے یعنی الله تعالیٰ خوامخواه پوره کوی پشان د واجب اګر چه په الله تعالیٰ باندے څه څیز نشی واجب کیدلے لیکن دیته واجب او حق تفضلی وائی۔

أَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيلَ ﴿١٧﴾ قَالُوا سُبْحَانَكَ

يا دوی پخپله گمراه شویدی د لارې نه. دوی به وائی پاکی ده تا لره

مَا كَانَ يَنبَغِي لَنَا أَن نَّتَّخِذَ مِن

نه ښائیږی مونږ لره چه او نیسو مونږ

دُونِكَ مِنْ أَوْلِيَاءَ وَلَٰكِن مَّتَّعْتَهُمْ

سوا ستا نه مددګاران (معبودان) او لیکن مزې د دنیا ورکړې دی تا دوی ته

وَآبَاءَهُمْ حَتَّىٰ نَسُوا الذِّكْرَ وَكَانُوا

او پلارانو د دوی ته تر دې پورې چه هیر کړو دوی توحید لره او وو

قَوْمًا بُورًا ﴿١٨﴾ فَقَدْ كَذَّبُوكُم بِمَا

قوم تباه کیدونکی . (او به ووئیلې شی دوی ته) نو دروغژن ئې کړئ تاسو په هغه

سلا :- دا تخویف اخروی دے په طریقه د براءت د الهه باطله د عابدانو نه. او آیت کښې ملائک او انبیاء او صالحین مراد دی چه مشرکان د هغوی عبادتونه کول او برکات ورکوونکی ئې دے جاهلانو د هغوی بتان جوړ کړیدی او عبادت د بتانو د دوی عبادت ګڼړی یا د صالحینو د قبرونو عبادتونه ئې کړیدی او دوی دعوے کوی چه مونږ له دغه صالحینو دا حکم کړیدے چه مونږ له عبادت کوئ مونږ ستاسو ذمه واریو نو په دوی باندے د الزام د پاره به په ورځ د قیامت د دغه صالحینو نه تپوس کیدیشی لکه د سورة مائده په آخر کښې تپوس کول د عیسٰی علیه السلام نه هم پدے مقصد ئې ذکر کړے دی.

أَضْلَلْتُمْ عِبَادِيْ، مراد د دیته ګمراهئ ته رابلل دی ځکه ګمراه کول دوی نشی کولے.

سلا :- دا جواب دے په ترقئ سره او دلیل دے چه مونږ ګمراهئ ته دعوت نه دے ورکړے، ځکه چه مونږ عقیده د توحید لرو ستا نه سوا بل څوک واکدار، اختیارمند، او حقدار د بندګئ نه ګڼړو. او موحد بل چاته دعوت د شرک نه ورکوی.

تَقُوْلُوْنَ ۙ فَمَا تَسْتَطِيْعُوْنَ صَرْفًا وَّلَا

خبرو چه تاسو وئیلے نو طاقت نه لرئ تاسو د اړولو (دَعذاب) او نه

نَصْرًا ۚ وَمَنْ يَّظْلِمْ مِّنْكُمْ نُذِقْهُ

دَمن دحاصلولو او چاچه ظلم کړیدے ستاسو نه او به سکوؤ مونږ هغه ته

عَذَابًا كَبِيْرًا ﴿۱۹﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ

عذاب لوئے ۔ او نه دی لیږلے مونږ ستا نه مخکښ

مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّآ اِنَّهُمْ لَيَاْكُلُوْنَ

پیغمبران مګر یقیناً هغوی به خوړل

الطَّعَامَ وَيَمْشُوْنَ فِى الْاَسْوَاقِ ۗ وَجَعَلْنَا

خوراکونه او ګرځیدل به په بازارونو کښ ، او ګرځولے مونږ

بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً ۗ اَتَصْبِرُوْنَ ۚ

بعضے ستاسو د بعضو د پاره ازمیښت ، آیا صبر کوئ تاسو

وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيْرًا ﴿۲۰﴾

او دے ستا رب لیدونکے د هر څیز ۔

ع ۱۱ / ۱۷

وَلٰكِنْ مَّتَّعْتَهُمْ ، دا سبب د ګمراهئ ذکر کوی یعنی سرهٔ د شرک کولو نه تا (اے الله تعالیٰ) د دوی او د دوی د مشرانو حاجتونه پوره کول او د دنیا فائدے دے ورکولے نو دوی خیال اوکړو چه شرک حق دین دے او توحید ئے هیر کړو نو د دے وجے نه تباه شول ۔ الذِّكْرَ مراد د دینه توحید دے بُوْرًا ، جمع د بائر ده په معنیٰ د هالک ۔

۱۹ :۔ دا خطاب دے مشرکانو ته په ورځ د قیامت ، مراد دا دے چه تاسو وئیلے وُو چه دے بزرګ نو مونږ ته د شرک طرف ته دعوت راکړے د هغے نه خودے بزرګانو ا کار اوکړو ۔ صَرْفًا ، اړول د عذاب د ځانونو نه ۔ وَلَا نَصْرًا ، مدد حاصلول د خپلو معبودانو نه ۔

وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا لَوْلَآ أُنزِلَ

او وائي هغه كسان چه عقيده نه لري د ملاقات زمونږ ولے نه نازليږي

عَلَيْنَا الْمَلٰٓئِكَةُ أَوْ نَرٰى رَبَّنَا ۗ لَقَدِ

په مونږ باندے ملائيك او نه وينو مونږ رب زمونږ، يقينًا

اسْتَكْبَرُوا فِىٓ أَنفُسِهِمْ وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيرًا ﴿۲۱﴾

لوئي ورنوتے ده د دوي په زړونو كښ او سركشي كړيده دوي سركشي لويه ـ

وَمَن يَظْلِمْ، دا هم په ورځ د قيامت كښ دے او يظلم مضارع په معنى د ماضي سره دے يا دا قول د دنيا سره تعلق لري ـ

سٹ :- روستو د ذكر د احوالو د قيامت نه د تخويف د پاره كلام ته واپس اوگرځوي اعتراضاتو د منكرينو او د هغوي جوابونو ته نو دا جواب د اووم آيت دے يعني خوراك كول او بازارونو كښ د ضرورت دنيوي يا د دعوت ديني د پاره گرځيدل د رسالت سره هيڅ منافات نه لري ـ بيا د دے اعتراضونو وجه ئے ذكر كړه چه دا دُنيا د ابتلا كانو ځاے دے انبياء رالیږل د جاهلانو د پاره امتحان دے چه هغوي پرے اعتراضونه كوي او جاهلان د انبياؤ د پاره امتحان دے چه دوي په د هغوي په طعنو او اعتراضونو باندے صبر كوي ـ دارنگ مالدار او فقير د يو بل امتحان دے او جوړ شخص او مريض د يو بل امتحان دے ـ

وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا ، يعني الله تعالى پوهه دے هر چا لره د هغه مناسب صفت وركوي نو نبوت ئے هم مناسب اشخاصو ته وركړے دے نو ولے په هغوي باندے اعتراضونه كوئ ـ

سلا :- دا هم زجر دے منكرينو ته د هغوي په اقوالو قبيحو او مطالباتو نامناسبو باندے او دا تفصيل د فتنے دے د جانب د منكرينو نه په اهل حق باندے ـ او آيت كښ لف نشر مرتب دے يعني دوي چه وائي په مونږ باندے دے ملائيك نازل شي رچه خبر راكړي د دے نبي په صدق باندے) دا د دوي استكبار دے او دوي چه وائي چه مونږ ولے رب نه وينو چه مونږ ته او وائي چه دا زمانې حق دے دا عُتُو

يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ

پہ کومہ ورځ چہ دوی بہ ؤ وینی ملائیکو لرہ نوخوشحالی بہ نہ وی پہ دغہ ورځ

لِّلْمُجْرِمِيْنَ وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا ﴿٢٢﴾

مجرمانو لرہ او وائی بہ دوی پناہی غواړو پناہی کلکہ۔

وَقَدِمْنَآ اِلٰى مَا عَمِلُوْا مِنْ عَمَلٍ

او قصد کړیدے مونږ هغہ عمل تہ چہ دوی کړے وی

فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا ﴿٢٣﴾ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ

نو گرځولے دے مونږ هغہ دوړہ الوځولے شوے (توسټلے شوے) جنت والا بہ

يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا وَّاَحْسَنُ مَقِيْلًا ﴿٢٤﴾

پہ دغہ ورځ غورہ وی پہ ځائے د اوسیدلو کښی او ډیر خائسته دی بہ لحاظ د آرام ځائے۔

راولو بہ سرکشی دہ) دا رنگ پہ سورۃ بنی اسرائیل ؁۹۲ کښی هم تیر شویدی۔

؁۲۲ :- دا جواب دے د اول سوال د دوی یعنی ملائیک بہ دوی تہ نازل شی او دوی بہ ئی وینی لیکن دوی لرہ بہ بشارت نہ وی بلکہ خبر بہ ورکوی د نا امیدئ او خسران او وائی بہ چہ خوشحالی پہ تاسو بانډی همیشہ د پارہ حرام (ممنع) دہ۔ او دغہ ورځ د زنکدان او ورځ د قیامت دہ پہ دے معنیٰ سرہ۔

وَيَقُوْلُوْنَ ، ضمیر ملائیکو تہ راجع دے۔ او دویمہ معنیٰ دا دہ چہ کافران بہ ملائیکو تہ وائی چہ پناہی را کړے مونږ لہ د عذاب نہ پورہ پناہی لیکن پناہی بہ ورتہ نہ ملاویږی وَيَقُوْلُوْنَ ،

؁۲۳ :- دا جواب د سوال دے چہ د دوی خو نیک عملونہ هم شتہ د اولیاؤ سرہ ئے محبت کوؤ د هغوی خدمت ئے کوؤ خیراتونہ وغیرہ ئے کول نو پہ دوی باندے خوشحالی ولے همیشہ د پارہ حرام شوہ؟

جواب او شو چہ هغہ عملونہ د دوی د کفر او د شرک د وجے نہ برباد دی لکہ دوړہ چہ او نو سټلے شی۔

؁۲۴ :- دا بشارت دے مؤمنانو لرہ هغہ کسان چہ کافرانو بہ ورباندے اعتراضونہ او طعنونہ کول یعنی د دوی عملونہ برباد نہ دی۔

وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ

او په كومه ورځ چه څيرې به شي آسمانونه په وريځو سره او راكوز به كړې شي

الْمَلٰٓئِكَةُ تَنْزِيْلًا ﴿۲۵﴾ اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذِ

ملائيك په راكوزولو سره - بادشاهي په دغه ورځ

الْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ ؕ وَكَانَ يَوْمًا عَلَى

حق ده د پاره د رحمٰن ذات او ده دا (ورځ) داسې ورځ چه په

الْكٰفِرِيْنَ عَسِيْرًا ﴿۲۶﴾ وَيَوْمَ يَعَضُّ

كافرانو باندې سخته ده - او دغه ورځ چه چكوله به لګوي

الظَّالِمُ عَلٰى يَدَيْهِ يَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ

ظالم په دواړه لاسونو باندې او وائي به هائې افسوس

مَقِيْلًا، په اصل كښ د غرمې د خوب ځائے ته وئيلے كيږي ليكن حديث صحيح كښ راغلي دي چه په جنت كښ خوب نشته نو مراد د مقيل نه صرف د آرام او د خوشحالئ ځائے دے -

۲۵ :- د دے آيت نه تخويف اخروي دے په ذكر د اوو هيبتونو د ورځ د قيامت سره - اول چودل د آسمانونو په غمام سره مراد د غمام نه ظلل (سورې) دي د نور د الله تعالى او داسې سورة بقره ۲۱۰ كښ هم ذكر دي يا مراد د غمام نه ډير جماعتونه د ملائيكو دي پشان د غمام په ښكاري - دويم راكوزيدل د ملائكو د پاره د انتظام د ميدان حشر -

۲۶ :- دريم هيبت دا دے چه بادشاهي او اختيار به صرف د رحمٰن وي نو هيڅوك به سفارش او هيڅ خبره بغير د اذن د رحمٰن نه نشي كولے - څلورم دا ورځ به په كافرانو ډيره سخته وي لكه سورة مدثر ۱۰ كښ به راځي -

اَتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلًا ﴿٢٧﴾
چه نیولے وے ما دَ رسول په تابعدارئ کښې لار ۔
يٰوَيْلَتٰى لَيْتَنِىْ لَمْ اَتَّخِذْ فُلَانًا
هائے تباهي ده افسوس دے چه نه وے نیولے ما فلانکی لره
خَلِيْلًا ﴿٢٨﴾ لَقَدْ اَضَلَّنِىْ عَنِ الذِّكْرِ
دوست ۔ یقینًا اړولے دے دهٔ ما لره دَ قرآن نه
بَعْدَ اِذْ جَآءَنِىْ ؕ وَكَانَ الشَّيْطٰنُ لِلْاِنْسَانِ
روستو دَ دے نه چه راغے ما ته، او دے شیطان انسان لره
خَذُوْلًا ﴿٢٩﴾ وَقَالَ الرَّسُوْلُ يٰرَبِّ
شرموونکے ۔ او وائی رسول اے ربه زما

۲۷ :- پنځم حال دا دے چه ظالم به خپلولاسونو باندے دَ ډیرے غصّے او دَ افسوس دَ وجے نه چکونه لګوی ۔ دا عملی ارمان دے دلته مراد دَ ظالم نه هغه دے چه دَ تابعدارئ دَ رسول نه یې مخ کرځولے دے په شرک او بدعاتو او ګناهونو کولو سره ۔ يَقُوْلُ يَالَيْتَنِىْ، دا شپږم حال دَ هیبت دے چه ظالم به دَ رسول په اتباع پسے قولی ارمان کوی ۔ په لاس باندے چک لګول یې ځکه خاص کړل چه اکثر عملونه یې په لاس باندے کړے دی ۔ دا رنګ دا عادت دے دَ هغه پښیمانه شخص چه پښیمانتیا ورته فائده نه ورکوی ۔

۲۸ :- دا اووم هیبت دے چه دَ شیطانانو انسی او جنی په دوستانه کولو او خبره منلو او تابعداری کولو به افسوسونه او واویلا کوی ۔

فُلَانًا، نه مراد عام شیطانان دی که انسی وی او که جنی وی فُلَان یې دَ دے وجے نه اُوئیل چه دَ هیبت دَ وجے نوم دَ هغهٔ ترینه هیر شوید ے یا دَ توهین او بے عزتئ دَ پاره یې اُوئیل ۔

۲۹ :- دا ذکر دَ سبب دَ ارمانونو دے چه شیطان انسی یا جنی دهٔ لره دَ قرآن کریم دَ اوریدلو او دَ هغے دَ تابعدارئ نه په مختلفو وسوسو سره

إِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوا هَٰذَا الْقُرْآنَ

یقیناً زما قوم گرځولے دے دا قرآن

مَهْجُورًا ﴿۳۰﴾ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ

پریخودلے شوے۔ او دغسې گرځولے دے مونږ هر یو

نَبِيٍّ عَدُوًّا مِّنَ الْمُجْرِمِينَ ۗ وَكَفَىٰ

نبی لره دشمن د مجرمانو نه، او پوره دے

بِرَبِّكَ هَادِيًا وَنَصِيرًا ﴿۳۱﴾ وَقَالَ

رب ستا هدایت کوونکے او مددګار۔ او وائی

منع کړیوؤ۔ خَذُولًا، هغه دے چه وعدے کوی د مدد کولو او په وخت د ضرورت کښې غائب شي یا مخالف شي نو بیا اسے وخت کښې دغه انسان شرمنده شي۔

۳۰:۔ دا زجر دے مخالفینو د قرآن ته رڅه د شیطان په وسوسے سره یې د قرآن نه خلاف کړیدے په شکایت کولو د رسول د دوی نه الله تعالیٰ ته په دنیا کښې، او دا شهادت د رسول دے په انکار د دوی باندے او بل تفسیر دا دے چه دا به په ورځ د قیامت کښې وی۔ او قَالَ په معنیٰ د یقول سره دے۔ مَهْجُورًا، تفسیر ابن کثیر کښې لیکلے دی چه هجران د قرآن عام دے لکه د قرآن د بیان په وخت کښې شور شغب کول، پدے ایمان نه راوړل، پدیکښې سوچ او فکر نه کول، پدے باندے عمل نه کول، د دے په بدل کښې نورو علمونو او کتابونو ته توجه کول، د دے نه خلق منع کول دا ټول په هجران د قرآن کښې داخل دی۔ هر کله چه دا قسم هجران د نبی صلی الله علیه وسلم په ژوند کښې قریشو او عربو کړے وؤ نو ځکه د قوم تخصیص یې اوکړو۔

۳۱:۔ هر کله چه د نبی خفګان یې د قوم نه ذکر کړو او س پدے آیت کښې هغه له تسلی ورکوی چه داسے خو د هر نبی سره خلقو دشمنی کړیده نو هغوی صبر کړیوؤ ته هم صبر کوه۔ ځکه چه هدایت د الله تعالیٰ په اختیار کښې دے او د دشمنانو نه بچ کول هم د الله تعالیٰ په اختیار کښې دی

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْاٰنُ

هغه کسان چه کفر ئے کړیدے ولے نشي نازلیدلے پر دهٔ باندے قرآن

جُمْلَةً وَّاحِدَةً ۚ كَذٰلِكَ ۚ لِنُثَبِّتَ بِهٖ

په یو ځل دغسے (نازل کړیدے مونږ) دَپاره دَدے چه کلک کړو پدے سره

فُؤَادَكَ وَرَتَّلْنٰهُ تَرْتِيْلًا ﴿۳۲﴾ وَلَا يَاْتُوْنَكَ

زړهٔ ستا او وضاحت کړیدے مونږ دَدے په پوره وضاحت سره۔ او نه راوړی دوی تا ته

بِمَثَلٍ اِلَّا جِئْنٰكَ بِالْحَقِّ وَاَحْسَنَ

هیڅ اعتراض مګر راوړو مونږ تا له جواب او ښائسته

تَفْسِيْرًا ﴿۳۳﴾ ط اَلَّذِيْنَ يُحْشَرُوْنَ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ

بیان۔ هغه کسان چه جمع به کړے شي دوی په مخونو خپلو باندے

اِلٰى جَهَنَّمَ ۙ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضَلُّ سَبِيْلًا ﴿۳۴﴾ ع

جهنم ته دغه کسان ناکاره ځائے والا دی او ورکوونکی دی لار دَجنت لره۔

او دا مطلب دے په وَكَفٰى بِرَبِّكَ هَادِيًا وَّنَصِيْرًا کښ۔

۳۲، ۳۳:۔ دا زجر دے منکرینو دَ قرآن ته او دَ هغوی دَ اعتراض درے جوابونه ئے ذکر کړے دی۔ اول دا چه لږ لږ نازلیدلو کښ دَ زړه تثبت ورکول مقصد دے یعنی کله چه به دَ منکرینو دَ طرف نه څهٔ تکلیف نبی صلی الله علیه وسلم ته اورسیدلو نو الله تعالیٰ به آیت دَ هغه دَ تسلی دَپاره نازل کړو۔ دویم جواب چه په لږ لږ نازلیدلو کښ ترتیل مقصد دے یعنی الفاظ واضح لوستلے کیږی او معانی هم په وضاحت سره بیان شي۔ دریم جواب دا دے چه هر کله دوی څه اعتراض کوی نو الله تعالیٰ دَ هغے حق جواب رالیږی او ښائسته تفسیر ئے کوی۔

۳۴:۔ دا تخویف شدید دے منکرینو دَ قرآن ته په ذکر دَ درے حالاتو اول حشر دَ دوی په مخونو باندے لکه سورة بنی اسرائیل ۹۷ کښ تیر شویدے دویم شَرٌّ مَّكَانًا چه جهنم دے۔ دریم اَضَلُّ سَبِيْلًا دا په دنیا کښ دے

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنَا

او یقیناً ورکړی دے مونږ موسیٰ علیه السلام ته کتاب او ګرځولے دے مونږ

مَعَهٗۤ اَخَاهُ هٰرُوْنَ وَزِيْرًا ﴿۳۵﴾ فَقُلْنَا

د هغه سره ورور د هغه هارون علیه السلام مددګار ۔ او وئیل مونږ

اذْهَبَاۤ اِلَى الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا

لاړ شئ دواړه هغه قوم ته هغه چه دروغژن کړی دی

بِاٰيٰتِنَا ؕ فَدَمَّرْنٰهُمْ تَدْمِيْرًا ﴿۳۶﴾

آیاتونه زمونږ، پس هلاک کړل مونږ دوی لره په هلاکولو ۔

وَقَوْمَ نُوْحٍ لَّمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ

او هلاک کړه مونږ قوم د نوح علیه السلام هرکله چه دوی دروغژن کړل رسولان

یا مراد دا چه د لارے نه د ګمراهئ او بربادئ علم دوی ته په قیامت په حاصل شی ۔

۳۵:۔ خلاصه :۔ د دے آیت نه ترسلا پورے دریم باب دے په دے کښ شپږ دلیلونه نقلیه دی او دا نمونے د عذاب دی ۔ د پاره د تخویف او نمونے د برکاتو دی چه هغه هلاکول د دشمنانو د حق دی دا هم برکات دی ۔ او زجرونه دی شپږ ، او شپږ عقلی دلیلونه دی او تسلی او تشجیع د نبی صلی الله علیه وسلم ته په شپږ آدابو سره ۔

تفسیر :۔ ۳۵ ، ۳۶ :۔ په دے کښ دلیل نقلی دے د موسیٰ او هارون علیهما السلام نه ، مقصد دا دے چه دوی له الله تعالیٰ څلور قسمه برکات ورکړی وو ۱ کتاب ۲ وزیر ۳ مکمل بینو ته په رسالت سره لیږل ۴ او مددکول د دوی په تباه کولو د فرعونیانو سره دوی ئے مخکښ ذکر کړل ځکه چه د دوی قوم (بنی اسرائیل) په وخت د نزول قرآن کښ موجود وو ۔

أَغْرَقْنٰهُمْ وَجَعَلْنٰهُمْ لِلنَّاسِ اٰيَةً ۗ

غرق کړل موږ دوی او وګرځول موږ دوی خلقو لره نخښه ،

وَاَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿٣٧﴾

او تیار کړی دے موږ ظالمانو لره عذاب دردناک ۔

وَّعَادًا وَّثَمُوْدَا۟ وَاَصْحٰبَ الرَّسِّ

او هلاک کړه موږ عادیان او ثمودیان او کوهی والا

وَقُرُوْنًا بَيْنَ ذٰلِكَ كَثِيْرًا ﴿٣٨﴾ وَكُلًّا

او پیړئ په مینځ د دے کښې ډیرے ۔ او هر یو ته

ضَرَبْنَا لَهُ الْاَمْثَالَ ۖ وَكُلًّا تَبَّرْنَا تَتْبِيْرًا ﴿٣٩﴾

بیان کړی دی موږ وعظونه او هر یو تباه کړل موږ په تباهئ سره ۔

۳۷ :۔ په دے کښې دلیل نقلی دے د نوح علیه السلام نه یعنی الله تعالیٰ هغهٔ لره برکات ورکړو چه د هغهٔ مخالفین ئے تباه او غرق کړل او د روستو خلقو د پاره ئے عبرت اوګرځوؤ او قیامت کښې هم دوی لره تیار عذاب دے دا هم برکات دی چه په مخالفت کوؤنکو باندے ناکاره عذاب راځی ۔

لِلنَّاسِ لفظ الناس د دے وجے نه ذکر کړو چه دا قوم د نورو ټولو قومونو نه مخکښې تیر شوے دے نو د روستو ټولو انسانانو د پاره نمونه ده۔

۳۸، ۳۹ :۔ په دے کښې دریے قومونه د مکذبینو ئے ذکر کړے دی او دوی ته وعظ او نصیحت بیانول او د دوی هلاکت ئے ذکر کړے دے۔

اَصْحٰبَ الرَّسِّ، کښې اختلاف دے رَسّ کچه کوهی ته وئیلے کیږی۔ یو قول دا دے چه دا هغه قوم دے چه صاحب یاسین ئے کوهی ته غورځولے وؤ۔ دویم دا چه دا قوم د شعیب علیه السلام وؤ چه په کوهی باندے جمع کیدل۔ دریم قول دا دے چه دوی اصحاب الاخدود دی۔ اول قول ډیر مشهور دے ۔

وَلَقَدْ أَتَوْا عَلَى الْقَرْيَةِ الَّتِي أُمْطِرَتْ

او یقینًا تحي راغلي دوی په هغه کلی باندے چه باران کړے شوے وو

مَطَرَ السَّوْءِ ۚ أَفَلَمْ يَكُونُوا يَرَوْنَهَا ۚ

په هغوی باندے باران ناکاره، آیا نو نه وو دوی چه لیدلے وے دوی هغے کلو لره

بَلْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ نُشُورًا ﴿۴۰﴾

بلکه دوی عقیده نه لری د دوباره ژوندن۔

وَإِذَا رَأَوْكَ إِنْ يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا ۖ

او کله چه اُوینی دوی تالره نه نیسی تالره مگر توقے۔

أَهَٰذَا الَّذِي بَعَثَ اللَّهُ رَسُولًا ﴿۴۱﴾

(وائی) آیا دا هغه کس دے چه رالیږلے دے الله تعالیٰ رسول۔

إِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ آلِهَتِنَا لَوْلَا

یقینًا نزدے وو دے چه اړولے وے موږ لره د معبودانو زموږ نه که چرے نه وے

أَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا ۚ وَسَوْفَ يَعْلَمُونَ

تینګ شوے موږ په هغے باندے، او زر دے چه دوی به پوهه شی

۴۰:۔ په دیکښې دلیل نقلی دے د هلاکت د قوم لوط علیه السلام او زجر دے مشرکین عرب ته چه دوی په وخت د سفر کولو د شام کښې په کنډراتو د قوم لوط باندے ورتیریدل دا سے په سورة حجر ۷۹ او سورة صافات ۱۳۷، ۱۳۸ کښې هم دی۔

بَلْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ نُشُورًا۔ په دیکښې اشاره ده چه دوی عبرت ځکه نه اخلی چه دوی عقیده د دوباره ژوندن نه لری۔

۴۱:۔ دا زجر دے په انکار کولو د رسول نه او په هغه پورے استهزاء کول۔

حِيْنَ يَرَوْنَ الْعَذَابَ مَنْ اَضَلُّ

کله چه دوی اُوینی عذاب لره چه کوم یو زیات بے

سَبِيْلًا ﴿۴۲﴾ اَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ

لارے دے۔ آیا خبر یے ته هغه چا په حال باندے چه نیولے دے معبود خپل

هَوٰىهُ ؕ اَفَاَنْتَ تَكُوْنُ عَلَيْهِ وَكِيْلًا ﴿۴۳﴾

خواهش خپل لره، آیا پس یے ته په هغه باندے ذمه وار۔

۴۲:۔ دا هم زجر دے سره د تخویف نه۔ او دا ذکر د استهزاء دے په رسول پورے اِنْ دا مخفف عن المثقل دے یعنی اِنَّهٗ۔

لَيُضِلُّنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا، اشاره ده چه د دوی په نیز توحید ته دعوت ورکول گمراه کول دی یعنی دوی نسبت د گمراهئ رسول صلی الله علیه وسلم ته کوؤ او په شرک باندے ټینګ پاتے کیدل چه دین گنړلو لیکن په وخت د عذاب راتلو کښ گمراهان معلو میږی۔

۴۳:۔ دا زجر دے په اتباع د هوا سره او تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته۔

اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ، یعنی معبودان جوړ وی د خپل خواهش موافق یعنی د چا د زړه او نفس تعلق چه د یو قبر والا سره پیدا شی نو د هغه عبادت شروع کړی د چا د نفس تعلق چه د بوډ ونډی پیر فقیر سره پیدا شی د چا د ونے او د ډیټ وغیره سره نو د هغے نه معبود جوړ کړی او دلیل شرعی د هیڅ چا په معبودیت باندے سوا د الله تعالیٰ نه نشته۔ پدے معنیٰ سره اِلٰهَهٗ مفعول اول او هَوٰىهُ مفعول دویم دے۔ دویمه معنیٰ دا ده چه د خپل خواهش طاعت داسے کوی چه طاعت د الله تعالیٰ او د رسول پورے پریږدی یعنی شرک فی الطاعت کوی لکه دهریان، بدعتیان، فاسق، فاجر هر یو (په تفاوت سره) د خواهشاتو طاعت کوی۔ نو دوی د هَوٰىهُ نه اله جوړ کړو پدے پدے معنیٰ سره مفعول دویم مخکښ دے په اول باندے او دا رنګ په سورة جاثیه ۲۳ کښ دی۔

اَفَاَنْتَ تَكُوْنُ عَلَيْهِ وَكِيْلًا، یعنی ته باندے د دوی د هدایت ذمه واری نشته او نه ته د دوی ذمه وار یے۔

أَمْ تَحْسَبُ أَنَّ أَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُونَ

آیا گمان کوے ته چه یقینًا ډیر د دوی آوری

أَوْ يَعْقِلُونَ إِنْ هُمْ إِلَّا كَالْأَنْعَامِ

یا پوهیږی، نه دی دوی مگر پشان د څاروؤ

بَلْ هُمْ أَضَلُّ سَبِيلًا ﴿۴۴﴾ أَلَمْ تَرَ

بلکه دوی ډیر بے لارے دی. آیا نه گورے

إِلَىٰ رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ وَلَوْ شَاءَ

رب خپل ته چه څه رنگه غوړولے دے سورے او که چرے وغواړے الله تعالیٰ

لَجَعَلَهُ سَاكِنًا ثُمَّ جَعَلْنَا الشَّمْسَ

خامخا او به گرځوی هغے لره په ځائے اولاړ بیا گرځولے دے موږ نمر

۴۴ - دا هم زجر دے منکرینو ته او تسلی ده پیغمبر ته یعنی دا منکرین حق خبره نه قبلوی او نه په هغے کښ سوچ کوی نو د دوی حال پشان د څاروؤ دے چه غوږونه او زړونه یې شته لیکن په هغے سره د اوریدلو او د قبلولو او تمیز د حق باطل نشی کولے او دا رنگ خوراک څکاک کوی لیکن د آخرت هیڅ فکر ورسره نشته دے۔

أَضَلُّ سَبِيلًا، یعنی دوی زیات ناپوهه دی ځکه چه څاروی اگرچه توحید او رسالت نه پیژنی لیکن هغے ته باطل هم نه وائی - او دا رنگ څاروی خپل مالک پیژنی او د هغه تابعداری کوی او دا مشرکان د خپل مالک نه هم زیات ناخبره او باغیان دی - او أَكْثَرَهُمْ یې ځکه اوفرمائیل چه بعض ایمان راوړی دا سے په سورة اعراف ۱۷۹ کښ تیر شویدی

عَلَيْهِ دَلِيْلًا ﴿۴۵﴾ ثُمَّ قَبَضْنٰهُ اِلَيْنَا

په هغې باندې دليل. بيا راټول کړو موږ هغه څان خپل ته (په حکم سره)

قَبْضًا يَّسِيْرًا ﴿۴۶﴾ وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَ

په دمه راټولول. او خاص الله تعالیٰ هغه ذات دی چې ګرځولې ده

لَكُمُ الَّيْلَ لِبَاسًا وَّ النَّوْمَ سُبَاتًا

ستاسو دپاره شپه جامه او خوب آرام

وَّجَعَلَ النَّهَارَ نُشُوْرًا ﴿۴۷﴾ وَهُوَ الَّذِيْ

او ګرځولې ده ورځ دپاره د خوریدلو. او خاص الله تعالیٰ هغه ذات دی

۴۵، ۴۶:- د دینه عقلی دلیلونه په دعوی د تبارک باندې ذکر کوی، په هر یو دلیل کښې دوه دوه څیزونه (یعنی تصرفات د الله تعالیٰ) ئې ذکر کړي دي او په هر دلیل کښې د اشیاؤ منافع او فائدې (برکات) ئې ذکر کړې دي. په دې آیت کښې سورے او نمر ئې ذکر کړي دي او په دواړو کښې تصرف الٰهی ئې ذکر کړیدے.

مَدَّ الظِّلَّ. د دې نه مراد د صبا د راختلو نه د نمر ختلو پورې وخت دے ظِلّ سورے د ماسپخین نه وړاندې او فی سورے د ماسپخین نه روستو ته وئیلے کیږی.

لَجَعَلَهٗ سَاكِنًا. یعنی نمر به ئې نه راخیژولے نو سورے به همیشه وے لیکن نمر راخیژول دلیل دې په پیژندلو د سوري باندې یعنی که نمر نه وے نو هیچا به سورے نه پیژندلو او د دینه مشهور مثل ثابتیږی چه څیز په ضد سره معلومیږی. بیا چه نمر څومره راوچتیږی نو سورے په دمه دمه کمیږی دېته قبض یسیر وائی دا هم په اختیار د الله تعالیٰ کښې دے. دلیلًا، مذکر ئې ځکه راوړو چه د شمس نه مراد طلوع د نمر ده.

۴۷:- دا بل دلیل عقلی دے په یکښې شپه او په هغې کښې خوب، او ورځ ئې ذکر کړیده او د هغې فائدې ئې ذکر کړې دي. سُبَاتًا، سبت په اصل کښې پریکولو او خالی کولو ته وئیلے شی نو خوب هم په هغه وخت نعمت دے چه په مشاغلو کښې بنده ستړے شی او هغه پریږدی او آرام کوی. نُشُوْرًا مراد د دینه وخت د نشور دے

أَرْسَلَ الرِّيٰحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ

چه رالیږي هواګانې زیرې مخکښې دَ

رَحْمَتِهٖ ۚ وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُورًا ﴿۴۸﴾

رحمت دَهغه نه او را وروَلې دي موږ دَ آسمان نه اوبه پاکوُنکې.

لِّنُحْيِۦَ بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا وَّنُسْقِيَهٗ مِمَّا

دَ دې دَپاره چه تازه کړو په هغې سره زمکه وچه او وڅکوُو دا اوبه دَ هغه چا نه

خَلَقْنَآ أَنْعَامًا وَّأَنَاسِيَّ كَثِيرًا ﴿۴۹﴾

چه موږ پیدا کړي دي څاروي او انسانان ډير.

ف۴۸:- دا هم دلیل عقلي دے او دَ هواګانو او باران ذکر ئے کړے دے او دَ هغې اثار ئے هم ذکر کړے دي. او طَهُورًا هغه دي چه پاک وي او بل څیز لره پاکوي او دا دلیل دے چه اصل په اوبو دَ باران کښې طهوریت دے نجاست پکښې عارضي راځي. او ابن کثیر وئیلي دي چه طهور په معنیٰ دَ الۂ دَطهارت سره دے صیغه دَ مبالغې نه ده.

ف۴۹:- په دے کښې دَ باران دوه فائدے ئے ذکر کړے دي.

كَثِيرًا سوال دا دے چه انعام او انسانان ټول اوبو څکلو ته محتاج دي نو کثیرا ئے ولے اوفرمائیل؟

اول جواب دا دے چه اصل عبارت دا دے كَثِيرًا مِمَّا خَلَقْنَآ او أَنْعَامًا وَّأَنَاسِيَّ بدل دے دَ کثیرا نه.

دویم جواب دا دے چه بعض انسانان دَ سمندر اوبه صفا کوي او دَ څکلو دَپاره استعمالوي او هغه لږ خلق دي او ډیر خلق خو دَ باران اوبه څکي.

كَثِيرًا دا لفظ کښې مفرد دے او په معنیٰ کښې جمع ده ځکه ئے صفت دَ جمع دَپاره ذکر کړو.

وَلَقَدْ صَرَّفْنٰهُ بَیْنَهُمْ لِیَذَّکَّرُوْا ۖ

او یقیناً گرځولے دی مونږ دا اوبه په مینځ د دوی کښ د دے د پاره چه نصیحت واخلی

فَاَبٰیٓ اَکْثَرُ النَّاسِ اِلَّا کُفُوْرًا ﴿۵۰﴾

نو نه کوی ډیر خلق مګر ناشکری۔

وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا فِیْ کُلِّ قَرْیَةٍ

او که چرے خوښه وے مونږ خامخا لیږلے په وے مونږ په هر کلی کښ

نَّذِیْرًا ۖ ﴿۵۱﴾ فَلَا تُطِعِ الْکٰفِرِیْنَ

ویره ورکوونکے۔ پس خبره مه منه د کافرانو

نه۵ ۔ دا هم متعلق دے د تیرشوی آیت سره او د ضمیر راجع دے ماءً (اوبو) ته یعنی اوبه د باران په قسم قسم طریقے سره گرځوو په بعضے زمکه باران اوشی او په بعضے باندے او نشی په بعضے باندے لږ باران اوشی او په بعضے باندے ډیر اوشی۔ یا مراد دا دے چه دا اوبه د باران په مختلفو ملکونو کښ د خوړونو او سیندونو او چینو په طریقه سره گرځوو چه خلق ئے وینی او د الله تعالیٰ قدرت او توحید پرے یادوی۔

فَاَبٰیٓ اَکْثَرُ النَّاسِ اِلَّا کُفُوْرًا یعنی د باران د ورېدلو نه روستو ناشکری کوی څوک وائی دا باران په مونږ باندے فلانی ستوری او ورو څوک وائی دا د فلانی موسم باران دے او د الله تعالیٰ د قدرت تاثیر پکښ نه گنړی۔ په آیت کښ دویمه توجیه داده چه ضمیر د صَرَّفْنٰهُ راجع دے قرآن ته او د سورة بنی اسرائیل د سلا ، سه۸۹ پشان دے او زجر دے په انکار د قرآن سره۔ او دا په مینځ کښ جمله معترضه ده۔

سلا ۔ په مینځ د دلیلونو کښ تسلی او تشجیع ورکوی نبی صلی الله علیه وسلم ته حاصل دا دے که الله تعالیٰ اراده کړے وے نو په هر کلی او ښار کښ به ئے جدا جدا نبی لیږلے وے لکه چه باران ئے جدا جدا زمکو او کلو کښ تقسیم کړیدے یعنی د رسول مثال پشان د باران دے

وَجَاهِدْهُمْ بِهٖ جِهَادًا كَبِيرًا ﴿۵۲﴾ وَهُوَ

او جهاد کوه د دوی سره په دې قرآن سره جهاد لوئے - او خاص الله تعالیٰ

الَّذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ هٰذَا عَذْبٌ

هغه ذات دے چه یو ځائے روان کړي دي دوه دریابونه دا یو خوږ دے

فُرَاتٌ وَّهٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ ۚ وَجَعَلَ

ماتوونکے د تندے او دا بل مالګین دے مرچ کین ترخونکے او پیدا کړیدی

بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَّحِجْرًا مَّحْجُورًا ﴿۵۳﴾

په مینځ د دے دواړو کښ پرده او مانع (ربن) پوخ -

لکه چه مخکښ زمانه کښ دا سے وو چه هر کلی ته جدا جدا نبی رالیږلے وو- لیکن الله تعالیٰ ته د ټول عالم رسول را اولیږلے دا دلیل دے زموږ د نبی په ختم نبوت باندے -

۵۲:- په دے آیت کښ تشجیع ورکوی او طریقه د دعوت ښائی نبی صلی الله علیه وسلم ته یعنی دا کافران تالره شرک کولو ته رابلی یا کتمان د حق ته نو د دوی خبره او نه منے او جهاد بالقرآن دا دے چه د قرآن د تبلیغ د پاره ډیر کراؤ اوکړه او ټول قوتونه دیته صرف کړه چه سستی پکښ اونشی - او دیته جهاد کبیر وئیلے شی -

فَلَا تُطِعِ ، د دے نه مخکښ کلام پټ دے یعنی اَلْتَفِيْنَا بِكَ یعنی موږ په روستو زمانه کښ ستا په رسالت باندے اکتفاء اوکړله نو د دے وجے نه ذمه داری په محنت سره ادا کړه -

۵۳:- دا بل دلیل عقلی دے او دا سے په سورة فاطر ۱۲ کښ شته دے او په دیکښ دوه قسمه اوبه ئے ذکر کړے دی د خوږ دریاب نه او به د نهرونو خوړو تو سیند و نو مراد دی چه سمندر ته غورزیږی لیکن یو بل سره نه ګډیږی - مَرَجَ ، په معنیٰ د یو ځائے والی سره دے یعنی یو ځائے چلول لیکن په بغیر د ګډوت نه - بَرْزَخٌ پرده ده چه منع کوی د غالب کیدلو د یو ته په بل باندے چه د خوږ نه ترخ جوړ شی او د ترخ نه خوږ جوړ شی -

وَهُوَ الَّذِیْ خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا

او خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړ پیدا ے ډ اوبو (نطفې) نه بنده

فَجَعَلَهٗ نَسَبًا وَّصِهْرًا ؕ وَکَانَ رَبُّکَ

بیا ئے کړځولے دے نسب والا او سخرګنۍ والا، او ستا رب دے

قَدِیْرًا ﴿۵۴﴾ وَیَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

قدرت والا۔ او بندګی کوی دوی سوا ډ الله تعالیٰ نه

مَا لَا یَنْفَعُهُمْ وَلَا یَضُرُّهُمْ ؕ وَکَانَ

ډ هغه چا چه نه نفع ورکولے شي دوی ته او نه نقصان ورکولے شي دوی ته، او دے

الْکَافِرُ عَلٰی رَبِّهٖ ظَهِیْرًا ﴿۵۵﴾ وَمَآ اَرْسَلْنٰکَ

کافر خپل رب ته شا کړځوونکے۔ او نه ئے لیږلے موږ ته

حِجْرًا مَّحْجُوْرًا، مانع دے ډ اختلاط او ډ ګډون نه لیکن دا پرده محسوسه نه ده او دا سے په سورة رحمٰن کښ شته۔

۵۴ :- دا بل دلیل عقلی دے لکه چه په عامو اوبو کښ دوه فائدے ذکر کړے تو دا رنګ په خاص اوبو (نطفه) کښ هم دوه فائدے ذکر کوی او دا ډ قدرت الهیه خاص نمونے دی۔ او په یکښ ډ پیدا ئش نه روستو دوه انعامات ذکر کړیدی په پیدائش سره نسب جوړیږی او بیا په نکاح کولو سره مصاهرت (سخرګنۍ) جوړیږی۔ او دا دواړه ډ انسان ډ حفاظت او ډ انسانیت ډ بقاء ډپاره اسباب دی۔

۵۵ :- په مینځ ډ دلیلونو کښ زورنه ورکوی په شرک فی العبادة باندے۔

عَلٰی رَبِّهٖ ظَهِیْرًا، معنیٰ دا چه ډ الله تعالیٰ ډ توحید په مقابله کښ او ډ حزب الله په مقابله کښ ډ شیطان ملګرتیا کوی ډ شرک ډ غالب کولو او ډ اشاعت کولو کوشش کوی۔ یا ظَهِیْرًا په معنیٰ ډ سپک او ذلیل دے۔

إِلَّا مُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ﴿٥٦﴾ قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ

مګر زیرے ورکوونکے او ویره ورکوونکے. ته اوایه نه غواړم ستاسو نه

عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِلَّا مَن شَآءَ أَن يَتَّخِذَ

په دے بلنې باندے هیڅ بدله مګر څوک چه غواړی چه اونیسی

إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ﴿٥٧﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱلْحَىِّ

خپل رب ته لار. او ځان اوسپاره په هغه ژوندی

ٱلَّذِى لَا يَمُوتُ وَسَبِّحْ بِحَمْدِهِۦ ۚ

ذات باندے چه مرګ پرے نه راځی او پاکی وایه سره د ستائینے د هغه نه،

وَكَفَىٰ بِهِۦ بِذُنُوبِ عِبَادِهِۦ خَبِيرًا ﴿٥٨﴾

او پوره دے الله تعالیٰ په ګناهونو د بندګانو خپلو باندے خبر لرونکے.

ﮐﻠﮧ:- په دے آیت کښ ئے تسلی او صدق د رسول ذکر کړے دی مطلب دا چه د شرک فی العبادة د مقابلے د پاره دا رسول را لیږلے شوے دے.

ﮐﮧ:- په دے کښ ادب ذکر کړے دے د رسول د پاره یعنی دعوت په اخلاص سره پکار دے. اِلَّا استثناء منقطع ده او جزاء د مَنْ پټه ده یعنی فَلْيَتَّبِعْنِی پس زما تابعداری دِ اوکړی. یا اِلَّا استثناء متصل ده یعنی زه غواړم اجر د تابعدارئ د هغه چا چه زما په دعوت سره ایمان راوړی ځکه چه دعوت کوونکی ته اجر ملاویږی په مقدار د هغه چا سره چه د ده دعوت قبول کړی. لیکن اول توجیه غوره ده په دویمه باندے اشکال دے یعنی اَسْـَٔلُكُمْ سره مناسبت نه لری.

ﮐﮧ:- دا بل ادب دے یعنی په اخلاص پسے توکل ضروری دے. اَلْحَیِّ الَّذِیْ لَا یَمُوْتُ، یعنی دا حیات د نوع حیات د مخلوق نه نه دے ځکه د مخلوق د حیات په مقابله کښ موت ضروروی.

وَسَبِّحْ بِحَمْدِهٖ سره بل ادب دے. تَوَكَّلْ دیته وائی چه په وخت د استعمال د اسبابو شرعیو کښ عقیده د تاثیر کولو په الله تعالیٰ باندے لری

الَّذِي خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ

هغه ذات دے چه پیدا کړے دي آسمانونه او زمکه

وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ

او هغه چه د دے دواړو په مینځ کښ دي په انداز د شپږو ورځو کښ بیا

اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ۚ الرَّحْمٰنُ

برابر شو د عرش د پاسه رحمٰن ذات دے

فَسْئَلْ بِهِ خَبِيرًا ﴿۵۹﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ

نو تپوس کوه د هغه په باره کښ د خبر لرونکی نه۔ او کله چه دوی ته اُووئیلے شی

او وجه ئے دا ده چه اسباب فنا کیږی او الله تعالیٰ باندے فنا نه راځی۔ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ۔ یعنی که مخالفین شرک او کفر کوی او تا ته کنځل کوی او په تا باندے طعنونه وائی نو الله تعالیٰ ترینه خبردے سزا به ورکوی ته ئے پرواه مکوه۔ اول بِهٖ صله د کفیٰ ده د تاکید د فاعل د پاره راځی او بِذُنُوْبِ متعلق دے په خبیرا پورے۔

۵۹:۔ دا بل دلیل عقلی دے دوه فعلی صفتونه د الله تعالیٰ ئے ذکر کړیدی خَلَقَ او اِسْتَوٰی او دوه ذاتی صفتونه رحمان او خبیر۔ هر کله چه په دے سورت کښ مسئله د برکاتو باندے بحث دے او د هغے سره صفت د رحمانیت مناسب دے ریعنی دا ټول انعامات او برکات ورکوونکے رحمان دے نو د دے وجے نه لفظ رحمان ئے ذکر کړو۔ او معنیٰ د اِسْتَوٰی ښکاره ده او کیفیت ئے مجهول دے هیڅ تاویل او تمثیل پکښ جائز نه دے دا قول د ټولو سلفو صالحینو دے۔

فَاسْئَلْ بِهٖ خَبِيْرًا۔ د دے یو توجیه دا ده، سوال کوه په وسیله د اسم د رحمان او خبیرا ئے حال دے۔ دویمه دا چه بِهٖ کښ با زیاتی ده معنیٰ دا چه سوال کوه د الله تعالیٰ نه چه خبردار دے۔ دریمه توجیه دا چه بِهٖ په معنیٰ د عنه دے او خَبِيْرًا نه مراد هغه څوک دے چه عالم وی په اسماؤ او صفاتو د الله تعالیٰ یعنی د الله تعالیٰ د توحید او معرفت په باره

اسْجُدُوْا لِلرَّحْمٰنِ قَالُوْا وَمَا الرَّحْمٰنُ ق

| سجده اوکړئ رحمان ذات ته دوی وائی او څه دے رحمٰن ، |
|---|

اَنَسْجُدُ لِمَا تَاْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُوْرًا ﴿۶۰﴾

| آیا سجده اوکړو هغه چاته چه ته مونږ ته حکم راکوے او زیاتی کوے دوی لره نفرت۔ |
|---|

تَبٰرَكَ الَّذِیْ جَعَلَ فِی السَّمَآءِ بُرُوْجًا

| برکتونو والا دے هغه ذات چه پیدا کړی دی په طرف د آسمانونو کښ منزلونه (د غټو ستورو) |
|---|

وَّجَعَلَ فِیْهَا سِرٰجًا وَّقَمَرًا مُّنِیْرًا ﴿۶۱﴾

| او پیدا کړے یے په هغے کښ تمر بلیدونکے او سپوږمۍ رڼا کوونکے ۔ |
|---|

کښ د هغه عالم ته تپوس کوه چه په اسماؤ او صفاتو د الله تعالیٰ باندے علم لری او دغه عالم مراد دے په اِنَّمَا یَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا کښ۔

ملا :- دا زجر دے په انکارکولو د رحمان او د سجدے رحمٰن ته د توحید په طریقے سره دوی انکار کوؤ۔ د دے مراد دا نه دے چه دوی د الله تعالیٰ صفت رحمان نه منلو۔ ځکه د دوی په اشعارو د جاهلیت کښ رحمان په صفت د الله تعالیٰ کښ ذکر دے لکه چه ابن کثیر وئیلے دی بلکه مراد د دوی دا وو چه کوم رحمان ته سجده اوکړو ځکه چه دوی رحمان مسیلمة الکذاب ته هم وئیلو دا انکار عنادی وو۔

ملا خلاصه د دے آیت نه تر آخره د سورت پورے څلورم باب دے په دے کښ دعوی د سورت ده په دریم کرت او دوه عقلی دلیلونه دی بیا یولس صفات دی د صالحینو او هغوی له بشارت دے او اختتام دے په زجر او تخویف دنیوی سره۔

تفسیر:- په دے آیت کښ مراد د برکاتو نه روحانی برکات دی۔ یعنی هغه صفات چه الله تعالیٰ یے صالحینو بندګانو ته ورکوی۔ او دا دلیل عقلی دے۔ بُرُوْجًا، غټ ستورو ته وائی یا مراد ترے مورچے د څوکیدارملائیکو دی یا منزلونه د ښکاره کیدلو او په دے کښ چه ر بروج او شمس او قمر یے ذکر کړیدے) لطیفه اشاره ده تقسیم ته په صالحینو کښ درے قسمه کامل تیکان

وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ

او خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه جوړه کړيده شپه او ورځ

خِلْفَةً لِّمَنْ أَرَادَ أَنْ يَذَّكَّرَ أَوْ أَرَادَ

د يو بل نائب هغه چا لره چه اوغواړي چه نصيحت واخلي او غواړي

شُكُورًا ﴿۶۲﴾ وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِينَ

شکر کول - او خاص بندګان د رحمان هغه خلق دي

يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا وَّإِذَا

چه ګرځي په زمکه باندے په نرمئ او هر کله چه

خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ قَالُوا سَلٰمًا ﴿۶۳﴾

خبرے کوي د دوي سره جاهلان نو دوي ورته وائي د سلامتيا خبره -

درميانه بندګان عام مؤمنان او دا ټول د بکښ رنړا او زينت دے -

۶۲:- دا آخري عقلي دليل دے - خِلْفَةً نه مراد دا دے چه شپه او ورځ په يو بل پسے ندزدراځي او بله معنیٰ دا ده چه د يو بل خليفه او نائب دي - حديث صحيح کښ راغلي دي چه د چا نه ورد (عبادت) د ورځے پاتے شي نو د شپے دے اوکړي او چا نه چه ورد د شپے فوت شي نو د ورځے دے اوکړي د دے معنیٰ په مناسبت سره لِّمَنْ أَرَادَ أَنْ يَذَّكَّرَ اه ئے ذکر کړيدے - يَذَّكَّرَ نه مراد هغه څوک دے چه د شپے او د ورځے د حالاتو نه دليل اونيسي په توحيد د الله تعالیٰ باندے أَوْ أَرَادَ شُكُورًا د دے نه مراد طاعت د الله تعالیٰ دے پس د عقيدے د توحيد نه -

۶۳:- د دے نه پنځلس اوصاف د توحيد والو ذکر کوي يعني موحدينو باندے لازم دي چه په ځان کښ دا سے صفتونه پيدا کړي - او هر کله چه تير شوي آيت کښ ذاکرين او شاکرين ئے ذکر کړل نو اوس پدے آيا تونو کښ د هغه ذکر او شکر طريقے ذکر کوي او دغه پنځلس صفات دي - پدے آيت کښ ئے درے صفات ذکر کړے دي -

۱:- عِبَادُ الرَّحْمٰنِ يعني الله تعالیٰ رحمان را او برکت ورکوونکے) ګټري

# وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا

اودا هغه خلق دي چه شپه روتېره وي د پاره د رب خپل سجده کوونکي

او هغه لره بتي کي خاص کوي په خلاف د هغه کسانو چه د سجدے د رحمان نه انکار او نفرت کوي. په دې کښې اشاره شوه چه ټولو صفتونو نه پرو مبے توحيد دے - او په لفظ عباد الرحمٰن سره اشاره ده چه ټول قسمونه د عبادت الله لره خاص کوي که تعالیٰ عبادت دے او که نیکی ماموّرات په ځائے راوړل دي او که منهيّاتو نه ځان ساتل وي. عبادت د ځپو دے او که د لاسونو او د سترګو او د غوږونو او که د زړه دے او که د شر عبادت دے بدني دے او که مالي دے د الله تعالیٰ حق ادا کول دي او که د مخلوق پاے ټولو صفتونو ذکر په شوو کښې دے اقسامو ته اشاره ده په فکر کولو سره.

۶۳ الَّذِيْنَ يَمْشُوْنَ عَلَى الْاَرْضِ هَوْنًا . نرم رفتار نه مراد شرعي طريقے سره ګرځيدل دي تو د دے معيار سنت د نبي صلى الله عليه وسلم دے په اعتبار د کيفيت د رفتار او په اعتبار د مقصد د رفتار - او کيفيت د ګرځيدلو په سورة لقمان ۱۹ کښې وَاقْصِدْ سره ذکر کړے شوے يعني نه ډير تيز او نه ډير په مزه او دا رنګ نه په ډير ټيټ وي او نه په ډير تيغ وي بلکه لږ په مخے نه کوږ وي، لکه سړے چه کندے ته کوځيږي او مقصد د ګرځيدلو سنت طريقه دا ده چه د دعوت او تبليغ د پاره او اطاعت د پاره ګرځي د فساد او ګناه د پاره دے نه ګرځي بيا صرف ګرځيدل مراد نه دي بلکه تمام ژوند د سنت موافق تيرول مراد دي - او دا کنايه ده د عدم تکبير نه ځکه چه عدم تکبير منع د ګناهونو ده.

۶۳ وَاِذَا خَاطَبَهُمُ الْجٰهِلُوْنَ قَالُوْا سَلٰمًا ، يعني جاهلان خلق کوشش کوي چه دوي لره د صحيح رفتار نه منع کړي - که کنځل ورته کوي طعنونه او بهتانونه ورباندے جوړ وي نو دوي د هغوي نه ځان بچ کوي او حقه خبره ورته کوي د سلام يو معنیٰ تسلمًا او براءت او اعراض کول لکه سورة قصص ۵۵ کښې دي او بله معنیٰ صحيح او حقه ويينا کول دي.

وَّقِيَامًا ﴿٦٤﴾ وَالَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا

او اولاړ - او دا هغه کسان دي چه وائي اے ربه زمونږ

اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ ۖ إِنَّ عَذَابَهَا

واړوے زمونږ نه عذاب د جهنم يقيناً عذاب د هغے

كَانَ غَرَامًا ﴿٦٥﴾ إِنَّهَا سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ﴿٦٦﴾

دے تاوان - يقيناً دا ناکاره ځاے د آرام دے او ځاے د ډيره کيدلو دے -

س ٦٤ :- په دے آيت کښ څلورم صفت ذکر کړے دے مطلب دا چه تیرشوی آیت کښ د دوی د ورځے کارزچه دعوت د پاره گرځیدل دی) ذکرکړو نو په دے کښ د شپے عمل ذکرکړو اشاره ده چه د تبليغ او دعوت الى الحق د پاره د شپے عبادت او تهجد کول ضروری دی د پاره د استعانت او استغفار طلب کولو د الله تعالى نه - سجده او قيام ئے خاص ذکر کړل ځکه چه د شپے په تهجد کښ دا دواړه اوږده کول پکار دی او دا صفت ئے سورة السجدة س ١٦ کښ هم ذکر کړے دے -

س ٦٥ :- په دے کښ پنځم صفت ذکر دے مطلب دا چه سره د طاعت او عبادت کولو نه ويره د عذاب نه کوی لکه سورة مؤمنون س ٦٠ کښ. او دا مقصد د عبادت دے چه د عذاب د جهنم نه بچ شی يعنی وائی چه د دے عبادت توفیق په اسے طریقه سره راکړے چه د عذاب نه د بچ کیدلو سبب اوگرځی -

غَرَامَ هميشه لازم او تاوان او هلاکت ته وئیلے کیږی -

س ٦٦ :- په دے کښ عظمت د دغه عذاب ذکر دے يعنی دا عذاب ډير بد او ناکاره دے د دے وجے نه ويره کول ترينه ضروری دی.

مُقَامَ په پیښ د میم سره ځاے د اقامت او ډيره کيدلو ته وئیلے کیږی او په زور د میم سره ځاے د اودریدلو ته وائی -

وَالَّذِينَ إِذَآ أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ

او دا هغه کسان دي چه کله خرچ کوي نو حد نه تیریږي نه کوي او نه

يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا ﴿٦٧﴾ وَالَّذِينَ

شومتیا کوي . او دي په مینځ دَ دے کښ برابر (میانه حاله) . او دا هغه کسان دي

لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ

چه نه رابلي دَ الله تعالیٰ سره مددګار (حاجت روا) بل او نه وژني

النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا

نفس سره هغه چه حرام کړیدے الله تعالیٰ وژل دَ هغه بغیر دَ جرم شرعي نه او نه

يَزْنُونَ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ﴿٦٨﴾

زنا کوي او که چا اوکړو دا کارونه ملاقي به شي دَ سزا دَ ګناه سره۔

ف ۱:- په یکښ دریے (شپږم ، اووم ، اتم) صفتونه ذکر کوي تیر شوي صفتونو کښ طاعت کول په ماموراتو کښ ذکر کړل نو په یکښ دَ ګناهونو نه بچ کیدل ذکر کوي، دا رنګ مخکښ عبادت بدنیه ذکر وو او س عبادت مالیه ذکر کوي۔ اسراف ، خرچ کول دي په غیر دَ طاعت دَ الله او دَ رسول نه لکه خرچ کول په شرک او بدعاتو او فسق وفجور کښ ۔ اقتار . بخل کول دَ خرچ کولو نه په طاعت دَ الله او دَ رسول کښ لکه زکوٰة نه ورکول او په دعوت او جهاد کښ خرچ نه کول او نور فرض واجب نفقات نه کول هر کله چه په نفي دَ اسراف او اقتار سره وهم کیدلو چه بالکل خرچ نه کوي نه فرض نه واجب نو جواب او شو چه وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا نو دا دوه صفات سببيه دي او یو صفتِ ثبوتي دے ۔ قَوَام په طاعت دَ الله او دَ رسول کښ خرچ کول او دا رنګ سورة بني اسرائیل ف ۲۹ کښ هم تیر شوي دي۔

ف ۲:- په دے آیت کښ دریے صفات (نهم ، لسم ، یوولسم) ذکر کوي تیر شوي صفاتِ تلحیه وو او دا صفاتِ تخلیه دي یعني سلبیه دي یعني دَ مخکنو صفتونو په سبب دوي دَ مشرکانو دَ عملونو نه ځان بچ ساتي ۔ یو دَ هغے نه شرک في الدعاء دے ۔

يُضٰعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

زیاتی کیدے به شی هغه لره عذاب په ورځ د قیامت

وَيَخْلُدْ فِيْهٖ مُهَانًا ﴿٦٩﴾ اِلَّا مَنْ تَابَ وَ

او همیشه به وی په هغے کښی ذلیل کړے شوے. مګر هغه څوک چه توبه ئے اوکړه او

اٰمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَاُولٰٓئِكَ

ایمان ئے راوړو او عمل ئے اوکړو عمل نیک نو دغه کسان

يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِهِمْ حَسَنٰتٍ ؕ وَكَانَ

بدل به کړی الله تعالیٰ بدئ د دوی په نیکو سره ، او دے

اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿٧٠﴾ وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ

الله تعالیٰ بخنه کوونکے رحم کوونکے . او چا چه توبه اوکړه او عمل ئے اوکړو

مَعَ اللّٰهِ اشاره ده چه مشرک الله تعالیٰ منی اوکله یا الله مدد هم وائی لیکن کله غیر الله ته رامدد شه وائی پدے عقیدے سره چه دے زموږ حاجت روا او اختیارمند د نفع او ضرر او غیب دان دے او شرک سبب د قتل ظاهری دے او د قتلِ خفی دے (چه هغه زنا دے) ځکه و سره یوځائے ذکر کړل .

اَثَامًا ، په معنیٰ د جزاء اثام (سزه د ګناه) یا نوم د خاص کندے دے په جهنم کښی .

٦٩ :- دا تخویف دلیل دے چه دا تیرشوی کارونه د شرک او د حالت د کفر دی ځکه چه مضاعفه (زیاتیدل) د عذاب او همیشه والے او اهانت درے واړه خاص دی په کافر او مشرک پورے .

فِيْهٖ ، په یو قراءت کښی په ه لفظ کښی اتباع ده یاء طرف ته او دا اشاره ده چه په عذاب کښی بالکل خکته پراته دی .

٧٠ :- دا ترغیب دے توبه کولو ته د تیرشوے درے واړه ګناهونو ذکر کړے شوو ته .

يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِهِمْ حَسَنٰتٍ ، پدے کښی درے اقوال دی اول دا چه د دوی

صَالِحًا فَإِنَّهُ يَتُوبُ إِلَى اللَّهِ مَتَابًا ﴿٧١﴾

نیک عمل نو یقیناً دا کس ورګرځی الله تعالی ته په ورګرځیدلو۔

وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ وَإِذَا

او دا هغه کسان دی چه نه حاضریږی دروغو ته او هر کله چه

مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا ﴿٧٢﴾ وَالَّذِينَ

تیریږی په ناروا کار باندے ور تیریږی ځان بچ ساتونکی۔ او دا هغه کسان دی

ناکاره تومونه اوصفتونه بدل کړی په ښائسته تومونو اوصفتونو سره او دویم دا چه ګناهونه ورته معاف کړیشی او توفیق دَ نیک اعمالو ورکړے شی او دریم دا چه دَ دوی دَ عمل نامونه بداعمال وران کړے شی او دَ هغے په ځائے دَ اعمال صالحه اجر و ثواب ولیکلے شی۔

ف :- تیرشوی آیت کښې ذکروه توبه دَ مشرکانو دَ دے وجے نه په هغے کښې ئے امن ذکرکړے وو او پدے آیت کښې توبه ده دَ مؤمنانو ګنهګارانو۔

فَإِنَّهُ يَتُوبُ، دا علت دَ جزاء پټے دے یعنی توبه دَ دهٔ قبوله ده ځکه چه دَ دهٔ توبه په اخلاص سره ده۔ او دواړه آیاتونه دلیل دے چه توبه دَ قاتل عمدی هم صحیح ده او دا قول دَ ډیرو صحابو نه نقل دے۔

ف :- پدے آیت کښې دوه صفتونه ذکرکوی (دوسم، دیارلسم) او دَ دے صفتونو مقصد ځان بچ کول دی دَ اسبابو دَ ګناهونو نه۔

لَا يَشْهَدُونَ، دَ شهود نه مراد دادے چه نه حاضریږی او تماشے نه کوی یا دَ شهادت نه دے یعنی ګواهی دَ دروغو نه کوی۔

الزُّورَ، هر باطل ته وئیلے کیږی چه خائسته کړے شوے وی او پدے کښې داخل دے شرک، بدعات، فسق و فجور اخترونه دَ مشرکانو، عرسونه، میلے په قبرونو باندے، سینما ګهر، هغه لوبے چه هغے سره ګناهونه وی۔ اجتماعات او جلسے جلوسونه دَ شرک او دَ بدعاتو، مجلس دَ ټګ ټکور، کپا، مجلس دَ دروغو وئیلو او غیبت او بهتان وئیلو دا لفظ ټولو ته شامل دے ځکه دے کارونو ته او دَ دے مجلس ته حاضریدل او تماشے کول سبب دَ ډیرو ګناهونو دے۔

إِذَا ذُكِّرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوا

چه هر کله بیان کړشي دوی ته آیاتونه د رب خپل نه پرېوځي

عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا ﴿٧٣﴾ وَالَّذِينَ يَقُولُونَ

په هغې باندې کاڼه او ړانده - او دا هغه کسان دي چه وائي

رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا

اے ربه زموږه راوبخښه موږته د بيبيانو زموږنه او اولاد زموږنه

قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ﴿٧٤﴾

یخوالے د سترګو او اوګرځوئ موږ د متقیانو دپاره پېشوا -

اللَّغْوِ سرودونه، غزل خواني - مجالس د باطل اعمالو او ټول ګناهونه.

كِرَامًا، اعراض کوونکی، ځان ساتونکی يعنی هغوی سره نه کيني او نه ورته او دريږي او نه پرے خوشحالي کوی بلکه په وخت د تيريدلو کښې يې خوا ته لځ اړوي -

۷۳ :- دا څوارلسم صفت دے او دا صفت سبب دے د حاصلولو د ټولو صفاتو حسنو ځکه چه قرآن آوري په توجه سره او په هغې کښې غور او فکر کوی او په هغې باندې عمل کوی نو تیرشوی خائسته صفات پرے سره حاصليږي -

لَمْ يَخِرُّوا، کنايه ده د غفلت نه کولو نه - خَرُّوا يې دلته ځکه اوفرمائيل چه انسان په مجلس د قرآن لوستلو کښې غفلت اوکړي نو خوب ورباندې غالب شي نو سر يې مخے طرفته را اوغورځيږي -

۷۴ :- دا پنځلسم صفت دے يعنی تيرشوی صفتونه لکه چه ځان کښې غواړي نو دا رنګ په خپل اهل وعيال کښې دا صفتونه خوخوی -

قُرَّةَ أَعْيُنٍ، د سترګو يخ والے کنايه ده د خوشحالئ نه چه په کتلو سره حاصليږي يعنی مؤمن سړے چه دا صفتونه په خپل اهل وعيال کښې وينی نو خوشحاليږي نو معلومه شوه چه څوک د اهل وعيال په بد اخلاقئ بدکردارئ باندے خفه کيږي نه نو د هغه ايمان کښې نقصان دے -

أُولَٰئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوا

دغه صفتونو والا بندګان له به ورکړی شی دوېټه بنګلی په وجه د صبر کولو د دوی (پداغه کارونو باندی)

وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا تَحِيَّةً وَسَلَامًا ﴿٧٥﴾

او پیش کولی به شی دوئ ته په هغی کښ مبارکی او سلام -

خَالِدِينَ فِيهَا ۚ حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ﴿٧٦﴾

همیشه به وی دوی په هغی کښ ، خائسته دی دا بنګلی ځائے د اوسیدلو او ځائے د دیره کیدلو.

قُلْ مَا يَعْبَأُ بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَاؤُكُمْ ۖ

نه او به پروا نه کوی ستاسو په عذاب باندی رب زما که چرته نه وے بندګی ستاسو په تیر شوی

فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًا ﴿٧٧﴾

حالونو کښی تو یقیناً تکذیب اوکړ تاسو پس زر ده چه شی به عذاب په تاسو باندے لازم۔

وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ، دا په اصل کښ دعا ده د پاره د اهل وعیال په تقوی سره او هر سړے امام دے د خپل اهل وعیال د پاره یعنی دوی منقیان اوګرځوے د دے د پاره چه زه د متقیانو امام اوګرځم ، اِمَامًا جمع د آمٌّ ده یا مصدر دے په معنیٰ د جمع او مبنی للمفعول دے ۔ یا مفرد دے په معنیٰ د مقتدا سره ۔

۷۵ ، ۷۶ :- دا بشارت دے هرکله چه دا تیر شوی صفتونه په صبر سره حاصلیږی د دے وجے نه صَبَرُوْا یے ذکر کړو او هرکله دا صفتونه چه اوچت او عالی صفات دی نو جزاء به یے هم په جنت کښ اوچتے بنګلے وی ۔ فرق په مینځ د تحیه او سلام کښ دا دے چه تحیه د الله تعالیٰ د طرفنه ده او سلام د ملائکو او د ملګرو د طرفنه دے ۔ یا تحیة پیغام د بادشاهئ او د همیشوالی دے او د سلام معنیٰ مشهوره ده ۔ یا تحیه سلام دے او سلام په معنیٰ د مبارکئ دے په سلامتیا سره ۔ حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ، دا بل مقابل دے د ۶۶ ۔

۷۷ :- په دے آیت کښ تخویف دنیوی دے هغه چالره چه د دے مخکښ صفتونو نه مخالفت او تکذیب کوی او د دے سورت د مقصد نه انکار کوی ۔ په دے آیت کښ توجیهات دی مَا استفهامیه دے په معنیٰ د انکار ۔ یا نافیه دے او مفعول د دواړو د

بِكُمْ په عذاب ستاسو یا په بخته ستاسو۔ دُعَاۤؤُكُمْ، اول معنیٰ عبادتونه، ستاسو په مخکښې بیان کړے شوے صفاتوکښې تو دُعا په معنیٰ دَعبادت سره ده او دا معنیٰ دَ ایمان ده ځکه امام بخاری دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدی چه دُعا په معنیٰ دَ ایمان ده (اول باب دَ کتاب الایمان)۔ دوېیم مسند غوښتل ستاسو دَ الله تعالیٰ نه په مصیبتونوکښې پدی دواړو توجیهاتوکښې اضافت دَ دُعا دے فاعل ته۔ دریم دعوت دَ الله تعالیٰ تاسو لره توحید ته پدیکښې اضافت دَ دعا دے مفعول ته۔ څلورم بلنه ستاسو غیر الله لره په شرکي بلنے سره پدیکښې اضافت دَ دعا دے فاعل ته۔ په اولو دریے توجیهاتو سره دَ یکُمْ معنیٰ بعذابکم ده او په څلورمه معنیٰ کښې دَ بِکُمْ معنیٰ ده بمغفرتکم سره۔

(تفصیل دَ دے معانو دا دے)

اوله معنیٰ پرواه نه کوی یا څه پرواه به اوکړی الله تعالیٰ په عذاب ستاسو بانْدے که نه وے عبادت کول ستاسو الله تعالیٰ لره په طریقه دَعباد الرحمٰن سره یعنی ایمان ستاسو (دا خطاب دے مؤمنانو ته) فَقَدْ كَذَّبْتُمْ پس انکار اوکړو تاسو دَ دغه طریقے دَعبادت نه (اے کافرانو) نو زر دے چه عذاب به په تاسو پورے اونخلی۔

دوېیمه معنیٰ پروا نه کوی یا څه به اوکړی پروا الله تعالیٰ په عذاب ستاسو که نه وے (بلنه ستاسو دَ الله تعالیٰ په سختوکښې پس (روستو دَ دے نه) تاسو شرک اوکړو نو زر دے چه عذاب به تاسو سره اونخلی۔

دریمه معنیٰ. پرواه نه کوی الله تعالیٰ یا څه پرواه به اوکړی په عذاب ستاسو که نه وے دعوت دَ الله تعالیٰ تاسو لره توحید طرفته پس تاسو تکذیب اوکړو دَ دعوت دَ الله تعالیٰ نو زر ده چه عذاب به تاسو پورے اونخلی۔

څلورمه معنیٰ څه پرواه کوی یا پرواه نه کوی الله تعالیٰ ستاسو په بخنه کولو که نه وے بلنه ستاسو غیر الله لره په حاجتونو او مصیبتونوکښې پس انکار اوکړو تاسو په شرک کولو سره نو زر ده چه عذاب به تاسو پورے اونخلی۔

(تمّ تفسیر سورة الفرقان بفضله تعالیٰ)

سورۃ الشعراء مکیۃ | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | ایاتہا ۲۲۷ رکوعاتہا ۱۱

خاص پہ نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے

طٰسٓمٓ ① تِلۡکَ اٰیٰتُ الۡکِتٰبِ الۡمُبِیۡنِ ②

الله تعالیٰ د دې په معنیٰ بنه پوهه دے - دا آیاتونه د کتاب ښکاره دی -

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

سورۃ الشعراء

ربط :- د دے سورت د مخکښې سورت سره دا دے چه مخکښې دعوی د تبارک ذکر شوه نو په دے سورت کښې تسلی ورکوی نبی صلی الله علیه وسلم لره په نزول د عذاب سره په منکرینو باندے او په نجات سره مؤمنانو لره او نقلی دلیلونه ذکر کوی په دغه مسئله باندے دا رنګ مخکښې عقلی دلیلونه ذکر کړے شول په دعوی د تبارک باندے نو اوس نقلی دلیلونه د انبیاء علیهم السلام نه ذکر کوی -

دعوی د دے سورت - تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په دیرو طریقو سره اول په هلاکت د منکرینو او په نجات د مؤمنانو سره - دوېم په بیان د صدق د رسول سره په آخر د سورت او په دفع د اوو شبهاتو سره د هغۀ نه او دعوی د سورت په سلا ، سلا کښې ذکر ده او تفصیل د هغے دے په سه ، سو کښې -

خلاصه د دے سورت دا ده چه په دے سورت کښې درے بابونه دی اول باب تر سلا پورے دے په یکښې ترغیب دے قرآن ته بیا دعوی د سورت ئے ذکر کړے ده بیا درے زجرونه دی اول په اعراض کولو سره په سه دوېم په تکذیب کولو سره په سلا درېم استکبار د دلیل عقلی نه په سه کښې - بیا تفصیل د دعوی د سورت دے په دوه آیاتونو کښې .

تفسیر :- سلا :- دا د مقطعاتو نه دے خبره دا ده چه د دے په معنیٰ موږ نه پوهیږو او مقصد ئے بیان د اعجاز د قرآن کریم دے په ابتداء د سورت کښې -

سلا :- د دے آیت کښې ترغیب دے قرآن ته او مضمون د دے سورت ته -

اَلۡمُبِیۡنِ کښې اشاره ده تفصیل د واقعاتو د انبیاء علیهم السلام ته د پاره د دلیل نقلی -

لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ أَلَّا يَكُونُوا مُؤْمِنِينَ ③

آیا ته وژونکے ځان خپل په دې وجه چه دوی ایمان نه راوړی.

إِن نَّشَأْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِم مِّنَ السَّمَاءِ آيَةً

که چرے اوغواړو موږ را اوبه لیږو موږ په دوی باندے د طرف د آسمان نه نخښه

فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَاضِعِينَ ④ وَمَا

نو شی به سټونه د دوی هغے ته عاجزی کوونکی. او نه

يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ مِّنَ الرَّحْمَٰنِ مُحْدَثٍ

راځی دوی ته څه یاداشت د رحمان د طرف نه چه نوے دی راتلل د هغے

إِلَّا كَانُوا عَنْهُ مُعْرِضِينَ ⑤ فَقَدْ كَذَّبُوا

مګر دوی د هغے نه مخ اړوونکی دی. پس یقینًا دروغژن کړی دوی حق لره

فَسَيَأْتِيهِمْ أَنبَاءُ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ⑥

نو زر دے چه راشی دوی ته عاقبت د هغه چه وو دوی چه هغے پورے توقے کولے.

سـ۳، سـ۴:- په یکښ دعوی د سورت ده یعنی تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چه د دوی په انکار کولو باندے د خفګان د وجے ځان مه وژنه د دوی ایمان د الله تعالی په اختیار کښ دے لیکن الله په دوی باندے جبر نه کوی ځکه جبری ایمان مقصود نه دے.

لَعَلَّكَ دا په معنی د استفهام انکاری دے او دا سے لفظ په سورة کهف سـ۶ کښ تیر شوے دے.

أَعْنَاقُهُمْ، مشران، ډیرے ډلے، سټونه درے واړه معانے کیدے شی.

إِن نَّشَأْ مفعول د دے محذوف دے (الایمان بالجبر).

فَظَلَّتْ، ظل دلالت کوی په همیش والی سره د ښکاره والی نه.

سـ۵، سـ۶:- په یکښ زجر دے په درے کارونو سره اعراض، تکذیب او استهزاء.

مُحْدَثٍ، یعنی په نزول کښ نوے دے یا د دوی په ګمان کښ نوے دے دا سے سورة انبیاء سـ۲ کښ هم تیر شوے دی او هر کله چه سورة الانبیاء کښ

أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الْأَرْضِ كَمْ أَنْبَتْنَا
آیا دوی نه گوری زمکې ته چه څومره راز رغون کړیدی موږ
فِيهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ⑦ إِنَّ فِي
په هغې کښې د هر قسم بوټي فائده مند نه۔ یقیناً په
ذَٰلِكَ لَآيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُؤْمِنِينَ ⑧
دیکښې خامخا عبرت دے، او نه دی اکثر د دوی نه مؤمنان۔
وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ⑨
او یقیناً ستا رب خامخا زورآور دے (په دښمنانو باندې) خاص رحم کوونکے دے په دوستانو باندے۔

تفصیل د احوالو د غافلینو مقصود وو نو هلته ئے یلعبون ذکر کړیدے او په دے سورت کښې د معرضینو او منکرینو ذکر مقصود دے د دے وجے نه روستو ذکر د تیر شوو قومونو دے چه هغوی اعراض او انکار کړیوو د دے وجے نه دلته مُعْرِضُوْن ئے ذکر کړیدے۔
اَنْبَآءُ جمع د نبا ده مراد د دینه خطرناک او عظیم الشان خبر دے چه هغه عذاب دے۔
سَ:۔ په دیکښې زجر دے په اعراض کولو سره د دلیل عقلی نه روستو د ذکر کولو د اعراض د ذکر (قرآن) نه۔ او په دے دلیل کښې زمکه او بوټي د زمکے قسما قسم سره د مختلفو فائدو نه مراد دی۔
شه س:۔ دا تفصیل د دعوے د سورت دے یعنی آیات په قرآن کښې او زمکه او نباتاتو کښې ډیر دی لیکن دوی د ضد او عناد د وجے نه انکار کوی او دا سبب د عذاب دے او الله تعالی عَزِیْزٌ دے یعنی عذاب ورکوی منکرینو ته۔ او رَحِیْمٌ دے ۔ یخ کوی د عذاب نه مؤمنانو لره او دا جملے په دے سورت کښې اته کرته ذکر شوی دی۔ او اشاره ده چه دا سبب د عذاب تکذیب (عدم ایمان) دے۔ د دے وجے نه روستو بیا قصّے د انبیاء علیهم السلام ئے په کذبت سره شروع کړے دی۔

وَإِذْ نَادٰى رَبُّكَ مُوْسٰى أَنِ ائْتِ الْقَوْمَ

او کوم وخت چه آواز او که ستا رب موسٰی علیه السلام ته چه لاړ شه قوم

الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۰﴾ قَوْمَ فِرْعَوْنَ ۚ أَلَا يَتَّقُوْنَ ﴿۱۱﴾

ظالمانو ته - چه قوم د فرعون دے، آیا دوی ځان د کفرنه نه بچ کوی۔

قَالَ رَبِّ إِنِّيْ أَخَافُ أَنْ يُّكَذِّبُوْنِ ﴿۱۲﴾

اوئیل موسٰی اے ربه زما یقیناً زه ویریږم چه دوی به ما ته دروغژن اووائی -

۱۰:- خلاصه :- د دے آیت نه دویم باب دے تر ۱۹۱ پورے په دے کښ د اوؤ انبیاؤ علیهم السلام واقعات ذکر کوی او په هغے کښ دریے فائدے دی اول دا نقلی دلیلونه دی په دعوی د سورت فرقان بانـدے - دویم دا نمونے د عذاب دی په منکرینو باندے - دریم دا تسلی ده پیغمبر او مؤمنانو لره په نجات ورکولو د عذابونو د دنیا نه او د عذاب د آخرت نه -
بیا د دے آیت نه تر ۶۸ پورے واقعه د موسٰی علیه السلام ده په تفصیل سره او په دے کښ څلور مقامات دی اول مقام تر ۱۷ پورے دے په دے مقام کښ رسالت د موسٰی علیه السلام ذکر کوی او دوه ویرے د هغه نه لرے کول او په باره د دوو کښ دعا د رسالت قبلول او مقصد د رسالت ذکر کړیدے -
تفسیر :- په دے آیت ۱۰ کښ ندا د رب موسٰی ته اجمالاً ذکر کړیده او تفصیل د هغے په سورة طٰه کښ تیر شویدے -
۱۱:- په دے آیت کښ ئے خلاصه د دعوت ذکر کړیده چه تقوٰی ده او په دے سورت کښ ئے د ټولو انبیاؤ په دعوت کښ تقوٰی ذکر کړیده او دا اتفاقی مسئله ده - مراد د تقوٰی نه د هر قسم شرک او کفر نه بچ کیدل دی -
۱۲:- په دے کښ اول خوف ئے د هغه د تکذیب ذکر کړیدے او دا خوف د موسٰی د فرعونیانو د تکبر د وجے نه دے - د مخکښ نه د موسٰی علیه السلام تجربه وه په دوی باندے -

وَيَضِيقُ صَدْرِي وَلَا يَنْطَلِقُ لِسَانِي

او تنګه به شي سینه زما او نه به چلیږي ژبه زما

فَأَرْسِلْ إِلَىٰ هَارُونَ ﴿١٣﴾ وَلَهُمْ عَلَيَّ

نو اولیږه (روح) هارون علیه السلام ته۔ او د دوی په ما باندې

ذَنْبٌ فَأَخَافُ أَنْ يَقْتُلُونِ ﴿١٤﴾ قَالَ كَلَّا

جرم دے نو ویریږم چه دوی به قتل کړي ما لره۔ او فرمائیل الله تعالیٰ هیڅ کله نشي کو...

فَاذْهَبَا بِآيَاتِنَا إِنَّا مَعَكُمْ مُسْتَمِعُونَ ﴿١٥﴾

نو لاړ شئ دواړه په معجزاتو زمونږ سره یقیناً مونږ سره ستاسو آوریدونکي یو۔

سلا پدیکښ دوه حالات ئې ذکر کړیدي په ترتیب سره او عطف د سبب دے په سبب باندې۔ یعنې تکذیب سبب د تنګوالي د زړه دے او تنګوالے د زړه سبب د ژبې د بندیدو دے ځکه چه بعضې انسان غصه او خفه شي تو خبرے نشي کولے او دا دواړه اسباب دي د دعا غوښتلو د پاره د ملګرتیا د هارون علیه السلام۔

سلا:۔ پدیکښ ئې دویم خوف ذکر کړے دے۔ وَلَهُمْ لفظ دلیل دے چه موسیٰ علیه السلام دغه وخت صرف د فرعونیانو مجرم وو د الله تعالیٰ مجرم (ګنهګار) نه دے پدغه قتل سره ځکه چه دا قتل ګناه نه وو۔ او معلومه شوه چه خوف د اسبابو د لاندې د پیغمبرانو د شان نه لرے خبره نه ده۔

سلا:۔ دا تسلي ده په لرے کولو د دویم خوف سره او تثبیت ورکول دي دے دواړو ته۔ خوف د موسیٰ علیه السلام په اصل کښ خوف د دواړو رونړو دے ځکه چه د دواړو مقصد یو دے د دے وجې نه صیغه د تثنیه د فاذهبا ذکر کړو او ذکر د آیاتو په سورة اعراف او طه کښ شوے دے۔

فَأْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُولَا إِنَّا رَسُولُ

نو لاړ شئ دواړه فرعون ته نو ووایئ چه یقینًا مونږ (زمونږ) رالیږلے شوی یو

رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۶﴾ أَنْ أَرْسِلْ مَعَنَا بَنِيٓ

دَ طرف دَ رب العالمین نه. چه را پریږده زمونږ سره بنی

إِسْرَآءِيْلَ ﴿۱۷﴾ قَالَ أَلَمْ نُرَبِّكَ فِيْنَا

اسرائیلو لره. اوویل فرعون آیا پالله نه ده ستا مونږ په کور زمونږ کښ

وَلِيْدًا وَّلَبِثْتَ فِيْنَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِيْنَ ﴿۱۸﴾

وړوکے وے او وسیدل کړیدی تا زمونږ سره دَ عمر ستا نه ډیر کلونه.

۱۶، ۱۷ :- په دې کښ دوه مقصدونه دَ رسالت ذکر کړے شویدی اول مقصد رسالت دَ رب العالمین یعنی دعوت ورکول توحید دَ ربوبیت دَ الله تعالیٰ ته. دویم مقصد مظلوم قوم مؤحدین دَ ظالمانو نه خلاصول دَ پاره دَ دے چه هغوی دینِ توحید قائم کړی. او دا دواړه دَ پاره دَ اعلاءِ دَ کلمة الله دی او جهاد دے په سورة طٰه ۴۷ کښ تفصیل دَ رسالت مقصد وو او رسالت دَ دواړو (موسیٰ او هارون علیهما السلام) مستقل وو نو ځکه تثنیه (رسولا) ذکر کړے وو او دلته اختصار مقصد دے نو رسول مفرد په معنیٰ دَ جنس سره ئے ذکر کړو یا په عبارت کښ تقدیر دے یعنی کل واحدٍ منا رسول.

۱۸ :- خلاصه :- دَ دے آیت نه دویم مقام دے تر ۳۳ پورے په دې کښ جواب دے دَ خلورو شبهاتو دَ فرعون په موسیٰ علیه السلام باندے او تفصیل دَ عالمین دے دَ پاره دَ وضاحت دَ لفظ دَ رب العالمین او بیا اظهار دَ دوؤ معجزاتو دے.

تفسیر :- په دے آیت ۱۸ کښ اوله شبهه ده یعنی تحقیر دَ موسیٰ علیه السلام دے په احسان ذکر کولو سره یعنی ورکوتوالی کښ ستا تربیت مونږ کړے وو او تر ځوانئ پورے عمر دے مونږ سره تیر کړیدے مونږ درله خوراک څکاک وغیره درکړیدے نو زما احسان نه منے؟

وَفَعَلۡتَ فَعۡلَتَكَ الَّتِیۡ فَعَلۡتَ وَاَنۡتَ

او کړیدې تا کار ستا هغه چه تا کړیوو په اسې حال کښې چه ته

مِنَ الۡكٰفِرِیۡنَ ﴿۱۹﴾ قَالَ فَعَلۡتُهَاۤ

دَ ناشکرو نه وې . اُووئیل موسٰی علیه السلام کړیوو ما دغه کار

اِذًا وَّاَنَا مِنَ الضَّآلِّیۡنَ ﴿۲۰﴾ فَفَرَرۡتُ مِنۡكُمۡ

په هغه وخت او زۀ اوم دَ ناخبرو نه . نو او تختیدم ستاسو نه

او دویمه شبه چه دلته کښې تا عمر تیره وړې نو دا دعوٰی (دَ رسالت) څو تا نه کوله او س څنګه دعوٰی کوې .

ﻫ۱۹:- دا دریمه شبه ده چه ستا زمونږ دَ احسانا تو نه زمونږ دَ قوم سړې دې قتل کړیدې .

وَاَنۡتَ مِنَ الۡكٰفِرِیۡنَ ، یعنی ته په دې قتل کولو سره کافر شوې یې یا زما ناشکري دې کړیده یا چه مونږ ته کافر وائې نو هغه وخت ته هم زمونږ سره زمونږ په شان ته کافر وې دا ټول معانې مراد کیدې شي . او فرعون دَ رعب دَ وجې نه تصریح په قتل کولو سره نشي کولې صرف فعل لفظ ئې ذرې کړ ته ذکر کړیدې .

ﻫ۲۰:- دا جواب دې دَ دریمې شبهې دا جواب ئې دَ دې وجې نه مخکښې راوړو چه دا دینی اعتراض او بل تاسی وه نو دَ دې صفائي مخکښې پکار ده : مِنَ الضَّآلِّیۡنَ ، مراد دَ دینه ګمراهي مقابل دَ هدایت هرګز نه ده ځکه چه انبیاء علیهم السلام دَ ګمراهئ نه معصوم وي ، بلکه مراد دَ ضلال نه خطائي ده یعنی زۀ پوهه نوۀم چه دا قبطی به په موکه باندې مړ کیږي یعني ما اراده دَ قتل نه وه کړې بلکه دَ دۀ دَ دفع کولو په اراده مې موکه (سوک) وهلې وه . او قتل خطائي ګناه نه دې . دویم دا چه ضلال په معنیٰ دَ ناخبرئ دې لکه وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰی (الضحٰی ـ ۷) یعنی ما ته دَ الله تعالٰی دَ طرفه هیڅ خبر او وحی نه وه راغلې چه قتل کول دَ قبطی چه ظلم هم کوی او په دار حرب کښې وی او کافر وی ناجائز دې نو معلومه شوه چه څوک په دې قتل سره موسٰی علیه السلام ته دَ ګناه

لَمَّا خِفْتُكُمْ فَوَهَبَ لِي رَبِّي حُكْمًا

هر کله چه او ویریدم ستاسو نه نو را او بخښله ماته رب زما　پوهه　مضبوطه

وَّجَعَلَنِي مِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿۲۱﴾ وَتِلْكَ

او جوړ ئے کړم زه　دَ　پیغمبرانو نه.　او (دا آیا) دا څه

نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ أَنْ عَبَّدتَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ ﴿۲۲﴾

نعمت دے چه ته ئے زیاته کوے په ما باندے چه خدمتونه دِ اخستے دی دَ بنی اسرائیلو نه.

کبیره نسبت کوی نو دے مخپله په گناهِ کبیره کښں اختته شو ځکه چه قتل کول دَ کافر چه ظلم هم کوی او دارحرب کښں وی او دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه پدے باره کښں دَ مخکښں نه حکم نه وی راغلے او قصد دَ قتل ئے هم نه وو شوے دا دَ نبوت سره هیڅ منافات نه لری. (دا رنګ تفسیر قرطبی کښں ذکر کړے دی) صرف دومره خبره کیدا یشی چه موسیٰ علیه السلام نه بے احتیاطی او شوه نو خلاف اولیٰ کار دے چه دَ مقربینو دَ شان سره مناسب نه وؤ دَ دے وجے نه موسیٰ علیه السلام دَ هغے نه استغفار کړیدے (لکه چه په سورة قصص کښں په راشی) او الله تعالیٰ ورته مغفرت کړیدے.

۲۱:- یعنی دَ وطن نه هجرت کول زما دَ دنیا پرستئ یا دَ سرکشئ دَ وجے نه نه دی بلکه ستاسو دَ خوف دَ ظلم دَ وجے نه دی.

فَوَهَبَ لِي رَبِّي حُكْمًا. جواب دے دَ دویمے شبهے یعنی دَ دے قول وَلَبِثْتَ فِينَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ. یعنی ما دعویٰ دَ رسالت دَ ځان نه نه شوه کولے لیکن هر کله چه روستو دَ هجرت نه الله تعالیٰ ماته پوهه او رسالت راکړو نو ځکه اوس دعوی دَ رسالت کووم.

۲۲:- دا جواب دَ اولے شبهے دَ فرعون دے او پدیکښں دیر توجیهات دی اوله توجیه دا استفهام تقریری دے یعنی اقرار دے په احسان دَ فرعون باندے چه تا دَ نورو بنی اسرائیلو نه خدمتګاران جوړ کړے وو او زه دے دَ دینه معاف کړے ووم دا احسان ستا منم.

دویمه توجیه دا استفهام انکاری دے یعنی آیا دا څه احسان دے چه زما قوم نه دِ غلامان جوړ کړیوؤ او هغوی دِ ذلیل کړے وؤ او دَ هغوی تذلیل

قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۳﴾ قَالَ

| اُوئیل فرعون او څوک دے رب العالمین ۔اُوئیل موسٰی |
|---|

رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۭ

| اختیارمند دَ آسمانونو او دَ زمکے او دَ مینځ دَ دے دواړو ، |
|---|

اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ ﴿۲۴﴾ قَالَ لِمَنْ حَوْلَهٗٓ

| که تاسو یقین کوونکی یئ ۔اُوئیل فرعون هغه چا ته چه گیر چاپیره وو دَ ده |
|---|

خو زما تذلیل دے ځکه مشهور متل دے چه (مَنْ اُعِيْنَ قَوْمُهٗ ذَلَّ) ۔
دریمه توجیه او استفهام انکاري دے یعنی دا څه احسان دے چه ته یې
په ما باندے زیاد وے چه تا ذلیل کړے وُ بني اسرائیل پدے وجه چه
تا دَ هغوی ځامن قتل کول نو هغوی دَ ویرے دَ وجے ته مالره دریاب کښ
اوغورځوو او تاسو زۀ دَ دریاب نه را اوچت کړم او ستا بی بی زۀ دَ ولد
پشان اونیولم یعنی زما تربیت ستاسو په کور کښ ستاسو دَ ظلم نتیجه ده.
څلورمه توجیه۔ استفهام انکاری دے یعنی دا څه احسان دے چه په
ما باندے زیاد وے بلکه تا خد متونه اخستل دَ بني اسرائیلو نه هغوی
په زمینداري وغیره خدمتونو کښ مال گټلو نو تا په هم خوړله او ځکه
اوما هم دَ هغے مال نه خوراک څکاک کولو نو حقیقت کښ دَ بني اسرائیلو
احسان دے په تا باندے او په ما باندے۔
۲۳: دا څلورم سوال دے دَ فرعون په طریقه دَ تلبیس سره په قوم
باندے مراد دده دا وُه چه عالمین خو صرف دَ مصر ختق دي او دَ دوی
نظام خوزۀ چلوم نو رب العالمین زۀ یم بل څوک دے یعنی دَ عالمین
مقصد ئے نه پیژندلو۔
۲۴: نه تر ۳۳ پورے پدے آیاتونو کښ بیان دَ مضاف الیه دے
یعنی العالمین۔ ځکه چه فرعون دهوکه ورکوله خپل قوم ته په معنٰی
دَ العالمین سره نو موسٰی علیه السلام اول علویات سفلیات وسطیات
بیان کړل ، نو فرعون مخاطبینو ته تعجب ورکوؤ دَ پاره دَ دے چه قول
دَ موسٰی علیه السلام په دوی باندے څه اثر او نکړی بیا موسٰی علیه السلام

أَلَا تَسْتَمِعُونَ ﴿٢٥﴾ قَالَ رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمُ

آیا تاسو غوږ نه دئ - اوئیل موسی علیه السلام اختیار مند ستاسو دے او اختیار مند ستاسو د مشرانو

الْأَوَّلِينَ ﴿٢٦﴾ قَالَ إِنَّ رَسُولَكُمُ الَّذِي

زوړو دے - اوئیل فرعون یقیناً رسول ستاسو هغه چه

أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ لَمَجْنُونٌ ﴿٢٧﴾ قَالَ رَبُّ الْمَشْرِقِ

رالیږلے شوے دے تاسو ته خامخا لیونے دے - اوئیل موسی اختیار مند د مشرق

وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٢٨﴾

او مغرب او د مینځ د دے دواړو دے، که چرے تاسو عقل لرئ -

قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ إِلَٰهًا غَيْرِي لَأَجْعَلَنَّكَ

اوئیل فرعون که چرے او دِ گرځولو اختیار مند زما نه سوا خامخا زه به او گرځوم تالره

مِنَ الْمَسْجُونِينَ ﴿٢٩﴾ قَالَ أَوَلَوْ جِئْتُكَ

د جیلیانو نه - اوئیل موسی علیه السلام آیا اگرچه راوړم زه تا ته

بِشَيْءٍ مُبِينٍ ﴿٣٠﴾ قَالَ فَأْتِ بِهِ إِنْ كُنْتَ

دلیل ښکاره - اوئیل فرعون پس راوړه هغه که چرے ته یئے

موجوده انسانان او مشران ذکر کړل دا سخت حجت وو په فرعون باندے چکه چه موسی علیه السلام واضحه کړه چه ستاسو د آباؤ اجداد دو په وخت کښں دا فرعون نه وو نو د هغوی رب څوک وو؟ د دے وجے نه فرعون سختی اوکړه او موسی علیه السلام باندے د مجنون حکم ئے اوکړو - بیا موسی علیه السلام اطراف د زمکے ذکر کړل اشاره ئے اوکړله چه د مصر ته بهر نوره دنیا هم شته نو د هغے رب څوک دے په دے خبره د فرعون غصه زیاته شوه نو دباؤ ئے اوکړو چه زه به تا جیل ته واچوم -

إِلَٰهًا غَيْرِي یعنی فرعون قوم ته د خپل عبادت کولو امر کړے وو او

مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿٣١﴾ فَاَلْقٰى عَصَاهُ فَاِذَا

دَ رشتينو نه۔ نو گذار یې کړله همسا خپله نو ناګهانه

هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ﴿٣٢﴾ وَّنَزَعَ يَدَهٗ

هغه اژدها وه ښکاره۔ او راویستلو یې لاس خپل

فَاِذَا هِيَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ ﴿٣٣﴾ قَالَ لِلْمَلَاِ

نو ناګهانه هغه سپین وو کړاړه دَ نظر کوونکو۔ اوویل فرعون عښانو ته

حَوْلَهٗۤ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ﴿٣٤﴾ يُّرِيْدُ

چه چاپیره وو دَ هغه ته یقیناً دا جادوګر ښه پوهه دے۔ غواړی

نور آلهه یه په امر دَ فرعون سره جوړیدل ځکه یې اِلٰهًا غَيْرِيْ اوویل یعنی غَيْرِ اِذْنِيْ (بغیر دَ اجازت زما نه) لیکن موسٰی علیه السلام باندے هیڅ خوف او رعب اثر او نه کړلو او دوه معجزات یې په طلب دَ فرعون سره پیش کړل۔

بِشَيْءٍ مُّبِيْنٍ، مراد دَ دینه دوه غټ معجزات دی۔

فائده :- هر کله چه په آسمانونو زمکو او مابین کښ فکر کولو سره شک لرے کیږی او یقین پیدا کیږی نو اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ یې دَ هغے سره ذکر کړو او دَ اطرافو دَ مشرق او مغرب او مابین دَ پاره دَ عقل ضرورت دے او دا رنګ فرعون په موسٰی علیه السلام دَ مجنون (بے عقله) حکم اوکړو نو موسٰی علیه السلام دَ هغه په رد کښ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ اوویل۔

۳۳ :- خلاصه :- دَ دے آیت نه تر ۵۱ پورے دریم مقام دے په دےکښ مقابله دَ ساحرانو دَ موسٰی علیه السلام سره ده او بیا مغلوبیت دَ هغوی او ایمان راوړل او تثبت په مقابله دَ فرعون کښ ذکر کوی۔

تفسیر :- پس دے آیت ۳۴ کښ قول دَ فرعون خپلو ارکینو دَ شوری سره ذکر کوی دَ دهٔ دَ قول نه روستو داسے قول ارکینو دَ شوری یو بل سره کړے دے لکه چه سورة الاعراف ۱۰۹ کښ ذکر شوے دی۔

أَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ أَرْضِكُمْ بِسِحْرِهِ ۖ

چه اوباسی تاسو لره د ملک ستاسو نه په جادو خپل سره

فَمَاذَا تَأْمُرُونَ ﴿٣٥﴾ قَالُوا أَرْجِهْ

نو څهٔ مشوره کوئ تاسو. اوئیل دوی مهلت ورکړئ دهٔ لره

وَأَخَاهُ وَابْعَثْ فِي الْمَدَائِنِ حَاشِرِينَ ﴿٣٦﴾

او ورور د دهٔ لره او اولیږه په ښارونو کښی راجمع کوونکی.

يَأْتُوكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيمٍ ﴿٣٧﴾

چه راولی تاته هر غټ جادوګر ښهٔ پوهه.

فَجُمِعَ السَّحَرَةُ لِمِيقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿٣٨﴾

پس راجمع کړے شول جادوګر وخت مقرر د ورځے معلومے ته.

وَقِيلَ لِلنَّاسِ هَلْ أَنْتُمْ مُّجْتَمِعُونَ ﴿٣٩﴾

او اُوئیلے شو خلقو ته آیا تاسو جمع کیدونکی یئ (ضرور جمع شئ).

۳۵ :- دا بدنامه لګوی په موسیٰ علیه السلام باندے چه د هغه د دینی مقصد نه په دنیوی مقصد سره تعبیر کوی۔

۳۶ ، ۳۷ :- هرکله چه موسیٰ علیه السلام معجزے ته شَيْءٍ مُّبِينٍ اُوئیل نو دوی د مقابلے د پاره سَحَّارٍ په مبالغے سره اوئیل۔ أَرْجِهْ په اصل کښ أَرْجِهِ دے لیکن د تخفیف د پاره هاء ئے په سکون سره ذکر کړیده دا د ارجاء نه اِفْعَلْ شویدے په معنیٰ د روستوکولو ومهلت ورکولو سره۔

۳۸ ، ۳۹ :- يَوْمٍ مَّعْلُومٍ نه مراد یوم الزینة ده چه د مقابلے د پاره مقرر کړے شو یوه۔

وَقِيلَ لِلنَّاسِ هَلْ أَنْتُمْ، دلته استفهام په معنیٰ د امر سره دے او قیل سره ئے تعبیر د تعمیم د قائلینو د وجے نه کړے دے یعنی ګیرچاپیره دیر اعلانونه اوکړے شو۔

لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ السَّحَرَةَ اِنْ كَانُوْا هُمُ

دپاره د دے چه تابعداري اوکړو د جادوګرو که چرے دوی

الْغٰلِبِيْنَ ﴿۴۰﴾ فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ قَالُوْا

زورآور شی ۔ پس هرکله چه راغلل جادوګر دوی اوئیل

لِفِرْعَوْنَ اَئِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ

فرعون ته آیا دی به زمونږ دپاره بدله که چرے مونږ

الْغٰلِبِيْنَ ﴿۴۱﴾ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ اِذًا لَّمِنَ

زورآور شو ۔ اوئیل فرعون او ، او یقیناً تاسو به دغه وخت خامخا

الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿۴۲﴾ قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰٓى اَلْقُوْا

د نزدے مرتبے والو نه یئی ۔ اوئیل دوی ته موسیٰ علیه السلام اوغورځوئ

مَآ اَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ ﴿۴۳﴾ فَاَلْقَوْا حِبَالَهُمْ

هغه څه چه تاسو غورځوونکی یئی ۔ نو اوغورځولے دوی رسئ خپلے

وَعِصِيَّهُمْ وَقَالُوْا بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ

او همساګانے خپلے او اوئیل دوی قسم دے په عزت د فرعون بانے

سلا:۔ د دوی یقین دا وو چه ساحران به غالب کیږی ځکه چه د تابعداری فیصله ئے اوکړه صرف په اعتبار د ظاهر سره طریقه د شرط سره ئے ذکر کړه ۔

سلا ، ۴۲ :۔ باطل پرست هر کار د دنیا د مقصد دپاره کوی د دے وجے نه هغوی د اجرت طلب اوکړو په دے سورت کښ په واقعه د مقابله کښ تفصیل او تاکید دیر دے د دے وجے نه اِنَّ سره همزه د استفهام او لفظ د اِذًا ئے اضافه کړیدی او دا په سورة اعراف کښ نه وو ۔

سلا:۔ د سورة اعراف ۱۱۵ او طه ۶۵ په قرینے سره دا قول د موسیٰ علیه السلام د قول د ساحرانو نه روستو دے نو معنیٰ دا ده چه اوئیل موسیٰ علیه السلام دوی ته پس د وئیلو د دوی نه ۔

إِنَّا لَنَحْنُ الْغَالِبُونَ ﴿۴۴﴾ فَأَلْقَىٰ مُوسَىٰ

یقیناً مونږ خامخا زور آور یو۔ نو اوغورځوله موسیٰ علیه السلام

عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ ﴿۴۵﴾

همسا خپله نو ناڅاپه هغې تیرکړل هغه چه دوی ډ ځان نه جوړ کړي وو۔

فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سَاجِدِينَ ﴿۴۶﴾ قَالُوا آمَنَّا

پس اوغورځولے شول جادوګر سجده کوونکی۔ اُوئیل دوی ایمان راوړے دے مونږ

بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿۴۷﴾ رَبِّ مُوسَىٰ وَهَارُونَ ﴿۴۸﴾

په رب العالمین باندے۔ چه رب ډ موسیٰ او هارون دے۔

قَالَ آمَنتُمْ لَهُ قَبْلَ أَنْ آذَنَ لَكُمْ ۖ

اُوئیل فرعون آیا ایمان راوړو تاسو په ده باندے مخکښ ډ دینه چه اجازت کړے ما تاسو ته،

إِنَّهُ لَكَبِيرُكُمُ الَّذِي عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ ۖ

یقیناً دے خامخا مشر ستاسو دے هغه چه خودلے دے تاسو ته جادو

فَلَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ۚ لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ

پس خامخا زر ده چه پوهه به شئ تاسو، خامخا پرے به کړم لاسونه ستاسو

۱۹ ۔ فرعون دعوی ډ عزت کوله او ډ دے وجے نه موسیٰ علیه اسلام ته ئے مهین (سورة زخرف ۵۲ کښ) وئیلے دی نو هغه وخت عادت داوو چه قسم به ئے ډ فرعون په عزت باندے کوو۔ او شریعت ډ الله تعالیٰ کښ قسم په غیر الله او ډ غیر الله په صفاتو باندے شرک دے دا سے حدیث امام ترمذی نقل کړیدے۔ مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللهِ فَقَدْ أَشْرَكَ (الحدیث)۔

۴۰ نه تر ۵۱ پورے تشریح په سورة طٰه کښ ذکر کړے شویده خو فرق په څو طریقو سره دے۔

اول دا چه سورة طٰه او اعراف کښ خوف ډ موسیٰ علیه السلام ئے ذکر کړیوو بیا ورته وحی وکړے شوه چه همسا اوغورځوه۔ او په دے سورت

وَ اَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ وَّ لَاُصَلِّبَنَّكُمْ

او ښپې ستاسو ادل بدل او خامخا پاسي به کړم

اَجْمَعِیْنَ ﴿۴۹﴾ قَالُوْا لَا ضَیْرَ ؗ اِنَّاۤ اِلٰی رَبِّنَا

تاسو ټول. - اوئیل دوی هیڅ پروا نشته یقیناً مونږ خپل رب ته

مُنْقَلِبُوْنَ ﴿۵۰﴾ اِنَّا نَطْمَعُ اَنْ یَّغْفِرَ لَنَا

ورګرځیدونکی یو. یقیناً مونږ طمع کوؤ چه بخنه به اوکړی مونږ ته

رَبُّنَا خَطٰیٰنَاۤ اَنْ كُنَّاۤ اَوَّلَ الْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۵۱﴾

رب زمونږ ګناهونو زمونږ ددے وجے نه چه مونږ اول مؤمنان یو.

کښ د خوف ذکر نه دے شوے وجه ددے دا ده چه په هغه سورتونو کښ اثر د سحر یې په موسی علیه السلام باندے ذکر کړے وو او دلته یې نه دے ذکر کړے او د خوف مناسبت د اثر د سحر سره دے.

دویم دا چه سورة اعراف کښ فسوف تعلمون دے او سورة طٰه کښ نشته او دلته فلسوف تعلمون ذکر کړے دے ځکه چه په دے سورت کښ ډیر تاکیدات ذکر شویدی نو دا هم د هغې سره مناسب تاکید دے.

دریم دا چه د سورة اعراف د مضمون موافق فرعون ته ډیره ویره د خپل اقتدار نو هلته یې ذکر کړیدے اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِی الْمَدِیْنَةِ لِتُخْرِجُوْا مِنْهَاۤ اَهْلَهَا ﴿رسـ۱۲۳﴾ او د سورة طٰه او ددے سورت په مضمون کښ فرعون په خلقو باندے تلبیس اچوؤ نو ددے وجے نه یې اوئیل د خلقو د دهوکه کولو د پاره چه موسی ستاسو استاذ دے تاسو ددهٔ سره مقابله ځکه اونکړله.

څلورم دا چه په دے سورت کښ لا ضیر ذکر کړیدے ځکه چه فرعون ډیر په تاکید سره وئیلے وو فَلَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ نو دوی د هغې مقابله کښ اوئیل چه ستا د دباؤ په مونږ باندے هیڅ ضرر او نقصان نشته.

اَوَّلَ الْمُؤْمِنِیْنَ مراد دا دے چه د معجزے په لیدلو سره متصل ایمان یې راوړے دے نو دینه محاوره کښ اول وئیلے کیږی یا دا چه دوی په موسی علیه السلام باندے د نورو خلقو نه مخکښ ایمان راوړے وو.

وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِي

او وحی اوکړه موږ موسیٰ ته. چه د شپې بوځه بندګان زما

إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ﴿٥٢﴾ فَأَرْسَلَ فِرْعَوْنُ

یقیناً تاسو پسې به درتلل کیدیشي. نو اولیږل فرعون

فِي الْمَدَائِنِ حَاشِرِينَ ﴿٥٣﴾ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ

په ښارونو کښ راجمع کوونکی. (او ویل هغهٔ) یقیناً دا (بنی اسرائیل)

لَشِرْذِمَةٌ قَلِيلُونَ ﴿٥٤﴾ وَإِنَّهُمْ لَنَا

خامخا ډله لږه ده. او یقیناً دوی موږ لره

لَغَائِظُونَ ﴿٥٥﴾ وَإِنَّا لَجَمِيعٌ حَاذِرُونَ ﴿٥٦﴾

غصّه کوونکی دی. او یقیناً موږ ټول جماعت یو بیدار تیار.

٥٢: خلاصه:- د دے آیت نه ځلورم مقام شروع دے د واقعے تر اختتام پورے په دے کښ نجات د مؤمنانو د فرعون نه او بیا د غرق نه ذکر کوی، او عذاب د کافرانو بیا نوی.

تفسیر:- بِعِبَادِي، په دے کښ اشاره ده چه بنی اسرائیل په دغه وخت کښ د الله تعالیٰ په بندګئ کښ مضبوط وو.

إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ کښ اشاره ده چه په تلو کښ غفلت او سستی مه کوئ ځکه چه دشمن درپسے درروان دے.

٥٣:- دا حکمت الٰهیه دے چه فرعون پخپله خپل قوم د غرق کیدلو دپاره راجمع کړو. په آیت ٣٦ کښ حشر د ساحرانو وو د مقابلے دپاره او په دے آیت کښ حشر د فوج او پولیس او د عامو خلقو مراد دے.

٥٤، ٥٥، ٥٦:- لَشِرْذِمَةٌ، حقیر او سپکے ټکړے ته وئیلے کیږی. او دا قول د فرعون د ډیر تکبر د وجے نه دے.

لَغَائِظُونَ، کښ اشاره ده چه دوی زموږ د دین مخالفت کوی او زموږ مالونه ئے هم په دهوکه سره اوتختول او زموږ د حکومت نه ئے بغاوت اوکړو دا اسباب د غصے دی.

فَأَخْرَجْنٰهُم مِّن جَنّٰتٍ وَّعُيُونٍ ﴿٥٧﴾

پس اُویستل موږ دوی لره د باغونو او چینو نه ۔

وَّكُنُوزٍ وَّمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴿٥٨﴾ كَذٰلِكَ وَأَوْرَثْنٰهَا

او خزانو او ذخایوتو عزت منو نه ۔ دغسے اوکړو موږ، وارثان کړل موږ

بَنِيٓ إِسْرٰٓءِيلَ ﴿٥٩﴾ فَأَتْبَعُوهُم مُّشْرِقِينَ ﴿٦٠﴾

هغه بنی اسرائیلو ته ۔ پس روان شول فرعونیان هغوی پسے د نمر ختلو په وخت ۔

فَلَمَّا تَرٰٓءَا الْجَمْعٰنِ قَالَ أَصْحٰبُ مُوسٰىٓ

پس هرکله چه مخامخ شوے دواړه ډلے اُوئیل ملګرو د موسیٰ علیه السلام

خٰذِرُونَ تیاریو، د اسلحے نه ډک یو، بیدار یو ۔ جَمِيعٌ، په معنیٰ د جماعت دے یا په معنیٰ د ټولو دے ۔

۵۷، ۵۸، ۵۹ :- اشاره ده چه د دنیا مالونه هیڅ فائده نشي ورکولے کله چه عذاب راځي ۔ د باغونو او چینو یو بل سره مناسبت دے او دا رنګ د خزانو او بنګلو مناسبت دے نو د دے وجے نه دوه دوه مناسب څیزونه د یو بل سره یوځائے کړل ۔

مَقَامٍ كَرِيمٍ، هغه مکان او کرسئ او مجلس چه پادشاه او افسر او یومالدار لره خاص وی یو بل څوک ئے نشي استعمالولے هغے ته مقام کریم وائي دارنګ سورة دخان ۲۵، ۲۶ او ۲۷ کښ ذکر دی هلته ئے زروع هم ذکر کړیدے اشاره ده چه په دوی کښ سرمایه داران (کنوز والا) او جاګیرداران (زروع والا) خلق وو ۔ په هغه سورت کښ د عذاب د دخان (قحط) ذکر وو ۔ او د هغے اثر په فصلونو باندے موجود وی د دے وجے نه هلته ئے زروع وئیلے دے ۔

وَأَوْرَثْنٰهَا بَنِيٓ إِسْرٰٓءِيلَ، سورة اعراف ۱۳۷ کښ، زمکه د شام ذکر کړیده نو دا معلومه شوه چه بعضے بنی اسرائیل ئے واپس مصر ته بوتلل او بعضو شام ته هجرت اوکړو ۔

۶۰ :- د بے دینه خلقو عادت دا وی چه تر نمر خاته نزدے پوهیږی او ده وی ۔

إِنَّا لَمُدْرَكُونَ ﴿٦١﴾ قَالَ كَلَّا ۖ إِنَّ مَعِيَ رَبِّي

يقيناً موږ لاندې كړيشو. اُوئيل موسىٰ هيڅ نشي كيدې. يقيناً زما سره رب زما دے

سَيَهْدِينِ ﴿٦٢﴾ فَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ أَنِ اضْرِب

خامخا ماته به لار ښوونه وكړي. پس وحي اوكړه موږ موسىٰ عليه السلام ته چه اُووهه

بِّعَصَاكَ الْبَحْرَ ۖ فَانفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ

په همسا خپلې سره دریاب، نو اوچودو پس شوه هره ټکړه

كَالطَّوْدِ الْعَظِيمِ ﴿٦٣﴾ وَأَزْلَفْنَا ثَمَّ الْآخَرِينَ ﴿٦٤﴾

پشان دغونډئ لويے. او رانزدے كړل موږ هلته نور كسان.

وَأَنجَيْنَا مُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُ أَجْمَعِينَ ﴿٦٥﴾

او نجات وركړو موږ موسىٰ ته او هغه چاته چه هغه سره وو ټولو ته.

ثُمَّ أَغْرَقْنَا الْآخَرِينَ ﴿٦٦﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ

بيا غرق كړل موږ نور كسان. يقيناً په دېكښې

۶۱، ۶۲. مَعِيَ ئے مفرد اُوئيل ځكه چه دَ دهٔ په بني اسرائيلو باندے دَ پوره ملګرتيا اعتبار نه وو او زموږ دَ نبي صلى الله عليه وسلم په داسے وخت كښې په يو ملګري چه ابوبكر رضى الله عنه دے په هغه ئے دَ ملګرتيا اعتماد كړيدے نو صيغه دَ هغه ئے ذكر كړيده لكه سورة توبه ۴۰ كښې دي. كه سوال اوكړيشي چه دَ موسىٰ عليه السلام سره خو هارون عليه السلام شته پكار دے چه هغه هم دَ ځان سره ذكر كړيوے؟

جواب دا دے چه دَ إِنَّا لَمُدْرَكُونَ ويوونكي په طور دَ شكايت باندے صرف بني اسرائيل وو. هارون عليه السلام دا شكايت نه دے كړے نو صرف دَ هغوي تسلي مقصد ده.

۶۳:- دا معجزه ده موسىٰ عليه السلام په هغے كښې اختيار نه لري ځكه هغه وحي ته محتاج وو. الْبَحْرَ دريا ئے قلزم مراد دے. فِرْقٍ جدا جدا ټكړو ته وئيلے شي. طَوْدِ. دَ لوئ غونډئ ته وئيلے شي.

۶۴، ۶۵، ۶۶:- په دے آيتونو كښې عذاب دَ غرق ذكر شوے دے.

لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٦٧﴾ وَاِنَّ

خامخا عبرت دے، او نه دي ډير د دوی نه مؤمنان - او يقيناً

رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿٦٨﴾ وَاتْلُ

ستا رب خامخا زورآور دے رحم والا دے - او بيان كړه

عَلَيْهِمْ نَبَاَ اِبْرٰهِيْمَ ﴿٦٩﴾ اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ

په دوی باندے خبر د ابراهيم عليه السلام - كله چه اُوئيل هغهٔ پلار

وَاَزْلَفْنَا ثَمَّ، اشاره ده چه دوی دریاب ته د دننه په لاروکښ داخل شول۔
ثَمَّ، په زور د ثاء سره د پاره د مکان راځی ۔
سك، سك ۔ دا جملے پدے سورت کښ په دويم ځل ذكر شوى دى يعنى پدے واقعه د فرعون کښ عبرت دے ۔
اَكْثَرُهُمْ، د ضمير راجع دے فرعونيانو ته يا موجوده خلقو ته۔ الْعَزِيْزُ کښ غرق کولو د فرعونيانو او په الرَّحِيْمُ کښ نجات د بنی اسرائيلو ته اشاره ده ۔
سك ۔ د دے نه دويمه قصه ( د ابراهيم عليه السلام ) شروع شويده تر سك پورے۔
هر كله چه زمانه د موسیٰ عليه السلام دے امت ته نزدے وه بلكه د هغې قوم بنی اسرائيل هم موجود دی او په قرآن سره مخاطب دی نو د هغهٔ قصه ئے په تفصيل سره وړاندے ذكر كړه - بيا هر كله چه ټولو يهوديانو او نصاریٰ مشركين عرب خپل نسبت په ابراهيم عليه السلام ته كوؤ، وئيل به ئے چه مونږ د هغهٔ اولاد يو او مونږ د هغهٔ په دين باندے يو۔ نو اوس د هغه واقعه ذكر كوی چه په هغے کښ رد دے په مشركينو باندے په حجت الزامی سره او تعريف د رب دے په ذكر د صفاتو د رب سره او دعا گانے د ابراهيم عليه السلام دی او بيا تخويف اخروى دے هغه چا لره چه د پيغمبر په مخالفت کښ تابعدارى كوی د مشركانو ملايانو او پيرانو وغيره - او هر كله چه دا سے بيان ډير عظمت شان لرى او جامع دے د دے وجے نه ديته ئے نَبَاَ او فرمائيل۔

وَقَوْمِهٖ مَا تَعْبُدُوْنَ ﴿۷۰﴾ قَالُوْا نَعْبُدُ

او قوم خپل ته د څهٔ عبادت کوئ (په څه دليل) ـ او وئيل دوى موږ بندګى کوو

اَصْنَامًا فَنَظَلُّ لَهَا عٰكِفِيْنَ ﴿۷۱﴾ قَالَ هَلْ

د شکلونو (عزت منلى د) نو هميشه يو موږ ته تعظيم (عبادت) کوونکى ـ او وئيل هغهٔ آيا

يَسْمَعُوْنَكُمْ اِذْ تَدْعُوْنَ ﴿۷۲﴾ اَوْ يَنْفَعُوْنَكُمْ

دوى آورى ستاسو کله چه تاسو بلئ دوى لره ـ يا نفع درکولے شى تاسو ته

اَوْ يَضُرُّوْنَ ﴿۷۳﴾ قَالُوْا بَلْ وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا

يا نقصان دررسولے شى ـ دوى اوئيل بلکه موندلے دى موږ مشران خپل

كَذٰلِكَ يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۴﴾ قَالَ اَفَرَءَيْتُمْ

چه دغسے کار يے کوؤ ـ او وئيل ابراهيم عليه السلام آيا خبر يئ تاسو

مَّا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ ﴿۷۵﴾ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمُ الْاَقْدَمُوْنَ ﴿۷۶﴾

په حال د هغهٔ چا چه تاسو هغوى له بندګى کوئ ـ تاسو او مشرانو ستاسو زړو

ﷺ، ﷺ :- ما سره تپوس د وجے د عبادت مقصد دے يعنى څه وجه او دليل دے
د دوى په عبادت باندے، او د هغوى د جواب حاصل دا دے چه دا د
بزرګانو او د کواکبو د روحانيت مرکزونه دى چه د دوى تعظيم په موږ
باندے لازم دے ـ فَنَظَلُّ، مراد د دے نه هر وخت دے ـ يا مراد د دينه
ورځ ده يعنى د ورځے د دے پتانو عبادت کوؤ او د شپے د ستورو او سپوږمۍ عبادت کوؤ ـ
ﷺ، ﷺ :- مقصد دا دے چه بزرګان کيدل يا ستورى کيدل صفت د معبوديت
نه دے بلکه صفتونه د معبوديت دا دى دُعاګانے آوريدل او قبولول او په
نفع ورکولو او ضرر ورکولو او لرے کولو باندے قدرت لرل آيا دا صفتونه
په دوى کښ شته ؟
ﷺ :- هغوى جواب ورکړو صرف په تقليد سره چه موږ سره دليل نشته بغير د تقليد د
ﷺ، ﷺ :- مقصد دا دے چه بندګى کول ستاسو او ستاسو د مشرانو، دا خو

فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّيْ إِلَّا رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٧٧﴾

پس دوی به دشمنان شي زما (که چرته زه د دوی بندګي اوکړم) ما سوا د رب د عالمینو نه.

الَّذِيْ خَلَقَنِيْ فَهُوَ يَهْدِيْنِ ﴿٧٨﴾ وَالَّذِيْ

هغه ذات چه زه يې پيدا کړے يم بيا هغه ماته لار ښائي. او هغه ذات دے

هُوَ يُطْعِمُنِيْ وَيَسْقِيْنِ ﴿٧٩﴾ وَإِذَا

چه هغه ما لره خوراک او څښاک راکوي. او کله

دليل او حجت نشي کيدلے.

اَفَرَءَيْتُمْ، مطلب دا دے خبر راکړئ او سوچ اوکړئ په حال او عجز د دے معبودانو باندے صرف ستاسو بندګي کول او د مشرانو خو دليل نه دے.

سک:- هر کله چه دليل نشته نو بندګي د غير الله بغير د دليل نه سبب د عداوت او د دوشمنئ دے په ورځ د قيامت. د عبارت تقدير دا دے (اِنْ عَبَدْتُّهُمْ فَاِنَّهُمْ يَصِيْرُوْنَ اَعْدَاءً لِّيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ) لکه سورة احقاف ۶ کښ دي. يا تقدير دا دے چه فان عبادتهم عبادة العدو (يعني بندګي د دوی دا سے ده لکه بندګي د دشمنانو) چه هيڅ پکار نه راځي.

سک:- د دے آيت نه تعريف د رب شروع دے په ذکر د اته صفتونو سره او ديته توحيد د ربوبيت وئيلے شي. اول دا چه الله تعالىٰ خالق دے. دويم دا چه هدايت په تمام مرتبو سره په اختيار د الله تعالىٰ کښ دے (مرتبے د هدايت په کتاب لطائف کښ او تفسير د سورة فاتحه کښ مونږ ذکر کړيدي) او دغه ټولے مرتبے د خلق سره متصل شروع کيږي د دے وجے نه حرف د فاء يې ذکر کړو.

سک:- په دې کښ دريم صفت او څلورم صفت دے په دے دواړو سره (قوام د خلق (بدن) راځي لکه چه هدايت سره قوام د روح حاصليږي او د کاملانو خلقو په تيز قوام د روح مخکښ دے د قوام د بدن نه. د دے وجے نه يهدين يې مقدم کړيدے په يطعمني باندے. او لفظ د هُوَ د حصر د پاره دے او په خوراک او څښاک ورکولو کښ د هغے اسباب پيدا کول (مثلاً باران

مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِيْنِ ﴿٨٠﴾ وَالَّذِيْ يُمِيْتُنِيْ

چه زۀ ناجوړه شم نو هغه مالره شفا راکوي. او هغه ذات دے چه مرکوي ما لره.

ثُمَّ يُحْيِيْنِ ﴿٨١﴾ وَالَّذِيْٓ اَطْمَعُ اَنْ يَّغْفِرَ لِيْ

بیا به ژوندے کوي مالره. او هغه ذات دے چه طمع لرم چه او به بخي ما لره

خَطِيْٓئَتِيْ يَوْمَ الدِّيْنِ ﴿٨٢﴾ رَبِّ هَبْ لِيْ حُكْمًا

خطائي زما په ورځ د جزا. اے ربه را او بخه ما ته کلکے فیصلے کول

ورول بوتي را وبيتل د هغے نه غلے ميوے مشروبات پيدا کول) او په بدن کښ د خوړلو څکلو قوتونه پيدا کول ټول داخل دي. او په هغے کښ صحت د بدن ته هم اشاره ده. او دا ټول په اختيار د الله تعالیٰ کښ دي.

سٛ:- دا پنځم صفت دے او مرض هم د الله تعالیٰ د طرف نه دے لیکن هغه په ظاهر نظر کښ نعمت نه دے بلکه ابتلاء ده ځکه دلته د هغے نسبت ئے الله تعالیٰ ته اونکړلو. او مرض په بعضے اوقاتو کښ راځي د دے وجے نه په حرف د اذا ذکر کړو. او دلیل دے چه انبیاء علیهم السلام د مرضونو بد نیونه نشي. بچ کیږي او د شفاء دوه معنے دي. اول جوړول د مرض داخاص دے په الله تعالیٰ پورے. دویم په معنیٰ د علاج بانددے لکه فیه شفاء للناس کښ دلته اوله معنیٰ مراد ده.

سٛ:- دا شپږم او اووم صفت دے او په یکښ رد دے په هغه چا باندے چه د مرګ نسبت طبیعت او اختلاف د مزاج ته کوي. بلکه دا په خلق او په فعل د الله تعالیٰ سره دے او اکثر موت د مرض په سبب راځي د دے وجے نه موت ئے د مرض نه روستو ذکر کړو بیا دوباره ژوندا د مرګ نه څه زمانه روستو راځي ځکه ثُمَّ ئے ذکر کړو.

سٛ:- په یکښ اتم صفت ذکر دے او فائده د مغفرت د ګناهونو به په ورځ د جزاء کښ ښکاره کیږي د دے وجے د يُحْيِيْنِ نه روستو په يَوْمَ الدِّيْنِ، سره ئے مقید کړو او خوره دا ده چه دلته مراد د خطیئه نه کړے شوے ګناه نه دے ځکه چه انبیاء علیهم السلام د ګناهونو نه پاک وي بلکه دا په طریقه د اظهار د بندګئ دے. او اَطْمَعُ کښ

وَ اَلْحِقْنِیْ بِالصّٰلِحِیْنَ ﴿۸۳﴾ وَ اجْعَلْ لِّیْ لِسَانَ

او یوځای کړې ما لره د پوره نیکانو سره۔ او همیشه اوګرځوې ما لره ذکر

صِدْقٍ فِی الْاٰخِرِیْنَ ﴿۸۴﴾ وَ اجْعَلْنِیْ مِنْ

نیک په روستنو خلقو کښ۔ او اوګرځوې ما لره د

وَّرَثَةِ جَنَّةِ النَّعِیْمِ ﴿۸۵﴾ وَ اغْفِرْ لِاَبِیْۤ

حقدارو د جنت د نعمتونو نه۔ او بخنه اوکړې زما پلار له

اشاره ده په طریقه د عجز و انکسار چه زما عملونه سبب د مغفرت نه دی یعنی بے سببه طمع د مغفرت کوم ځکه چه طمع وتلی کیږی تعلق د زړه نه په یو څیز پورے بغیر د سبب نه۔

۸۳:۔ هرکله چه ربوبیت د الله تعالیٰ په ذکر د صفتونو او د نعمتونو سره بیان کړو اوس په هغے باندے تفریع کوی په ذکر د حقوقو د رب سره چه هغه دعا او تضرع ده رب ته، نو شپږ دعاګانے ذکر کوی۔

حُکْمًا، علم مضبوط په عمل سره، انبیاء هم زیادت د علم ته محتاج دی۔

وَ اَلْحِقْنِیْ بِالصّٰلِحِیْنَ، یعنی روستو د مرګ نه په عالم برزخ کښ زما روح د صالحینو سره اوګرځوے او په ورځ د قیامت په جنت کښ د صالحینو سره ملګرتیا راکړے یا مراد دا دے چه توفیق راکړے د اتباع د کاملو نیکانو په دُنیا کښ۔

۸۴:۔ لِسَانَ صِدْقٍ ذکر د نیکئ نه مراد دا دے چه توحید زما په اولاد کښ جاری اوسلتے او پس یکښ د پلار حصّه د ثواب وی ځکه لِیْ وئیلے دے یا مراد دا دے چه توفیق د داسے عمل راکړے چه روستو د مرګ نه د هغے ثواب ماته رارسیږی۔

۸۵:۔ سوال جنت د انبیاؤ سنت دے څوک چه د متصوفو نه وائی چه زهٔ جنت نه غواړم بلکه دیدار غواړم نو د دے آیت نه خلاف ده۔

إِنَّهُ كَانَ مِنَ الضَّالِّينَ ﴿٨٦﴾ وَلَا تُخْزِنِي

| یقیناً دے دے دَ بے لارو خلقو نه۔ او مه شرموې ما لره |
|---|

يَوْمَ يُبْعَثُونَ ﴿٨٧﴾ يَوْمَ لَا يَنفَعُ مَالٌ وَلَا

| په ورځ دَ دوباره ژوندی کیدلو۔ په هغه ورځ چه نفع نه ورکوی مال او نه |
|---|

بَنُونَ ﴿٨٨﴾ إِلَّا مَنْ أَتَى اللَّهَ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ﴿٨٩﴾

| ځامن۔ مګر هغه څوک چه ورځي الله تعالیٰ ته په زړه روغ سره۔ |
|---|

۸۶:۔ سوال دَ مغفرت دَ پلار دَ پاره روستو دَ وعدے نه وو دَ هغهٔ سره، او بیا دا دُعا هم پریخودله لکه دَ دے تفصیل سورة توبه ۱۱۳ کښ تیر شویدے۔
دویم قول په دے آیت کښ دا دے چه دلته دَ وَاغْفِرْ نه مراد طلب دَ هدایت دے په ژوند دَ هغه کښ۔
۸۷:۔ په یکښ دَعام شرمندګۍ نه بچ کیدل دی او دا رنګ شرمندګی عذاب دَ پلار دے دَ دهٔ په مخکښ. لکه صحیح حدیث کښ راغي مضمون ئے دا دے چه ابراهیم علیه السلام به خپل پلار لره په ناکاره حالت کښ اُوینی نو دے به اُوائی چه یاربه تا ما سره وعده کړیوه چه تا یه په قیامت کښ نه شرمنده کوم (یعنی دا دعا دِ زما قبوله کړیوه) نو دَ دینه لوئے شرم کوم دے چه زما پلار زما په وړاندے په داسے بد حالت کښ جهنم ته ورځي نو الله تعالیٰ به دَ پلار دَ ابراهیم صورت بدل کړی په ناکاره شکل سره تر دے چه دَ ابراهیم علیه السلام به ترے هم نفرت پیدا شی او جهنم ته به اوغورځولے شی او ابراهیم علیه السلام به ئے په دغه حالت کښ نه پیژنی نو دَ شرمندګۍ نه په داسے طریقے سره به بچ شی۔
۸۸:۔ په یکښ اشاره ده چه دَ آزر (پلار دَ ابراهیم علیه السلام) مالونه ډیر وو او ځوئے ئے (ابراهیم علیه السلام) پیغمبر وو تو هغے ورته نفع ورنکړه دَ هغهٔ دَ کفر دَ وجے نه۔
۸۹:۔ قَلْبٍ سَلِيمٍ چه خالی وی زړه دَ شرک او کفر نه او دَ بدعت او دَ حرص دَ دنیا نه او ویره کوونکے وی دَ الله تعالیٰ نه۔ او نورانی اومونه خو دَ زړه تابع وی ځکه هغه ئے ذکر نکړل او مراد دَ دینه مؤمن موحد دے

وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿٩٠﴾ وَبُرِّزَتِ

او نزدے به کړے شي جنت پرهيزګارانو ته. او ښکاره به کړے شي

الْجَحِيْمُ لِلْغٰوِيْنَ ﴿٩١﴾ وَقِيْلَ لَهُمْ اَيْنَمَا

دوزخ سرکشانو ته. او وبه ويلے شي دوئ ته کم ځائے کښ دي هغه کسان

كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ ﴿٩٢﴾ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ هَلْ

چه تاسو د هغوئ بندګي کوله. سوا د الله تعالیٰ نه آيا

يَنْصُرُوْنَكُمْ اَوْ يَنْتَصِرُوْنَ ﴿٩٣﴾ فَكُبْكِبُوْا

مدد کولے شي ستاسو يا بدله اخستلے شي. پس پرمخے به واچولے شي.

د هغه مال او اولادِ صالح هغه ته به فائده ورکوي چه په شرعي طريقه ئے استعمال کړے وي. يا سليم چيچلي شوي ته ويلے شي مراد تري ته ويريدونکے دے.

۹۰ :- هرکله چه ورځ د قيامت ئے مخکښ ذکر کړه نو پدے آيتونو کښ د هغې ورځې بعض تفصيلي حالات ذکر کوي پدے آيت کښ بشارت دے په نزديکت د جنت سره يعني متقيانو ته د مزل کولو تکليف نشي ورکيدے بلکه جنت به ورته نزدے کړے شي.

۹۱ :- دا تخويف اخروي دے. غٰاوُنَ نه مراد مشرکان عابدان دي چه عبادت او طاعت ئے کړيدے د مشرکانو مليانو او پيرانو او اقتدار والو او دا شرک ئے کړيدو په وسوسے د ابليس او د اولاد د هغه سره.

۹۲ :- دا تپوس د زورنے دے د پاره د اظهار د عجز د معبودانو د دوي او مراد د دے معبودانو نه هغه کسان دي چه هغوي هم مشرکان او بدعتيان وو.

۹۳ :- د عابدانو مدد نشي کولے چه د عذاب نه ئے بچ کړي. اَوْ يَنْتَصِرُوْنَ يعني د ځان نه هم عذاب نشي دفع کولے.

فِيهَا هُمْ وَالْغَاوُنَ ﴿٩٤﴾ وَجُنُودُ إِبْلِيسَ

په هغې کښې دوی او سرکشان . او لښکرے د ابلیس

أَجْمَعُونَ ﴿٩٥﴾ قَالُوا وَهُمْ فِيهَا يَخْتَصِمُونَ ﴿٩٦﴾

ټول . او به وائی دوی او حال دا چه دوی په هغې کښې د یو بل سره جګړے کوی .

تَاللَّهِ إِنْ كُنَّا لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ﴿٩٧﴾ إِذْ

قسم په الله تعالیٰ باندے یقیناً مونږ وو خامخا په ګمراهئ ښکاره کښې . کله چه

نُسَوِّيكُمْ بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٩٨﴾ وَمَا أَضَلَّنَا

برابر ګنړلئ مونږ تاسو د رب العالمین سره . او نه دی بے لارے کړی مونږ لره

إِلَّا الْمُجْرِمُونَ ﴿٩٩﴾ فَمَا لَنَا مِنْ شَافِعِينَ ﴿١٠٠﴾

مګر مجرمانو . پس نشته مونږ لره سفارش کوونکی .

٩٤ ۔ هُمْ نه مراد دغه معبودان دی او غَاوُنَ نه مراد عابدان دی .

٩٥ ۔ د ابلیس لښکرے هغه وی چه د ابلیس په وسوسے سره په مختلفو کناهونو کښې اخته شوے دی .

٩٦ ، ٩٧ ، ٩٨ ، ٩٩ ۔ هر کله چه دا عابدان د دغه معبودانو نه نا امید شول نو ورسره به جګړه شروع کړی .

نُسَوِّيكُمْ ، مراد دا دے چه کوم طاعت او عبادت د الله تعالیٰ پکار وو د غسے مونږ تاسو لره کړے وے .

تسویه ، (برابری) په ټولو صفاتو کښې مراد نه ده ځکه چه ټولو مشرکانو خپل معبودان د الله تعالیٰ نه کم او کوز ګنړلے دی او وسیلے ئے ګرځولے دی الله تعالیٰ ته . لکه چه لفظ د من دون الله په ډیرو آیاتونو آیت د سورة یونس ١٨ او سورة زمر ٣ پورے باندے دلیل دے .

اَلْمُجْرِمُوْنَ ، د دے نه مراد ابلیس او د هغه ذُرِّيَّه دی د هغوی وسوسے سبب د ګمراهئ د خلقو اوګرځیدلے .

١٠٠ ، ١٠١ ، ١٠٢ ۔ پورے درے آیاتونو کښې د ١٠٢ کیدلو درے طریقے ذکر کوی چه هغه طریقے دوی ته هیڅ فائده نشي ورکولے . سفارش .

وَلَا صَدِيقٍ حَمِيمٍ ﴿۱۰۱﴾ فَلَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً

او نه دوست گرم (مهربان) ۔ پس كه چرے وے مونږ لره دوباره تلل دنيا ته

فَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿۱۰۲﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ

نو وبه شو مونږ دَ مؤمنانو نه ۔ يقينًا په دې كښې

لَآيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿۱۰۳﴾

خامخا عبرت دې، او نه دي ډير دَ دوئ نه مومنان ۔

وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿۱۰۴﴾

او يقينًا ستا رب خامخا هغه زورآور رحم كوونكے دے ۔

كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوحٍ الْمُرْسَلِينَ ﴿۱۰۵﴾ إِذْ قَالَ

دروغژن كړے وو قوم دَ نوح عليه السلام پيغمبرانو لره ۔ كله چه اُوئيل

دوست مخلص، دنيا ته واپسي ۔

۱۰۳، ۱۰۴ :- وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ، مراد دَ دينه مخكنى او روستنى مراد دى يعنى په زمانه دَ ابراهيم عليه السلام كښ او په اوسنۍ زمانه كښ اكثر خلق ايمان نه لرى ۔

۱۰۵ :- دَ دے آيت نه دريمه واقعه شروع ده ۔ كَذَّبَتْ، سره ئے شروع دَ دے وجے نه اوكړه چه په دے سورت كښ مقصد بيان دَ حال دَ مكذبينو وو ۔ او تكذيب سبب دَ عذاب دے ۔ او مؤنث ئے دَ دے وجے نه راوړو چه دَ دوى سپك والے اوكړيشي ۔

مُرْسَلِينَ ئے دَ دے وجے نه اوئيلو چه دَ ټولو رسولانو مقصد يو دے چه هغه توحيد دے نو دَ يو تكذيب سره دَ ټولو تكذيب راغے او په كښ اشاره ده چه انكار دَ توحيد ډير لوے گناه ده او منكر دَ توحيد نه دَ ټولو رسولانو په نيز باندے كافر دے ۔ او دَ دے آيت نه روستو دَ پنځه انبياء عليهم السلام قصے ذكر كوى او دَ هغوى ئے په پنځو پنځو خبرو كښ يو والے ذكر كړے دے ۔

لَهُمْ أَخُوهُمْ نُوحٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٠٦﴾ إِنِّي

دوی ته ورور د دوی نوح آیا ځان نه بچ کوئ د عذاب نه. یقیناً زه

لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٠٧﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ

تاسو له رسول امانتدار یم. پس او ویریږئ د الله تعالیٰ نه (د شرک کولو)

وَأَطِيعُونِ ﴿١٠٨﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ

او تابعداری اوکړئ زما. او زه نه غواړم ستاسو نه په دے باندے هیڅ بدله

إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٠٩﴾

نه ده بدله زما مګر په رب العالمین باندے ده.

ف۱۰۶ :- أَخُوهُمْ، په دے سورت کښ په معنیٰ د ناصح او د خیرخواه دے اګر چه د یل قوم نه وی. او د هر یو رسول دلته پنځه پنځه خطابات ذکر کوی اشاره ده چه د ټولو انبیاؤ علیهم السلام په دے پنځه خطاباتو کښ دین یو دے. اول خطاب أَلَا تَتَّقُونَ، د شرک او کفر نه بچ کیدل یا د عذاب نه ځان ساتل مراد دی.

ف۱۰۷ :- په دیکښ دویم خطاب دے. لَكُمْ ئے د دے وجے نه مخکښ راوړو چه رسول رالیږلے کیږی د پاره د فائدے د قوم د هغه.

رَسُولٌ کښ اشاره ده چه د ځان نه خبرے نه جوړوم. أَمِينٌ کښ اشاره ده چه په پیغام د الله تعالیٰ کښ هیڅ نقصان نه کوم.

ف۱۰۸ :- په دیکښ دریم او څلورم خطاب دے مراد د تقوىٰ نه توحید دے او مراد د اطاعت نه اتباع د سنت د رسول ده معلومه شوه چه د ټولو انبیاؤ علیهم السلام مقصد دعوت د توحید او د سنت وو.

ف۱۰۹ :- په دیکښ پنځم خطاب دے مراد د دینه اخلاص دے او تبلیغ د دین په انبیاء علیهم السلام باندے فرض عین دے د دے وجے نه په هغوی باندے اجرت اخستل حرام وو دا رنګ هرڅه باندے چه یو عبادت فرض عین شی نو هغے باندے اجرت اخستل د دغه عبادت حرام وی تفصیل د مسئلے په تفسیر د سورة بقره کښ تیر شوے دے.

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿۱۱۰﴾ قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ

پس اوویریږئ د الله تعالیٰ نه او تابعداری اوکړئ زما۔ دوی اُوئیل آیا ایمان راوړو مونږ

لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ قَالَ

په تا باندے او حال دا چه تابع کړیدی ستا سپکو خلقو۔ اوئیل

وَمَا عِلْمِىْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۱۲﴾

هغه نشته علم زما په (حقیقت) د هغه چه دوی عمل کوی۔

ف۱۱۰:۔ دا جمله ئے مقرر کړیده د دے وجے نه چه مراد د تقوٰی نه، د شرک او کفر نه روستو د نورو گناهونو نه ځان بچ کول دی او مراد د اطاعت نه تابعداری په احکامو کښ ده روستو د تابعداری کولو نه په عقائدو کښ۔

ف۱۱۱:۔ د دعوت د بیان نه روستو تکذیب د قوم ذکر کوی او دا تفصیل د کذبت دے او په دے جمله کښ د کافرانو د طرف نه درے خبرے مقصد دی۔

اول دا چه ستا منکری سپک کارونه کوُنکی او کمزوری او بے عزته خلق دی او دلته تمام باطل پرست خلق حق پرستو ته سپک گوری اگرچه حق پرست په نسب کښ اوچت وی د دے وجے نه دلته د اَرْذَلُوْنَ نه د نسب کوځوالے مراد نه دے۔

دویم مقصد، دے منکرو په زړه کښ په تا ایمان نه دے راوړے هسے سرسری او بنکاره تابعداری کوی۔

دریم مقصد دا دے چه دوی اَرذل دی او مونږ اشرف زر د مالداری د وجے نه) یو، نو مونږ د دوی سره په یو مجلس کښ کیناستل بد ګڼړو نو دوی د خپل مجلس نه او شړه۔ د دے وجے نه په روستو دمے آیاتونو کښ د دے درے خبرو په ترتیب سره جواب ورکوی۔

ف۱۱۲:۔ په یکښ د اولے خبرے جواب دے مراد دا دے چه زۀ د دوی د سپک کارونو نه خبر نه یم۔

إِنْ حِسَابُهُمْ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّي لَوْ تَشْعُرُونَ ﴿١١٣﴾

نشته حساب دَ دوی مګر دے په رب زما بانــدے که چرے دوی پوهيدا ے.

وَمَا أَنَا بِطَارِدِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١١٤﴾ إِنْ أَنَا إِلَّا

او نه یم زه شړونکے دَ مؤمنانو . نه یم زهٔ مګر

نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿١١٥﴾ قَالُوا لَئِن لَّمْ تَنتَهِ

ویره ورکوونکے ښکاره دوی اُوئیل که چرے منع نه شوے ته

يَا نُوحُ لَتَكُونَنَّ مِنَ الْمَرْجُومِينَ ﴿١١٦﴾

اے نوح خامخا شے په ته دَ سنګسار کړيشوؤ نه .

قَالَ رَبِّ إِنَّ قَوْمِي كَذَّبُونِ ﴿١١٧﴾

اُوئیل دهٔ اے ربه زما یقیناً زما قوم دروغژن کړو ما لره

۱۱۳:- دا دَ دویمے خبرے جواب دے چه دَ زړه دَ ایمان علم ما سره نشته دَ هغے حساب دَ الله تعالیٰ سره دے دَ دے وجے نه ظاهر حال ته په شرع کښ اعتبار دے.

۱۱۴:- دا دَ دریمے خبرے جواب دے حاصل دا دے چه دَ دوی ایمان ته اعتبار دے غریبئ ته ئے نظر نه کوؤ او ایمان والا دَ ځان نه شړلے نشم .

۱۱۵:- اشاره ده چه زهٔ هر کار دَ الله تعالیٰ په اجازت سره کوم او په مسئله کښ دَ هیچا رعایت نه کوم .

۱۱۶:- دَ قوم سره هیڅ حجت او دلیل نه وؤ نو دباؤ نه ئے شروع کړل او دا سے دَ ټولو باطل پرستو حال دے . او دا دَ تکذیب دویمه درجه ده .

۱۱۷:- دَ قوم په مقابله کښ الله تعالیٰ ته عاجزی کول شروع کړل او دا شهادت دَ نبی دے دَ قوم په تکذیب کولو باندے یعنی دوی تر اوسه پورے ایمان قبول نه کړو او توبه دَ تکذیب نه نهٔ اوباسی نو دوی دَ عذاب مستحق دی .

فَافْتَحْ بَيْنِيْ وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا وَّنَجِّنِيْ

پس فیصله اوکړه په مینځ زما او په مینځ د دوی کښې فیصله او بچ کړے ما لره

وَمَنْ مَّعِيَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٨﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ

او هغه څوک چه ملګری زما دی د ایمان والو نه ـ پس بچ کړو مونږ ده لره

وَمَنْ مَّعَهٗ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ﴿١١٩﴾

او هغه څوک چه د ده ملګری وو په کشتئ ډکه کړے شوے کښې ـ

ثُمَّ اَغْرَقْنَا بَعْدُ الْبٰقِيْنَ ﴿١٢٠﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

بیا غرق کړل مونږ پس د دینه باقی خلقو لره ـ یقینًا په دې کښې

لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٢١﴾

خامخا عبرت دے، او نه دی ډیر د دوی نه ایمان والا ـ

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٢٢﴾

او یقینًا ستا رب خامخا زورآور او رحم کوونکے دے ـ

۱۱۸:۔ دا دُعا د شرده په قوم باندے هر کله چه د هغوی د ایمان نه نا امیده شو په سبب د وحی د الله تعالی لکه چه سورة هود ۳۶ کښې تیر شوېدی ـ او دُعا ده د پاره د نجات د اهل ایمان او فَتْحْ په معنی د واضحه فیصلے ده مراد ترینه عذاب دے په دغه قوم باندے دا سے په اعراف ۸۹ کښې دی ـ

۱۱۹:۔ دا قبولیت د دویمے دُعا دے ـ اَلْفُلْكِ دلته مفرد مذکر دے ځکه صفت ئے هم مذکر دے ـ

۱۲۰:۔ دا قبولیت د اولے دُعا دے ـ اَلْبٰقِيْنَ ئے ځکه اوئیل چه د هغوی نه علاوه په دنیا کښې نور انسانان نه وو صرف هغوی باقی پاتے وو د مومنانو د نجات نه روستو ـ

۱۲۱، ۱۲۲:۔ عذاب په دشمنانو مکذبینو او نجات د مؤمنانو د پاره دا بله نمونه ده ـ

كَذَّبَتْ عَادُ ِۨالْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۲۳﴾ اِذْ قَالَ لَهُمْ

دروغژن کړیوو عادیانو پیغمبرانو لره - کله چه اُوئیل دوئ ته

اَخُوْهُمْ هُوْدٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۱۲۴﴾ اِنِّیْ لَکُمْ

ورور د دوی هود علیه السلام آیا ځان نه یچ کوئ د عذاب نه - یقینًا زهٔ تاسو لره

رَسُوْلٌ اَمِیْنٌ ﴿۱۲۵﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِیْعُوْنِ ﴿۱۲۶﴾

رسول امانت دار یم - نو اوویریږئ د الله تعالیٰ نه او تابعداری کوئ زما -

وَمَآ اَسْئَلُکُمْ عَلَیْهِ مِنْ اَجْرٍ اِنْ اَجْرِیَ

او نه غواړم زهٔ ستاسو نه بدلے پاندے هیڅ بدله نه ده بدله زما

اِلَّا عَلٰی رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۱۲۷﴾ اَتَبْنُوْنَ بِکُلِّ

مګر ده په رب د عالمینو باندے - آیا آیا دوئ په هره

رِیْعٍ اٰیَةً تَعْبَثُوْنَ ﴿۱۲۸﴾ وَتَتَّخِذُوْنَ

دیرئ باندے نخه عبث کار کوونکي یئ - او جوړ وئ

۱۲۳، ۱۲۴، ۱۲۵، ۱۲۶، ۱۲۷ :- دا څلورمه واقعه ده چه عادیانو تکذیب کړیوو نو عذاب پرے نازل شو - او د هود علیه السلام د بیان خلاصه ئے په پنځو خبرو کښ ذکر کړه -

۱۲۸ :- د شرک نه علاوه دغه قوم دنیا پرست او سرمایه داروو نو په هغے باندے زور نه ورکوی -

رِیْعٍ. په معنیٰ د دیرئ ، او په معنیٰ د لارے او دره د مینځ د غرونو هر یو معنیٰ مراد کیدیشی دوی به په داسے ځایونو کښ د خپل قومیت نخے او میناره جوړولے لګه اوس چه قومی او حکومتی میناره نه جوړوی او په هغے باندے بے شماره روپئ خرج کوی بغیر د څهٔ فائدے نه دا عادت د جاهلانو دے -

تَعْبَثُوْنَ ، یعنی دا نخے ئے عبث او بے فائدے جوړولے یا دا چه په لارے تیریدونکو پسے مسخرے او عبث کارونه کوئ -

مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ ﴿١٢٩﴾ وَإِذَا

بنګلې د دې دپاره چه تاسو په همیشه اوسئ۔ او کله چه

بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ جَبَّارِينَ ﴿١٣٠﴾

نیول کوئ تاسو تو نیول کوئ تاسو ظلم کوونکي۔

فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٣١﴾ وَاتَّقُوا

نو او بیریږئ د الله تعالی نه او تابعداري اوکړئ زما۔ او او بیریږئ

الَّذِي أَمَدَّكُمْ بِمَا تَعْلَمُونَ ﴿١٣٢﴾

د هغه ذات نه چه زیاتي کړیدي هغه نعمتونه چه تاسو ئې پیژنئ۔

ف۱۲۹:۔ مَصَانِعَ، په معنیٰ د مضبوط او اوچتې بنګلې یا حوضونه دي او لیکن بې مقصده به ئې جوړول۔

لَعَلَّكُمْ، په معنیٰ د استفهام توبیخي دے یا لَعَلَّ په معنیٰ د کې دے یعني ستاسو دا اراده ده چه فنا به په تاسو باندے نه راځي یعني مرګ مو هم هیر کړیدے۔

ف۱۳۰:۔ د سرمایه دارئ سره د هغوی صفت د ظلم ذکر کوی یعني سرمایه دار ظالم او ناترسه وی۔

بَطْش، رانیول بغیر د جرم نه او وژل، بے عزته کول۔

جَبَّارِينَ، جبار هغه څوک دے چه د ځان د پاسه هیڅ قانون نه مني خود سر او سرکش وی۔ دوی هم د الله تعالی قانون نه منلو۔

ف۱۳۱:۔ دا تقوی او اطاعت په باره د احکامو کښې مراد ده۔

ف۱۳۲:۔ دا تذکیر دے په نعمتونو سره او بِمَا تَعْلَمُونَ کښې اجمال او ابهام دے اشاره ده ډیر والي ته او تَعْلَمُونَ کښې اشاره ده چه پوهیږئ چه دا نعمتونه د طرف د الله تعالی نه دی۔

اَمَدَّكُمْ بِاَنْعَامٍ وَّبَنِيْنَ ﴿۱۳۳﴾ وَجَنّٰتٍ

زیاتی کړیدی تاسو لره څاروی او ځامن . او باغونه

وَّعُيُوْنٍ ﴿۱۳۴﴾ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ

و چینے . یقینًا زۀ ویریږم په تاسو باندے دَ عذاب

يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۳۵﴾ قَالُوْا سَوَآءٌ عَلَيْنَآ

دَ ورځے لوے نه . اُوئیل دوی برابره خبره ده په مونږ باندے

اَوَعَظْتَ اَمْ لَمْ تَكُنْ مِّنَ الْوٰعِظِيْنَ ﴿۱۳۶﴾

که وعظ کوے ته یا نه یے ته دَ وعظ کوونکو نه .

اِنْ هٰذَآ اِلَّا خُلُقُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۳۷﴾ وَمَا

نه دی دا مګر عادتونه دَ زړو خلقو دی . او نه یو

نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿۱۳۸﴾ فَكَذَّبُوْهُ

مونږ عذاب راکړے شوی . نو دوی دروغژن کړو هغه

۱۳۳، ۱۳۴ :- دا تفصیل دَ ما قبل دے . اشاره ده چه دوی ډیر جاګیر دار وو او اولاد (ځامن) ئے هم په کثرت سره وو .

۱۳۵ :- دا تخویف دے په عذاب سره دَ وجے دَ ناشکرئ دَ دغه نعمتونو نه .

۱۳۶ :- دا دَ هغوی جابریت او سرکشی ده چه نبی ته ئے اُوئیل ستا وعظ په مونږ باندے اثر نه کوی .

۱۳۷ :- هٰذَآ ، اشاره ده عذاب ته یعنی (قحط وغیره) چه ته ئے عذاب ګڼړے دا عذاب نه دے دا سے عادات او ګردش دَ زمانے په مختلفو خلقو باندے هم راغلی دی . یا اشاره ده آبادئ او ظلمونو کولو ته چه دا زمونږ دَ مشرانو طریقه ده .

۱۳۸ :- یعنی دا عذاب نه دے (کوم قحطونه وغیره چه په مونږ باندے راځی) . یا دا چه په مونږ باندے هیڅ عذاب نشی راتللے ځکه چه

فَأَهْلَكْنٰهُمْ ۗ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَآيَةً ۖ

پس هلاک کړل موږ دوی لره، یقیناً په دیکښ خامخا عبرت دے،

وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿١٣٩﴾ وَإِنَّ

او نه دی ډیر د دوی نه مؤمنان - او یقیناً

رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿١٤٠﴾

ستا رب خامخا هغه زورآور رحم کوونکے دے -

كَذَّبَتْ ثَمُودُ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٤١﴾ إِذْ قَالَ

دروغژن کړیوو ثمودیانو پیغمبرانو لره- کله چه اوئیل

لَهُمْ أَخُوهُمْ صٰلِحٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٤٢﴾

دوی ته ورور د دوی صالح علیه السلام آیا تاسو نه بچ کوئ د عذاب نه -

إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٤٣﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ

یقیناً زه تاسو لره رسول امانتدار یم - نو اویریږئ د الله تعالیٰ نه

وَأَطِيعُونِ ﴿١٤٤﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ

او تابعداری کوئ زما - او زه نه غواړمه ستاسو نه په دے باندے هیڅ

أَجْرٍ ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعٰلَمِينَ ﴿١٤٥﴾

بدله نه ده بدله زما مګر په رب العالمین باندے ده -

ډیر قوت والا یو-

۱۳۹، ۱۴۰:- اشاره ده چه سبب د هلاکت تکذیب دے - او نوره تشریح مخکښ تیره شویده -

۱۴۱ نه تر ۱۴۵ پورے پدے آیاتونو کښ پنځمه واقعه ده د قوم د صالح علیه السلام چه ثمودیان دی- او د دے نبی په بیان کښ هم پنځه خبرے دی تشریح ئے مخکښ شویده -

۱۴۶ :- دا قوم هم جاګیردار او صنعتکاران وو او دا یې سبب د امن د عذاب نه ګڼلو پدې وجه زجر ورکوي.

مَا هٰهُنَآ، هغه نعمتونه چه ستاسو پدې وطن کښې دي نو مَا موصوله ده هٰهُنَآ صله ده دا اجمال دے.

۱۴۷، ۱۴۸ :- دا تفصیل دے د نعمتونو هر کله چه دوی جاګیرداران وو یعنې جائیداد او زمکې یې ډیرې وې د دې وجې نه زُرُوعٍ وَّنَخْلٍ یې ذکر کړو.

طَلْعُهَا، اول چه د اونې د کجورې نه د خانګو په ویخونو کښې کسوره غونډ یا ښکاره شي چه په هغې کښې دننه تره تره دانو وي دې هغه کسوري ته طلع ویلے کیږي او دا رنګ دننه وي دی ته هم طلع ویلے کیږي دلته دویمه معنیٰ مراد ده.

هَضِيمٌ، نرم، چه یو بل سره پیوست وي او چه کوټے ورته نزدے کوے نو ډوډیږي. او قرطبي د ماوردي نه دولس اقوال ذکر دے په معنیٰ کښې نقل کړیدي.

۱۴۹ :- دا زجر دے د هغوی په بے فائدے او بے ضرورته صنعتکارۍ د کلتو یا ندے پدے زمانه کښې هم په ډیرو وطنونو کښې دا کار روان ده شروع دی.

وَأَطِيعُونِ ﴿١٥٠﴾ وَلَا تُطِيعُوٓا أَمْرَ

او زما تابعداري اوکړئ. او تابعداري مه کوئ د طریقې

الْمُسْرِفِينَ ﴿١٥١﴾ الَّذِينَ يُفْسِدُونَ

د تیرو تونکو د حد نه. هغه کسان چه وراڼې کوي

فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ ﴿١٥٢﴾ قَالُوٓا

په ملک کښ او اصلاح نه کوي. اوئیل دوی

إِنَّمَآ أَنتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ ﴿١٥٣﴾ مَآ أَنتَ

یقینًا ته د جادو کړیشوؤ نه یې. نه یې ته

إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا فَأْتِ بِـَٔايَةٍ إِن كُنتَ

مګر بنده یې زمونږ پشان، پس راوړه ته یو نخښه که چرې ته

مِنَ الصَّٰدِقِينَ ﴿١٥٤﴾ قَالَ هَٰذِهِ نَاقَةٌ

د رشتینو نه یې. اوئیل هغهٔ دا اوښه ده

فَارِهِينَ، خپل مهارت ښکاره کوونکي، لوېي کوونکي، عبث کار کوونکي، بې خوفه بې خطره.

١٥٠:- دا دویم کرت تقوٰی او اطاعت په اعمالو کښ مراد دے.

١٥١، ١٥٢:- د صالح علیه السلام په مقابله کښ نهٔ کسان بدمعاشان وو او د هغهٔ د قوم د پاره پیشوایان وو د صالح علیه السلام د تابعدارئ نه یې منع کوله او خپل اطاعت ته یې خلق رابلل نو په دے آیاتونو کښ د هغوی د اطاعت نه منع کوي او د هغې درے وجې ذکر کوي.

ع١ اسراف، ع٢ فساد، ع٣ عدم اصلاح.

١٥٣، ١٥٤:- په یکښ د انکار دوه وجې ذکر کړیدي. الْمُسَحَّرِينَ، اول معنیٰ دا چه په تا باندے سحر کړیشویدے اشارهٔ ده چه سحر ډیر زور علم دے یا دا چه (نه تریخې والا یې) خوراک او څکاک ته محتاج یې. دویم دا چه ته زمونږ پشان بشر یې. بیا یې مطالبه د معجزے کړیده.

لَّهَا شِرْبٌ وَّلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿١٥٥﴾

دے لره نمبر د اوبو دے او تاسو لره نمبر د اوبو د ورځے معلوم دے.

وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ

او مه رسوئ دیته هیڅ تکلیف پس او به نیسي تاسو سره

عَذَابُ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٥٦﴾ فَعَقَرُوهَا

عذاب د ورځے لوے. پس دوی پریکړل اندامونه د هغے

فَأَصْبَحُوا نَادِمِينَ ﴿١٥٧﴾ فَأَخَذَهُمُ الْعَذَابُ

پس شول دوی پښیمانه. پس اونیوه دوی لره عذاب،

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم

یقینًا په دے کښ شته عبرت، او نه دی ډیر د دوینه

مُّؤْمِنِينَ ﴿١٥٨﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ

مؤمنان. او یقینًا رب ستا خامخا هغه زورآور

الرَّحِيمُ ﴿١٥٩﴾ كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ

رحم کوونکے دے. دروغژن کړل قوم د لوط علیه السلام

ف۱۵۵:- د معجزے مطالبه پوره شوه د ګټے نه ورله اوښه راپیدا کړله او د دوی چینه د اوبو وه چه د هغے نه به ئے څاروی او به کول د هغے نمبرئے ورسره مقرر کړو.

ف۱۵۶:- دا ذکر د ادب د معجزے دے او بے ادبی د هغے سبب د عذاب دے.

ف۱۵۷:- دا نهایت بے ادبی او هتک د هغے وو چه د حلا لولو په ځائے ټکړے ټکړے کړه-

نادمین، پښیمانه شول په وخت د راتلو د عذاب کښ او د هغه وخت توبه نه قبلیږی.

ف۱۵۸، ف۱۵۹:- عذاب د هغوی په سورة اعراف او سورة هود کښ ذکر کړے شوے دے.

الْمُرْسَلِينَ ﴿١٦٠﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ

رسولانو لره . کله چه اُوئیل دوی ته ورور (خیرخواه) د دوی

لُوطٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٦١﴾ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ

لوط علیه السلام آیا ځان نه بچ کوئ (د عذاب) نه . یقیناً زه تاسو لره رسول

أَمِينٌ ﴿١٦٢﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٦٣﴾

امانت داریم . پس اوبریږئ د الله تعالی نه او زما تابعداری کوئ .

وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ

او نه غواړم ستاسو نه په دے باندے هیڅ بدله نه ده

أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٦٤﴾

بدله زما مګر په رب العالمین باندے ده .

۱۶۰ نه تر ۱۷۵ پورے شپږمه قِصّه ده د قوم د لوط علیه السلام . په دیکښ پنځه امور ذکر کړیدی . دا دلیل دے چه لوط علیه السلام د نورو انبیاؤ پشان د توحید او د اطاعت خپل قوم ته دعوت کړیوؤ او د شرک او کفر نه یې منع کړیوه .

فائده :- سورة اعراف کښې د لوط علیه السلام په باره کښې اَخُوهُمْ نه دے ذکر کړے ځکه چه هلته د اَخٌ نه مراد قومی ورور ولی ده او لوط علیه السلام د هغه قوم نه نهٔ وؤ او په دے سورت کښې اَخُوهُمْ ذکر کړے دے ځکه چه دلته مراد د ورور نه خیرخواه او ناصح دے او هر پیغمبر د خپل قوم خیرخواه وی . او بله وجه دا هم وئیلے شویده چه د دے قوم سره یې سخر کتئ وه د دے وجے نه دلته دا ورور ولی مراد ده .

أَتَأْتُونَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعٰلَمِينَ ﴿١٦٥﴾

آیا تاسو بدکاري کوئ د نارینو سره د خلقو نه ۔

وَتَذَرُونَ مَا خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ

او پریږدئ هغه چه حلال کړیدي تاسو لره رب ستاسو د

أَزْوَاجِكُمْ ۚ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ عَادُونَ ﴿١٦٦﴾

بیبیانو ستاسو نه، بلکه تاسو قوم یئ د حد نه تیریدونکي ۔

قَالُوا لَئِن لَّمْ تَنتَهِ يٰلُوطُ لَتَكُونَنَّ

دوي اوئیل که چرے منع نه شوې ته اے لوط خامخا شے به ته

مِنَ الْمُخْرَجِينَ ﴿١٦٧﴾ قَالَ إِنِّي لِعَمَلِكُم

د وبستلے شوؤ نه ۔ اوئیل هغه یقینًا زه ستاسو عمل لره

مِّنَ الْقَالِينَ ﴿١٦٨﴾ رَبِّ نَجِّنِي وَأَهْلِي

د بدګڼرونکو نه یم ۔ اے ربه زما بچ اوساتې ما لره او کورنۍ زما

۱۶۵، ۱۶۶ :۔ د شرک نه علاوه هغه قوم د نارینو په بدکارۍ کښ اخته شوے وو او خپلے ښځے ئے پریخودلے وے او نورے بد اخلاقۍ د مارغانو ساتل د هغے جنګول او میلمنو پورے مسخرے کول په اسے عملونو کښ اخته شوے وو ۔ په أَنتُمْ قَوْمٌ عَادُونَ، کښ دیته اشاره ده چه دغه د عدوان کارونه دي ۔ نو پدے آیاتونو کښ هغوی لره زورنه ورکوي۔

۱۶۷ :۔ دا دباؤ وو د دے قوم د طرف نه لیکن د بے غیرتۍ د وجے نه داسے نشي وئیلے چه مونږ به تا اوباسو بلکه وائي چه خوک به دے اوباسي.

۱۶۸ :۔ انبیاء علیهم السلام د چا په دباؤ سره حق نه پریږدي ۔

الْقَالِينَ، د قلی نه اخستے شویدے لکه مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى (سورة الضحٰى ۳) او قلی بغض او نفرت کول او بد ګڼرلو ته که طبعًا دي او که شرعًا وي هم وئیلے کیږي ۔

مِّمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٦٩﴾ فَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ
د سزا د هغه عمل نه چه دوی يې کوی. پس بچ کړو موږ هغه او د ده کورنئ
اَجْمَعِيْنَ ﴿١٧٠﴾ اِلَّا عَجُوْزًا فِى الْغٰبِرِيْنَ ﴿١٧١﴾
ټوله. مګر بوډئ په پاتې کيدونکو کښې وه.
ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿١٧٢﴾ وَاَمْطَرْنَا
بيا هلاک کړل موږ نور خلق. او باران ووروولو موږ
عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ
په دوی باندې نا آشنا باران بد دے باران
الْمُنْذَرِيْنَ ﴿١٧٣﴾ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۖ
ډيره ورکړې شوؤ. يقينًا په ديکښې خامخا عبرت دے،
وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٧٤﴾ وَاِنَّ
او نه دی ډير د دوی نه مؤمنان. او يقينًا
رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٧٥﴾
ستا رب خامخا هغه زور آور رحم کوونکے دے.

١٦٩ نه تر ١٧١ پورې. په ظاهر کښې دُعاء د نجات ده د خپل ځان او اهل د پاره او په حقيقت کښې دعاء شر ده په قوم باندې هر کله چه د هغوی د ايمان نه نااميده شو.

عَجُوْزًا، سره يې تعبير اوکړو اشاره وه چه دا تر آخر عمر پورې په شرک او په کفر کښې باقی وه.

الْغٰبِرِيْنَ، هغه خلق چه په عذاب کښې پاتې شول تر هميشه پورې او د دينه معلومه شوه چه په قوم لوط (عليه السلام) کښې مرض د شرک وو او هغه سبب وو د پاره د عذاب د دغه زنا نه.

فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ، کښې اشاره ده چه د دې قوم هيڅ عذر نه وو

كَذَّبَ أَصْحٰبُ لْـَٔيْكَةِ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٧٦﴾ إِذْ
دروغژن کړل بنړ والو پیغمبرانو لره - هر کله چه
قَالَ لَهُمْ شُعَيْبٌ أَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٧٧﴾ إِنِّيْ
اُوئیل دوی ته شعیب علیه السلام آیا ځان د عذاب نه بچ کوئ - یقیناً زه
لَكُمْ رَسُوْلٌ أَمِيْنٌ ﴿١٧٨﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ
تاسو لره رسول امانتدار یم - نو اویریږئ د الله تعالی نه
وَأَطِيْعُوْنِ ﴿١٧٩﴾ وَمَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ
او تابعداري زما کوئ - او زه نه غواړم ستاسو نه په دے باندے
مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلٰى
هیڅ بدله نه ده بدله زما مګر ده په
رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٨٠﴾ أَوْفُوا الْكَيْلَ
رب العالمین باندے - پوره کوئ پیمانه

ځکه چه دوی ته پوره اندازکړے شوے وو۔
١٧٦ نه تر ١٩١ پورے په دے کښې اوومه قصه ذکر ده د شعیب علیه السلام او قوم د هغهٔ اصحاب الایکة - غوره دا ده چه دا بل قوم دے سوا د اصحاب مدین نه ځکه د دوی عذاب هم جدا دے د عذاب د مدین والو نه۔ شعیب علیه السلام هم پنځه خبرے ذکر کړے دی۔
فائده :- د شعیب علیه السلام په باره کښې أَخُوْهُمْ نه دے وئیلے ځکه چه دے د اصحاب الایکه قومي ورور نه وو بلکه د مدین والو ورور وو او که د خیرخواه په معنیٰ سره ئے ذکر کړے وے نو التباس او اشتباه به پیدا شوے وے چه شاید دے ئے قومي ورور وو ځکه چه د دهٔ په باره کښې سورة اعراف کښې أَخُوْهُمْ وئیلے وو۔

وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُخْسِرِينَ ﴿١٨١﴾ وَزِنُوا

او مهٔ کیږئ دَ کمې کوونکو نه۔ او تول کوئ

بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ ﴿١٨٢﴾ وَلَا تَبْخَسُوا

په تله برابر سره۔ او مهٔ کمکړے کوئ

النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي

دَ خلقو نه مالونه دَ هغوی او مه ګرځئ په

الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿١٨٣﴾ وَاتَّقُوا الَّذِي

ملک کښ فساد کوونکی۔ او اوویریږئ دَ هغهٔ ذات نه

خَلَقَكُمْ وَالْجِبِلَّةَ الْأَوَّلِينَ ﴿١٨٤﴾ قَالُوا

چه تاسو ئے پیدا کړی یئ او خلق مخکښنی۔ دوی اوئیل

۱۸۱، ۱۸۲، ۱۸۳:۔ قوم دَ شعیب علیه السلام سرهٔ دَ شرک کولو نه په تجارت کښ ظلم کوؤ دَ مال دَ کتلو دَ پاره دَ خیانت طریقے ئے اختیار کړے وے دَ دے وجے نه شعیب علیه السلام دَ اصلاح کولو کوشش کوؤ۔ تشریح دَ دے په سورهٔ اعراف او سورهٔ هود کښ تیره شوے ده۔ قِسْطَاس، عربی لفظ دے دَ قِسط نه اخستلے شوے دے او رومی ژبه کښ هم استعمالیږی۔ په عربی ژبه کښ تلے (میزان) ته وائی او په رومی ژبه کښ عدل ته وئیلے شی۔

۱۸۴:۔ دَ دے امر دَ تقوی نه مراد تقوی ده په اعمالو کښ او دَ خیانتونو دَ مالونو نه بچ کیدل۔

الجِبِلَّة، جمع ده په معنیٰ کښ دَ دے وجے نه صفت ئے جمع ذکر کړے شوے دے ډیرو خلقو ته وئیلے کیږی او هر کله چه دَ دهٔ قوم نه وړاندے ډیر قومونه (چه په دے سورت کښ ذکر شول) تیر شوی وو دَ دے وجے نه شعیب علیه السلام دَ هغوی مخلوقیت په دلیل کښ ذکر کړو۔

إِنَّمَا أَنتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ ﴿١٨٥﴾ وَمَا أَنتَ

یقینًا ته د جادوګرو شوؤ نه یې. او نه یې ته

إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَإِن نَّظُنُّكَ لَمِنَ

مګر بنده یې زموږ په شان او یقینًا ګمان کوو موږ په تا باندې خامخا د

الْكَاذِبِينَ ﴿١٨٦﴾ فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا

دروغژنو نه. نو راوغورځوه په موږ ټکړې

مِّنَ السَّمَاءِ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿١٨٧﴾

د آسمان که چیرې ته یې د رښتینو نه.

قَالَ رَبِّي أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٨٨﴾

اُوئیل هغه رب زما ښه پوهیږي په هغه عملونو باندې چه تاسو یې کوئ.

فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ

پس دوی هغه ته دروغژن اُوئیل نو اونیولو دوی لره عذاب د ورځې د وریځې،

إِنَّهُ كَانَ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٨٩﴾ إِنَّ

یقینًا دا دې عذاب د ورځې لوې. یقینًا

ف۱۸۵ ، ف۱۸۶ :- په یکښې درې اعتراضونه دي د طرف د منکرینو نه. اول دې د مسحرینو نه دې دویم دې بشر دې دریم دې دروغژن دې.

ف۱۸۷ :- په یکښې طلب د عذاب دې او دا مبالغه ده په تکذیب کښې.

ف۱۸۸ :- اشاره ده چه عذاب زما په اختیار کښې نشته الله تعالیٰ ستاسو په عملونو خبر دې چه دا سبب د استحقاق د عذاب دې.

ف۱۸۹ ، ف۱۹۰ ، ف۱۹۱ :- اکثر مفسرینو ذکر کړې دي چه په دوی باندې سخته ګرمي مسلط شوه میوه او سورې او اوبه ورته نه ملاویدلې ناساپه د وریځې سورې په دوی باندې راغې دوی د هغې د لاندې راجمع شول نو د هغې نه په دوی باندې اُور راووریدو معلومه شوه

فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ

په دیکښ خامخا عبرت دے ، او نه دی ډیر د دوینه

مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۹۰﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ

مؤمنان ۔ او یقینًا ستا رب خامخا هغهٔ زورآور

الرَّحِيْمُ ﴿۱۹۱﴾ وَاِنَّهٗ لَتَنْزِيْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۹۲﴾ؕ

او رحم کوونکے دے ۔ او یقینًا دا قرآن خامخا نازل کړیشوے د رب د مخلوقاتو نه ۔

نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ ﴿۱۹۳﴾ عَلٰى قَلْبِكَ

راکوزشوے دے په دهٔ سره روح امانت دار ۔ ستا په زړه بان دے

چه اصحاب الأیکه د مدین والو نه غیر دو ځکه چه په هغوی باندے عذاب د رجفے او صیحے راغلے وو او هرکله چه دوی طلب د عذاب د آسمان د طرف نه کړے وو نو الله تعالیٰ وریاندے عذاب د ظلة د یره طرفنه راولیږلو ۔

۱۹۲ :۔ خلاصه :۔ د دے آیت نه دریم باب د سورت دے تر آخر د سورت پورے په دیکښ صدق د رسول او د کتاب دے په لس وجهو سره بیا تخویف دنیوی او زجر دے بیا جوابونه دی د دوؤ شبهو په رسالت باندے او په مینځ کښ پنځه اموردی د پاره د داعی او اختتام دے په تخویف دنیوی سره ۔

ربط :۔ هرکله چه د قصو مخکنو نه معلومه شوه چه تکذیب د رسولانو سبب د عذاب دے نو صدق د دے رسول او بیا تخویف د عذاب منکرینو ته ذکر کوی د پاره د دے چه تکذیب نه توبه او باسی ۔

تفسیر :۔ په دے آیاتو کښ لس وجوهات ذکر کوی د پاره د صدق د رسول او د قرآن په دے ۱۹۲ کښ دوه وجوهات دی ۔ تَنْزِيْلٌ ، او نسبت رب العالمین ته ۔

۱۹۳ :۔ په دے آیت کښ دریمه وجه ده ۔ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ ، نه مراد جبرائیل علیه السلام دے دلته کښ د قرآن صدق ۔۔ او امانت ثابتول

لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ ﴿۱۹۴﴾ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ

د دے د پاره چه ته شے د ویره ورکوونکو نه ۔ په ژبه عربي

مُّبِيْنٍ ﴿۱۹۵﴾ وَاِنَّهٗ لَفِيْ زُبُرِ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۹۶﴾

ښکاره ۔ او یقینًا دا قرآن (خبر د دے) خامخا په کتابونو د مخکنو کښ دے ۔

اَوَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ اٰيَةً اَنْ يَّعْلَمَهٗ

او آیا نښته دوی لره نخښه چه پوهیږی (د دے) په صداقت یا ندے

عُلَمٰٓؤُا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۱۹۷﴾ وَلَوْ نَزَّلْنٰهُ

عالمان د بنی اسرائیلو ۔ او که چرے نازل کړے وو مونږ دا کتاب

مقصد دے د دے وجے نه د جبرائیل صفت ئے په الامین سره ذکر کړے دے او په کوم ځائے کښ چه د قرآن نه اعتراض دفع کول مقصد وی یعنی د قرآن تقدس ثابته وی نو هلته د جبرائیل صفت په القدس سره ذکر کیږی ۔

۱۹۴ :۔ په دے آیت کښ څلورمه او پنځمه وجه ذکر کړے شویده انزال په زړه باندے او فائده د انذار ۔

۱۹۵ :۔ په دے کښ شپږمه او اوومه وجه او پوره وضاحت او فصاحت ئے ذکر کړے ده او عربی لغت مُبِیْنٍ کښ اشاره ده نهایت فصاحت او بلاغت د قرآن ته ۔

۱۹۶ :۔ په دے آیت کښ اتمه وجه ذکر ده مراد دا دے چه خبر د دے قرآن په مخکښ کتابونو کښ شته یا تصدیق د دے په مخکنو کتابونو کښ شته یا مضمون د دے قرآن په مخکنو کتابونو کښ هم شته او چا چه وئیلی دی چه نفس قرآن په مخکنو کتابونو کښ شته بغیر د دے الفاظو نه نو معلومه شوه چه قرآن نوم د معنیٰ دے دا قول باطل دے امام ابوحنیفه هم د دے قول نه رجوع کړیده ۔

۱۹۷ :۔ په دے کښ نهمه وجه د صدق د قرآن ده چه علماء د بنی اسرائیلو هم د دے په صدق باندے عالم او شاهد وو ۔

عَلٰى بَعْضِ الْاَعْجَمِيْنَ ﴿۱۹۸﴾ فَقَرَاَهٗ عَلَيْهِمْ

په بعضے عجمیانو باندے - پس لوستلے به ئے دا په دوی باندے

مَّا كَانُوْا بِهٖ مُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۹۹﴾ كَذٰلِكَ سَلَكْنٰهُ

نه وُو دوی په دهٔ باندے ایمان راوړونکی . دغسے ورننه باسو مونږه

فِىْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۲۰۰﴾ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ

په زړونو د مجرمانو کښ . نه راوړی دوی ایمان په دے قرآن

حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿۲۰۱﴾

تر دے پورے چه اُوینی دوی عذاب دردناک لره .

فَيَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۲۰۲﴾

پس راشی دوی ته ناگهه او دوی په نه پوهیږی .

۱۹۸، ۱۹۹ :- په دے آیتونو کښ لسمه وجه ده چه عربیت دَ دے رسول دَ دوی دَ ایمان دَپاره سبب شکاره دے - او په یکښ زجر هم دے چه سره دَ دینه چه په عجمی نه دے نازل شوے بیا هم دوی ایمان نه راوړی او په قراءت دَ عجمی سره دوی ایمان نه راوړی دَ وجے دَ تکبر او دَ تعصب نه یا دَ دے وجے نه چه عجمیت کښ دَ عربیت په شان کمال نشته دَ دے وجے نه آخری کتاب او رسول دَپاره عربیت خاص کړے شو.

۲۰۰، ۲۰۱ :- په یکښ زجر دے په انکار دَ قرآن سره یعنی چه دَ اول نه مجرم وی په تکذیب یا په شک کولو سره نو دَ هغهٔ په زړه کښ انکار دَ قرآن داخل کړیشی نو بیا بالکل ایمان نه راوړی ځو پورے چه عذاب ئے نه وی لیدلے یعنی دَ بو کفر نه بل کفر پیدا کیږی.

سَلَكْنٰهُ، نسبت الله تعالی ته داسے دے لکه خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ کښ. او ه ضمیر انکاری ته راجع دے چه مَا كَانُوْا بِهٖ مُؤْمِنِيْنَ په هغے باندے دلیل دے.

۲۰۲، ۲۰۳ :- دا تخویف دنیوی دے . فَيَاْتِيَهُمْ جواب دَ لَا يُؤْمِنُوْنَ دے او آن پکښ مقدر دے او دا رنګ فَيَقُوْلُوْا هم په يَاْتِيَهُمْ

فَيَقُولُوا هَلْ نَحْنُ مُنظَرُونَ ﴿٢٠٣﴾
نو وائي به دوى آيا موږ ته مهلت راکولے شي .
أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ ﴿٢٠٤﴾ أَفَرَءَيْتَ
آيا عذاب زموږ دوى په تادئ سره غواړي . آيا پس ته پوهه يې
إِن مَّتَّعْنَاهُمْ سِنِينَ ﴿٢٠٥﴾ ثُمَّ جَاءَهُم
که چرے مزے د دنيا ورکړو موږ دوى لره څو کاله . بيا راشي دوى ته
مَّا كَانُوا يُوعَدُونَ ﴿٢٠٦﴾ مَا أَغْنَىٰ عَنْهُم
هغه عذاب چه دوى لره په هغے باندے ويره ورکيده شي . دفع به نه کړي د دوى نه (دا عذاب)
مَّا كَانُوا يُمَتَّعُونَ ﴿٢٠٧﴾ وَمَا أَهْلَكْنَا مِن
هغه مزے چه دوى له ورکيده شي . او نه دے هلاک کړے موږ هيڅ
قَرْيَةٍ إِلَّا لَهَا مُنذِرُونَ ﴿٢٠٨﴾ ذِكْرَىٰ قف
کلے مگر هغے لره ويره ورکوونکي دي . د پاره د نصيحت
وَمَا كُنَّا ظَالِمِينَ ﴿٢٠٩﴾ وَمَا تَنَزَّلَتْ
او نه يو موږ ظلم کوونکي . او نه دے کوز راوړے

باندے عطف دے نو منصوب دے .
٢٠٤ :- دا مستقل زجر دے په استعجال د عذاب سره د تخويف نه .
٢٠٥ ، ٢٠٦ ، ٢٠٧ :- دا جواب د استعجال دے حاصل دا دے چه عذاب په دوى باندے که هر وخت راشي ليکن د دوى عمر او د دنيا ساز وسامان دوى له هيڅ فائده نشي ورکولے نو بيا ولے استعجال کوي په عذاب سره .
٢٠٨ ، ٢٠٩ :- دا هم جواب د استعجال دے يعنى دوى عذاب غواړي ليکن عادت الهيه دا دے چه رسول راشي او پوره انذار او کړي او تذکير ورکړي روستو د هغے نه په سبب د انکار د دوى سره عذاب راځي .

بِهِ الشَّيٰطِيْنُ ﴿۲۱۰﴾ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهُمْ

دا قرآن شیطانانو. او نه ځائيږي د دوی د شان سره

وَمَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿۲۱۱﴾ اِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ

او نه دوی طاقت لري. ځکه چه یقینًا دوی د اوريدلو نه

لَمَعْزُوْلُوْنَ ﴿۲۱۲﴾ فَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ

خامخا شړلے کيږي. نو مه رابله د الله تعالی سره

اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَكُوْنَ مِنَ الْمُعَذَّبِيْنَ ﴿۲۱۳﴾

چه اِلٰه (حاجت روا) بل نو شې په د عذاب ورکړے شوؤ نه.

ذِكْرٰى يعنى يذكرون ذكرى. يا دا مفعول له دے د پاره د مُنْذِرُوْنَ يعنى اَلَّا تَدَّ اُرِ لِاَجْلِ التَّذْكِيْرِ.

۲۱۰، ۲۱۱، ۲۱۲:- دا عطف په آيت ۱۹۲ باندے او پورے آياتونو کښې جواب دے د اولے شبهے په باره د رسول او د قرآن کښې دوی وئيل چه دا کاهن دے او قرآن اخبار د کهانت دے (کاهن هغه څوک دے چه دعوی کوی د علم د غيبو خبرو د تيرشوؤ يا راتلونکو په واسطه د جناتو مسخر کړے شوؤ سره)، د جواب حاصل دا دے چه کاهنانو له خبرونه شيطانان (سرکش جنات) راوړی هرجنی د هغه تابع نه وی او دا قرآن جبرائيل عليه السلام راوړے دے (لکه چه په ۱۹۳ کښې تير شو) دا شيطانانو نه دے راوړے دا اول جواب دے.

دويم دا چه دا قرآن د صدق او د هدايت د وجے نه د شيطانانو سره مناسب نه دے د شيطان خبرے او کار د دروغو او د ګمراهئ وی. او قرآن خو ټول رښتيا خبرے او د هدايت دی.

دريم دا چه شيطانان د دے قرآن د راوړلو طاقت هم نه لري ځکه چه دوی مجلس د ملائيکو نه غوږ نشی کيخودلے بلکه زغلولے کيدلشی لکه سورة حجر ۱۸ کښې او سورة صافات ۸ کښې دی. اِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ، دا علت د مايستطيعون دے.

فائده:- د سَمْع اثر مرتب دے په استماع باندے يعنى اګرچه دوی استماع کوی په طريقه د (اِسْتَرَقَ السَّمْعَ) سره ليکن د اوريدلو نه او شړلے شی.

۲۱۳:- دا بيان د فرق دے په مينځ د دعوت د شيطانانو او د مقصد د قرآن کښې.

وَاَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ ﴿۲۱۴﴾ وَاخْفِضْ

او اویره وه قبیله خپله نزدے (په نسب کښې). او کوزه ساته

جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۲۱۵﴾

وزر خپل هغه چاته چه تابعداری کوی ستا د ایمان والو نه.

یعنی شیطانان دَغیرالله نه حاجتونه غواړی او شرک کوی او شرک ته دعوت ورکوی او ته دَ قرآن دَ مقصد موافق دَ غیرالله نه حاجات مه غواړه کله چه الله ئے او گنړے (یعنی واکداردَ هرڅه او غیبدان) ئے او گنړے وحاجات تر بینه غواړے داخو شرک دے او سبب دَ عذاب دے او قرآن خو دعوت دَ توحید ورکوی. خطاب په دے کښې پیغمبر ته دے لیکن مراد تر بینه امتیان دی. او دَ دے آیت نه تر ۲۲۰ پورے پنځه آداب دَ داعی دَ حق دَ پاره ذکر کوی په دیکښې اول ادب دے چه داعی دِ دَ مشرکانو دَ تشبیه او دَ عذاب دَ اسبابو نه ځان اوساتی.

۲۱۴:- په دے کښې دویم ادب دَ داعی دَ پاره ذکر کوی یعنی صاف دعوت ورکول خپلے قبیلے او خپلوانو ته اگرچه مشران وی لوے نسب والا وی، دا دَ دے دَ پاره چه نور خلق طعن او نکړی چه خپلوانو ته هیڅ نه وائی او موږ ته مسئلے کوی. دویم دَ دے دَ پاره چه خلق پوهه شی چه دے په دین کښې دَ خپل او لوے سړی لحاظ نه کوی. دریم چه خپلوان دَ ده نه دا طمع او نه لری چه دے به زموږ خبره اومنی. بله خاصه وجه په دعوت دَ قریشو کښې دا ده چه په هغوی باندے دَ نورو خلقو اعتماد وو او دوی پشان دَ پیرانو وو او عام خلق دَ دوی مریدان او تابع وو او هرکله چه متبوع او پیر ایمان راوړی نو تابعدار او مریدان ضرور ایمان راوړی نو دوی ته دعوت ذریعه ده دَ دعوت دَ عام کولو دَ پاره.

۲۱۵:- دا دریم ادب دے په باره دَ ملګرو کښې چه داعی دِ دَ خپلو ملګرو سره شفقت او نرمی کوی او دا سے سورة حجر ۸۸ کښې تیر شوی دی. دَ مرغانو عادت دے چه الوځی نو وزرے پورته کړی او کله چه کوزیګی نو وزرے ختته کړی نو دا کنایه ده دَ تواضع او انکسار نه دَ ملګرو

فَإِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ إِنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا

نو که دوی ستا نافرمانی اوکړی نو ورته اُووایه یقیناً زه بیزاره یم د هغه نه

تَعْمَلُونَ ﴿٢١٦﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى الْعَزِيزِ

چه تاسو یئے کوئ. او تکان اوسپاره په لور آور

الرَّحِيمِ ﴿٢١٧﴾ الَّذِي يَرَاكَ حِينَ

اورحم کوونکی باندے. هغه ذات دے چه وینی تا لره کوم وخت چه

تَقُومُ ﴿٢١٨﴾ وَتَقَلُّبَكَ فِي السَّاجِدِينَ ﴿٢١٩﴾

ته اودریږے. او اوړیدل ستا په سجده کوونکو کښ.

إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٢٢٠﴾ هَلْ

یقیناً الله تعالیٰ هغه هرڅه آوری او په هرڅه باندے پوهیږی. آیا

سره. دا رنګ چرګ د شفقت د وجے نه په خپلو بچو باندے وزرے خوروی.

٢١٦: دا څلورم ادب دے په باره د مخالفت کوونکو کښ یعنی څوک چه پیغمبر ته مخالفت کوی نو د هغوئ نه براءت کول پکار دی او په اعلان براءت کښ مقصد دا دے چه څوک د دے جرم نسبت داعی ته اونکړی.

٢١٧ نه تر ٢٢٠ پورے دا پنځم ادب دے یعنی هرکله چه د مخالفینو نه براءت کول ګران کار دے نو د هغے علاج توکل علی الله دے او د هغهٔ پنځه صفات یئے ذکر کړیدی چه هغه دلیل د صحت او د حصر دے د توکل د پاره په الله تعالیٰ پورے.

حِينَ تَقُومُ، هر قیام ته شامل دے او خصوصاً د خوب نه بیداری د پاره د عبادت د شپے.

وَتَقَلُّبَكَ، حالت بدلیدل د قیام نه رکوع ته او د رکوع نه سجدے ته او سجدے نه قعدے ته او د قعدے نه قیام ته دا ټول اشاره ده اعمالو د مانځه ته.

هَلْ أُنَبِّئُكُمْ عَلَىٰ مَنْ تَنَزَّلُ الشَّيَاطِينُ ﴿٢٢١﴾

خبر در کرم تاسو لره په باره د هغه چاچه راکوزیږي په هغه باندې شیطانان۔

تَنَزَّلُ عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴿٢٢٢﴾

راکوزیږي په هر دروغژن گناهکار باندې۔

يُلْقُونَ السَّمْعَ وَأَكْثَرُهُمْ كَاذِبُونَ ﴿٢٢٣﴾

اچوي دوي (په غوږونو د کاهنانو کښې) آوریدلې شوې خبرې او ډیر د دوي نه دروغژن دي۔

الشّٰیٰطِیْنَ ، نور ملگري مونځ کوونکي د جماعت یعني الله تعالیٰ عالم دے که د شپې مونځ کوے او که د ورځې او که یواځې مونځ کوے او که په جماعت سره یا مراد د دینه گرځیدل دي د موحدینو سره او بعضې مفسرینو ویلي دي چه مراد د دے پشت په پشت د نبي صلی الله علیه وسلم په مخکنو کښې د آدم علیه السلام نه تر پلار د هغه پورے په موحدینو کښې۔ لیکن په دے باندے اعتراضات دي او دا ضعیف قول دے۔

۲۲۱ ، ۲۲۲ ، ۲۲۳ ۔ اول ئې حال د شیطانانو بیان کړو بیائې حال د صالحینو بیان کړو نو اوس حال د ملگرو د شیاطینو بیانوي او د جواب د شبهې تتمه ده حاصل دا چه ملگري د شیطانانو دروغژن گناهکاردي تلبیس د رشتیا او د باطلو کوي او دا پیغمبر او صحابه د دے صفاتو نه پاک دي نو څه رنگ شبهه کوئې۔

أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ، دا د کاهن صفتونه دي او دواړه صیغې د مبالغې دي په ډیر والي باندے دلالت کوي۔

يُلْقُونَ السَّمْعَ ، السمع په معنیٰ د مسموع دے مطلب دا دے چه کومه یوه خبره ئې د ملائیکو نه آوریدلے وي هغه د کاهن په غوږ کښې اوغورځوي او دا کاهن ورسره نور دروغ د ځان د طرف نه گډ کړي نو هر کله چه د هغه یوه خبره رشتیا معلومه شي نو خلق د هغه د نورو دروغو تصدیق کوي هم دا رنگ حدیث صحیح کښې ذکر دي۔ یا السَّمْعَ په معنیٰ د غوږ دے یعني شیطانان ملائیکو ته غوږ کیدي او دروغ خبرے ورسره گډے کړي۔

وَالشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُنَ ﴿۲۲۴﴾ اَلَمْ تَرَ

او شاعران روان وی په هغوی پسے سرکشان خلق - آیا نه ګورے

اَنَّهُمْ فِیْ كُلِّ وَادٍ يَّهِيْمُوْنَ ﴿۲۲۵﴾

چه دوی په هره کنده کښې ګډ وډ ګرځی -

۲۲۴:- په دے آیت کښې ددویمے شبهے جواب دے منکرینو وئیل چه دا شاعر دے او دا قرآن ددهٔ اشعار دی او د منکرینو په نیز دا ثابته وه چه شاعر دروغو لره په شعر سره خائسته کوی او خلقو باندے اثر کوی - جواب ورکوی په درے طریقو سره په دے آیت کښې -

اوله طریقه د جواب دا ده اِسْتِدْلَال بِالصَّاحِبِ وَالْقَرِيْنَ (مثال دے چه سړی نه مه ګوره ملګری ته ئے اوګوره) یعنی د شاعرانو تابعدار او ملګری ګمراهان، بد معاشان، فاسقان وی او د دے نبی صحابه سجده کوونکی، ژړا کوونکی، دنیا سره محبت نه کوونکی دی (دارنګ په تفسیر سراج المنیر کښې دی) -

فائده :- هر کله چه د خائسته صفاتو د صحابو نه صدق د نبی صلی الله علیه وسلم باندے استدلال اوکړے شو نو لازمی نتیجه دا ده چه څوک د صحابه کرامو بدی وائی او هغوی ته سب وشتم کوی نو هغه د نبی تکذیب کوی -

۲۲۵:- په دے کښې دویمه طریقه د جواب ده چه شاعران بے هوده کلام او متضاد خبرے کوی او د دنیا د لالچ د وجے نه د چا مدح او د چا هجوه کوی - او لفظ د يَهِيْمُوْنَ کښې تشبیه دوی ورکوی د اوښانو اوږو تږو سره چه هرے کندے او صحراګانو ته د خوراک څښاک په حرص کښې ګرځی - او هرچه قرآن او د دے نبی صلی الله علیه وسلم حال دے نو د هدایت او د حکمت د خبرو نه ډک دے دنیا پرستئ او هوا پرستئ نه خالی دے -

وَاَنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ مَا لَا يَفْعَلُوْنَ ﴿۲۲۶﴾

او یقینًا دوی واۍ هغه چه نه یې کوی دوی۔

اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

مګر هغه کسان چه ایمان یې راوړے دے او عمل نیک کوی ریه تابعدارۍ

وَذَكَرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّانْتَصَرُوْا مِنْۢ

د سنت کښې) او یاد وی الله تعالیٰ لره ډیر او بدل یې واخستو

بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا ۭ وَسَيَعْلَمُ الَّذِيْنَ

روستو د هغې نه چه په دوی باندے ظلم کړے شو نو یې۔ او زر دے چه پوهه به شی هغه کسان

ظَلَمُوْٓا اَيَّ مُنْقَلَبٍ يَّنْقَلِبُوْنَ ﴿۲۲۷﴾

چه ظلم یې کړے دے چه کوم ایرځ ته دوی آپه دی۔

ع ۱۱ / ۳۴ / ۱۵

س۲۲۶:۔ په دے کښې دریمه طریقه د جواب ده چه د شاعرانو قول او عمل مختلف وی۔ د رسول د محبت شعرونه واۍ او سیرت او صورت یې د هغې نه خلاف وی نورو خلقو له د نیکو اعمالو او د سخاوت وغیره ترغیبونه ورکوی او پخپله پرے عمل نه کوی۔ او د دے نبی او د دهٔ د ملګرو قول او عمل بالکل یو شان دی۔

س۲۲۷:۔ هر کله چه شاعرانو کښې صحیح مؤمنان هم شته لکه په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې حسان بن ثابت رضی الله عنه او نور هم، د دے وجے نه د هغوی استثناء کوی او څلور صفتونه ذکر کوی ۱ ایمان ۲ عمل صالح ۳ ذکر کثیر ۴ بدله او انتقام اخستل۔ یعنی د دوی اشعارو کښې ایمان او اعمالِ صالحو ته ترغیب وی او د الله تعالیٰ ثناء او حمد باندے مشتمل وی او هر کله چه کافران شاعران د نبی صلی الله علیه وسلم یا د مسلمانانو یا د اسلام هَجْوَ اوکړی نو دوی د پاره د انتصار د هغوی په هَجْوَ کښې جوابی اشعار واۍ ځکه دا هم یو قسم جهاد باللسان دے ځکه چه مشهوره ده د ژبې زخم جوړیږی خو د

ژبې زخم ته جوړیږي. او په آخر د سورت کښې تخویف شدید دے ظالمانو شاعرانو او نورو منکرینو ته.
سَيَعْلَمُ، کښې تهدید دے. اَلَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا، کښې تعمیم دے اَیّ کښې ابهام دے. مُنْقَلَبٍ کښې د دوی د نعمتونو او خوشحالو انقلاب ته اشاره ده چه دا به په غمونو سره بدل کړے شي ځکه چه لفظ د مرجع، اکثر وتلے کیږي واپس کیدل اول حال ته او لفظ د مُنْقَلَبٍ واپس کیدل دي بد حال ته. يَنْقَلِبُوْنَ، کښې تجدد د انقلاب ته اشاره ده چه حالت به ئے نوے نوے فساد او خرابۍ طرف ته بدلیږي.

(ختم شو تفسیر د سورة الشعرآء په فضل د الله تعالی او په کرم د هغه سره)

سورة النمل مكية | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰياتها ۹۳ رکوعاتها ۷

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحيم دے

طٰسٓ ﵞ تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ

دا آيا تونه د قرآن او د کتاب

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة النمل ، دويم نوم ئے سورة سليمان دے

ربط :- د دے سورت د سورة شعراء سره دا دے . ۱ چه په هغه سورت کښې اظهار د غضب او نعمتِ الٰهيه وو نو په دے سورت کښې اظهار د علم او د حکمت د الله تعالیٰ دے په مخلوق کښې .
۲ په هغه سورت کښې نقلي دليلونه وو په توحيد باندے نو په دے سورت کښې دوه علتونه ذکر کوی د پاره د رد د شرک.
۳ د هغه سورت په آخر کښې صدق د قرآن او د رسول ئے ذکر کړو په دفع کولو د شبهاتو سره نو په دے سورت کښې ترغيب ورکوی قرآن ته او نبی صلی الله عليه وسلم ته دوه ويشت خطابات کوی .
دعوٰی د دے سورت :- اثبات د توحيد د الوهيت د الله تعالیٰ دے په دوه علتونو سره .
اول علت دا دے چه ټول بزرګان بندګان سلامتيا او عافيت کښې الله تعالیٰ ته محتاج دی.
دويم علت دا دے علم د غيب په الله تعالیٰ پورے خاص دے او دا دواړه علتونه په ضمن د شلورو قصو کښې ذکر کوی او دا رنګ په عقلي دليلونو سره په رد د الوهيت د غير الله باندے او ماخذ د دے دعوے د ۶۰ نه تر ۶۶ پورے او په ۶۲، ۶۵ کښې دے .
خلاصه :- د دے سورت دا ده چه دا سورت تقسيم دے درے بابونو ته .
اول باب ، تر ۶ پورے دے په دے کښې ترغيب دے قرآن کريم

مُّبِيْنٍ ﴿۱﴾ هُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۲﴾

| بنکاره کوونکې (د حق او باطل) دی هدایت دے او خوشحالی ده د پاره د مؤمنانو۔ |
|---|

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ

| هغه کسان دی چه پابندی کوی د مانځه او ورکوی |
|---|

الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ﴿۳﴾

| زکوٰة او دوی په آخرت کښ هم دوی یقین لری۔ |
|---|

ته په ذکر د خلور وصفاتو د قرآن او څلور صفات د اهلِ قرآن او زجر دے منکرینو د قرآن ته او تخویف اخروی او تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته۔

تفسیر:۔ ۱ :۔ دا د مقطعاتو نه دے او کیدے شی چه ط اشاره وی حکمتونو ته چه په طور کښ ئے موسٰی علیه السلام ته ورکړے وو او هغه سبب او ګرځیدو د پاره د سقوط د فرعون چه غیر شرعی سیاست او حکومت ئے کوو۔ او س اشاره وی حکمتونو د سلیمان علیه السلام ته چه تعلق لری د شرعی سیاست سره۔ او میم پدے سورت کښ ئے نه دے ذکر کړے ځکه چه احوال د محمد صلی الله علیه وسلم ئے په دے سورت کښ په اختصار سره ذکر کړے دی او بیا پدیکښ ترغیب دے قرآن کریم ته او پدے کښ ئے دوه اوصاف ذکر کړے دی۔ اول الکتاب اشاره ده جامعیت د دینه۔ دویم مُّبِيْنٍ سره د جامعیت نه وضاحت د مقاصدو ته اشاره وه۔

۲ :۔ پدیکښ نور دوه صفتونه د قرآن ذکر دی هدایت دے عظیم مقصدونو ته۔ او پدے سره خفګان او تکلیف نه زیاتیږی بلکه بُشْرٰی دے یعنی مؤمنانو لره خوشحالی زیاتوی۔ او یو صفت د اهلِ قرآن ذکر کوی۔ لِلْمُؤْمِنِيْنَ، اشاره ده چه دغه فائدے مؤمنانو ته ښکاره کیږی۔

۳ :۔ درے صفتونه ئے د اهلِ قرآن ذکر کړیدی چه دا صفتونه په ایمان بالقرآن سره پیدا کیږی۔

إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ

يقيناً هغه كسان چه ايمان نه راوړي په آخرت باندے

زَيَّنَّا لَهُمْ أَعْمَالَهُمْ فَهُمْ يَعْمَهُونَ ④

ښائسته كړيدي مونږ دوي ته عملونه د دوي نو دوي گمراه دي.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَهُمْ سُوءُ الْعَذَابِ

دا هغه كسان دي چه دوي له ناكاره عذاب دے

وَهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ ⑤

او دوي به په آخرت كښ، هم دوي تاوان والا وي.

وَإِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْآنَ مِنْ لَدُنْ

او يقيناً ته خامخا خودلے شي تاته قرآن د طرف

سـ٤: په دے كښ زجر دے منكرينو ته چه انكار د آخرت ته سبب دے د اعمالو قبيحو (مخالف د صفاتو د اهلِ قرآن نه) او اعمالِ قبيحه سبب دے د عمه يعني پريشاني د ژوند دنيوي.

زَيَّنَّا لَهُمْ، نسبت د زينت الله تعالىٰ ته په اعتبار د خلق سره دے د پاره د ابتلاء او كله نسبت د دے شيطان ته كيدے شي په اعتبار د وسوسے د هغه سره.

أَعْمَالَهُمْ، نه مراد ناكاره عملونه او بدعات دي.

سـ٥: په دے كښ تخويف دے دنيوي او اخروي منكرينو ته.

سُوءُ الْعَذَابِ، د دے وجے نه چه اعمال ئے سيئه دي.

او الْأَخْسَرُونَ، د دے وجے نه چه هغے اعمالو سيئو ته بنا كارونه واڼي او ځان پكښ كړے دي.

حَكِيْمٍ عَلِيْمٍ ۝٦ اِذْ قَالَ مُوْسٰى

دَ حکمت والا او په هر څه پوهیدونکی ذات نه۔ کوم وخت چه اُوئیل موسیٰ علیه السلام

لِاَهْلِهٖٓ اِنِّيْٓ اٰنَسْتُ نَارًا ۭ سَاٰتِيْكُمْ

خپل کور والا ته یقیناً ما لیدلے دے اور، زر ده چه راب وړم تاسو ته

مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ اٰتِيْكُمْ بِشِهَابٍ

دَ هغې نه خبر (دَلارے) یا به راؤړم تاسو ته شغله لیت

قَبَسٍ لَّعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ ۝٧ فَلَمَّا

بل کړے دَ دے دَ پاره چه تاسو تاؤده شئ۔ پس هر کله چه

ملا:۔ دا متعلق دے دَ اول آیت سره او په یکښ تسلی او تشجیع ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په بیانولو دَ قرآن په تاکید سره۔ لَتُلَقَّى کښ اول تاکید دے یعنی قرآن راځی تا ته دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه او ته ئې قبلوے په مضبوطیا سره۔ بل تاکید دا دے مِنْ لَّدُنْ دَ مینځ نه۔ واسطه دَ جبرائیل ئې حذف کړله۔ او خبره دَ رسول خو کلام دَ مرسل وی۔

حَكِيْمٍ عَلِيْمٍ، دا نور تاکیدات دی او دا تمهید دے دَ راتلونکو واقعاتو دَ پاره چه په دغه واقعاتو کښ حکمتونه دی او دَ علمونو دَ الله تعالیٰ مظهر دے او دا په دے سورت کښ اول خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته۔

سک:۔ خلاصه:۔ دَ دے آیت نه دویم باب دے تر ملاث پورے په دیکښ واقعه دَ موسیٰ علیه السلام او سلیمان علیه السلام کښ لوے حکمت ته اشاره کوی چه دوی په غیبو باندے علم نه لرلو او واقعه دَ صالح علیه السلام او دَ لوط علیه السلام کښ لوے حکمت ته اشاره ده چه دوی او دَ دوی تابعداران راګرچه دا لوی بزرګان وو په سلامتیا او عافیت کښ الله تعالیٰ ته محتاج وو۔

تفسیر:۔ دَ دے آیت سک نه تر سلا پورے اوله قصه دَ موسیٰ علیه

جَآءَهَا نُوْدِيَ اَنْ بُوْرِكَ مَنْ

راغے موسیٰ هغے ته آواز ورکړے شو چه برکت ورکړے شویں ے هغه چاته چه

فِي النَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا ؕ وَسُبْحٰنَ

په طلب دَ دے اُورکښں دے او هغه څوک چه دَ دے چاپیره دی، او پاکی ده

اللّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞ يٰمُوْسٰى

الله تعالیٰ لره چه رب العالمین دے - اے موسیٰ

السلام ذکرکوی او په هرآیت کښں حکمتونه دی او هرکله چه سورة الشعرآء کښں ابتدا دَ دے قصے نه وه ذکرکړے نو په دے آیاتو نوکښں ابتداء دَ قصے ذکرکوی۔

په دے آیت کښں بعضے حکمتونه دا دی۔ ۱ دَ موسیٰ علیه السلام اهل وعیال وو۔ ۲ سفر دَ اهل سره جائز دے۔ ۳ غیب دان نه دے ځکه تُور ته یے نار اُوئیلو۔ ۴ دَ اُور والو نه استفاده کول په خبر دَ لارے۔ ۵ دَ اُور نه استفاده کول دَپاره دَ دفع دَ بخنې۔

بِشِهَابٍ قَبَسٍ، شهاب رڼا ته وئیلے کیږی او قبس، بل لیتکی ته وائی یعنی شغله دَ بل لیتکی به راوړم۔

۳:- حکمتونه په یکښں ۱ سفر دَ موسیٰ علیه السلام سبب شو دَ حصول دَ برکاتو الهیو دَپاره۔

۲ موسیٰ علیه السلام او ملائیک په برکاتوکښں الله تعالیٰ ته محتاج دی ځکه مجهول صیغه یے ذکرکړیده لیکن فاعل معلوم دے دَ سورة فرقان نه۔

۳ او ندا اوکلام دَ الله تعالیٰ دَ مخلوق دَ مشابهت نه منزه رپاک) دے ځکه یے سُبْحٰنَ اللّٰه اُوئیل۔

۴ اوتنزیه رپاکوالے) دَ الله تعالیٰ ذاتی اوفعلی دواړه ده ځکه یے الله او رب دواړه صفتونه ذکرکړل۔

اَنْ بُوْرِكَ. دا سلام اوترحب دے دَ الله تعالیٰ دَ طرفته موسیٰ علیه السلام ته۔

إِنَّهُۥٓ أَنَا ٱللَّهُ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴿٩﴾
یقینًا زهٔ الله یم زور آور او حکمتونو والا۔
وَأَلْقِ عَصَاكَ ۚ فَلَمَّا رَءَاهَا تَهْتَزُّ
او ادغورځوه همسا خپله ، نو هرکله چه اولیدله هغه خوزیدله زر زر
كَأَنَّهَا جَآنٌّ وَلَّىٰ مُدْبِرًا وَلَمْ
گویا که چمچمار دے او گرځیدلو شاګوړنکے او نه
يُعَقِّبْ ۚ يَـٰمُوسَىٰ لَا تَخَفْ إِنِّى
راګرځیدلو بیرته (راوئیل موږ) اے موسیٰ مه بیریږه یقینًا

مَنْ فِى ٱلنَّارِ ، هغه څوک چه په ځائے دَ اُورکښ دے یا په طلب دَ اُورکښ دے ۔ لیکن په اعتبار دَ ګمان دَ موسیٰ علیه السلام ئې ورته نار اُوئیل او مراد دَ نار نه نور دے او دا موسیٰ علیه السلام دے۔

وَمَنْ حَوْلَهَا ، مراد دَ دے نه ملائیک دی چه دَ الله تعالیٰ په اذن سره دغه نور ته راجمع کړے شوے دی۔

ف ۱۔ حکمتونه دا دی - ۱ مرحبا او سلام نه روستو تعارف کیږی۔

۲ او دَ سلام نه روستو کلام دے۔

۳ الْعَزِيزُ کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ به موسیٰ علیه السلام لره غلبه او عزت ورکوی۔

۴ الْحَكِيمُ ، کښ اشاره ده چه په موسیٰ علیه السلام باندے ئې اول مصیبتونه قسم قسم راوستل او آخرکښ کامیابی ورکول دا بنا دی په حکمت دَ الله تبارک وتعالیٰ باندے۔

۵ او په دے کښ وحی دَ مسئلے دَ توحید ده چه اول فرض دے۔

س۱:۔ په دے کښې حکمتونه ۔ ع۱ دَ رسالت سره معجزه پکار ده۔

ع۲ مناسبه معجزه وه دَ هغه وخت سره۔

ع۳ په عنوالی کښې ثعبان او په زرزر خوزیدلو کښې دَ جان (چیچمار) پشان، دوه صفتونه متضاد پکښې جمع وُ دلیل دے په لوئیه قدرت دَ الله تعالیٰ باندے۔

ع۴ دَ ظاهر اسبابو نه ویره کول دَ رسالت سره منافي نه دی۔

ع۵ دلیل دے چه په غیبو باندے موسیٰ علیه السلام نه پوهیدلو۔

ع۶ دلیل دے چه معجزه دَ نبی په اختیار کښې نه وی۔

ع۷ تسلی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه۔

ع۸ په وخت دَ قرب الله تعالیٰ کښې دَ اسبابو نه خوف نه وی پکار۔

ع۹ او دا خاص دے په رسولانو پورے دا لوے شان دَ رسولانو دے۔

س۲:۔ په دے آیت کښې استثناء منقطع ده حال دَ غیر انبیاؤ ذکر کوی یعنی چاچه گناه اوکړه او بیا ئې توبه اوکړه نو دهٔ باندے خوف نه وی ځکه چه الله تعالیٰ ورته بخښه کوی ۔ بل قول دادے چه دا استثناء متصل مفرغ ده په تقدیر دَ دے عبارت سره۔

وَالْخَوْفُ عَلٰى مَنْ سِوَا هُمْ اِلَّا مَنْ ظَلَمَ، ویره شته په ماسوا دَ رسولانو باندے مگر چه توبه اوباسی نو ویره تری نه لرے شی۔ یا دا چه استثناء متصل ده بغیر دَ تقدیر دَ عبارت نه او ظلم نه مراد خلاف اولیٰ کار دے لکه قتل دَ قبطی دَ لاس دَ موسیٰ علیه السلام نه۔

وَأَدْخِلْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ

او ورننه باسه لاس خپل په گریوان خپل کښې

تَخْرُجْ بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوٓءٍ قف

را او به ځي سپین بې له عیب نه

فِي تِسْعِ آيَاتٍ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ

(او لیږل موئ) په نهه معجزاتو کښې فرعون

وَقَوْمِهِ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا

او قوم د هغه ته ، یقینًا دوی وو قوم

فَاسِقِينَ ﴿١٢﴾ فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ آيَاتُنَا

نافرمان ۔ پس هر کله چه راغلل دوی ته معجزات زمونږ

ف۱۲: په دے آیت کښې دویمه معجزه ذکر کړیده او په یکښې حکمتونه دا دي ۔

۱: اوله معجزه کښې انقلاب د جماد وو حیوان ته هغه جماد چه مجمع د فوائدو وه هغه دا سے حیوان ته بدله شوه چه مجمع د شرورو ده ۔ او دویمه معجزه انقلاب د اعراضو دے په اعضاؤ د بدن د موسیٰ علیه السلام کښې ۔

۲: گریوان د قمیص په سینه باندے پکار دے ۔

۳: سره د انقلاب د حال نه خالي وو د هر نقصان نه ۔

۴: نور آیات یې اجمالي ذکر کړل او تفصیل یې سورة اعراف کښې تیر شوے دے ۔

۵: تخصیص د فرعون او تعمیم د قوم د هغه د پاره د رسالت د موسیٰ علیه السلام ۔

۶: او علت د کثرت معجزات او تخصیص د فرعونیانو یې ذکر کړے دے په صفت د فسق د هغوی سره ۔

مُبْصِرَةً قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۳﴾

پوهه ورکوونکي دوی اُوئیل دا جادو ښکاره دے۔

وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ

او انکار اوکړو دوی د هغې نه او یقین کړے وو په هغې باندے زړونو د دوی

ظُلْمًا وَّعُلُوًّا ؕ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ

د وجے د عناد او د لویئے نه، پس اوګوره چه څنګه شو

عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۱۴﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا

انجام د فساد کوونکو۔ او یقینًا ورکړے وو مونږ

۱۳۔ په دیکښ تکذیب د فرعونیانو ذکر کړے دے اشاره ده حکمت ته۔
ع۱ چه د هر حق خبرے مخالفت او انکار کړے شوے دے۔
ع۲ او په رشتیاؤ باندے دروغ فتوے لګولے کیدے شی۔
۱۴۔ حکمتونه د دے آیت دا دی۔ ع۱ د فرعونیانو انکار عنادی د حق نه۔
ع۲ په زړه کښ یقین په حقانیت د هغې۔
ع۳ دلیل دے چه هر کله په زړه کښ تصدیق وی لیکن په ژبه باندے انکار روی نو دا کفر دے۔
ع۴ کله سبب د کفر عناد او تکبر وی سره د علم نه۔
ع۵ آخری عاقبت د مفسدینو هلاکت او تباهی ده۔
تر دے پورے ښپږ دیرش حکمتونه ذکر شول زما د علم مطابق۔ د دینه علاوه نور هم ډیر حکمتونه په دیکښ شته۔ او په دے ټولو کښ لوے حکمت دا دے چه موسٰی علیه السلام سره د نبوت او د معجزاتو نه په غیب باندے علم نه لرلو۔
فَانْظُرْ، کښ خطاب نبی صلی الله علیه وسلم ته دے او مراد په دیکښ تسلی د هغه او د امت ده په اهلاک د مفسدینو سره۔

دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ عِلْمًا ۚ وَقَالَا

داؤد علیه السلام او سلیمان علیه السلام ته خاص علم او دوی وئیل

الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ فَضَّلَنَا عَلٰی كَثِیْرٍ

ټوله ستائینه (دخدای) الله تعالیٰ لره ده چه غوره والے ئے راکړیدے موږ ته په ډیرو

مِّنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۱۵﴾ وَوَرِثَ

دَ بندګانو دَ هغه نه چه مؤمنان دی ۔ او نائب شو

ف : دَ دے آیت نه دویمه قصه ده دَ سلیمان علیه السلام تر ۴۴ پورے په دیکښ ډیر حکمتونه دیتي او سیاسی موجود دی او دا ټول حکمتونه په قدرت او په علم دَ الله تعالیٰ سره دی ۔ په یکښ هم لوے حکمت اظهار دَ دے خبرے دے چه سلیمان علیه السلام عالم الغیب نه وو او شهادت دَ دوؤ ګواهانو ئے په هغے باندے پیش کړے دے یو سملة (میږے) او دویم هُد هُد۔

عِلْمًا، نکره ده بعضے خاص علمونه ترینه مراد دی چه هغه نبوت دے او دَ مارغانو په خبرو باندے پوهیدل ۔ او تسبیح دَ غرونو او ریدل او تسخیر دَ شیاطینو دے دا په عِلْمًا کښ داخل دی۔

په دے آیت کښ حکمتونه دا دی ۔ ۱ په علم دَ انبیاء علیهم السلام کښ صفتِ فاضله دے ۔

۲ عالم باندے لازم دی چه دَ نعمت دَ علم شکر ادا کوی ۔

۳ او عقیده دِ ساتی اګر چه دے افضل دے دَ ډیر خلقو نه لیکن دَ ده نه هم بعضے خلق افضل شته نو تکبر به نه کوی ۔

۴ او افضل علم هغه دے چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نازل شوے وی ۔

۵ او انبیاء علیهم السلام په علم کښ الله تعالیٰ ته محتاج دی ۔

سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ وَقَالَ يٰٓاَيُّهَا
سلیمان علیه السلام د داؤد علیه السلام نه او وئیل هغهٔ اے
النَّاسُ عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ
خلقو خودلے شوے دی مونږ ته خبرے د مارغانو
وَاُوْتِيْنَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ ۗ اِنَّ
او راکړے شوی دی مونږ ته د هر څه نه ، یقینًا
هٰذَا لَهُوَ الْفَضْلُ الْمُبِيْنُ ﴿١٦﴾
دا خامخا فضل (د الله تعالیٰ) ښکاره دے۔

ف١٦: مراد د وراثت نه قائم کیدل په ځائے د پلار په نبوت او بادشاهئ کښ او دا د طرف د الله تعالیٰ نه دے ځکه نور اولاد ته ئے نه دے ورکړے شوے۔

حکمتونه د دے آیت ع١ علم میراث د پیغمبرانو دے۔

ع٢ په انبیاء علیهم السلام اظهار د معجزاتو واجب دے ځکه اعلان ئے اوکړو یٰاَیُّهَا النَّاس۔

ع٣ معجزات دوه قسمه دی یو روحانی چه علم د منطق الطیر دے او دویم ظاهری چه عجیبه لویه بادشاهی ده۔

ع٤ مارغان هم خبرے کوی او پوهیدل په هغے باندے معجزه ده توبغیر د علم وحی نه څوک دا دعویٰ نشی کولے چه فلانئ مرغئ فلانئ خبرے کوی۔ نو کوم مفسرینو چه تفصیل د خبرو د مارغانو لیکلے دے هغه صحیح نه دے ځکه چه حدیث مرفوع صحیح سره ثابت نه دی۔

ع٥ نطق په انسان پورے خاص نه دے لکه چه منطقیانو دعویٰ کړیده او د نطق نه قوت د ادراک مراد اخستل ډیره بعیده خبره ده

ع٦ معجزات په اختیار د انبیاؤ کښ نه دی ځکه علمنا او اوتینا مجهول صیغے ئے اوئیلے او فاعل ئے معلوم دے چه الله تعالیٰ دے۔

ع٧ بادشاهی د دنیا په طریقه د خرق عادت چه د دین د ترقئ د پاره

وَحُشِرَ لِسُلَيْمٰنَ جُنُوْدُهٗ مِنَ

اوراغونډ کړې شوې سلیمان علیه السلام ته لښکرې دَ هغهٔ دَ

الْجِنِّ وَالْاِنْسِ وَالطَّيْرِ فَهُمْ

پیریانو او انسانانو او مارغانو نه نو دوی

يُوْزَعُوْنَ ﴿۱۷﴾ حَتّٰٓى اِذَآ اَتَوْا عَلٰى

حصّې حصّې کولے شول. تر دے پورې هر کله چه دوی راغلل په

وَادِ النَّمْلِ ۙ قَالَتْ نَمْلَةٌ

میدان دَ میږو باندې اُوئیل میږی

يٰٓاَيُّهَا النَّمْلُ ادْخُلُوْا مَسٰكِنَكُمْ ۚ

اے میږو ورننوځئ کورونو خپلو ته

استعمالیږی دا هم فضل دَ الله تعالیٰ دے.

کُلِّ شَیْءٍ. دَ دے نه مراد هغه څیزونه دی چه بادشاهئ دَ قوت سره مناسب وی او دیته استغراق عرفی وئیلے شی هر څیز مراد نه دے ځکه ډیر څیزونه (لکه مملکت سبا) خو هغهٔ ته نهٔ وُو ورکړے شوے علمنا او اوتینا جمع صیغے ځکه ذکر کړے چه سلیمان علیه السلام سره دَ تابعدارانو نه مراد دے.

ﻼ. دا تصدیق دے دَ ماقبل خبر چه دَ علم دَ منطق الطیر او دَ لوے بادشاهئ نمونه دا ده.

حکمتونه دا دی ۱ بادشاه سره فوجی نظام ضروری دے.

۲ په وخت دَ ضرورت کښې ټول لښکر جمع کول پکار دی.

۳ لښکر دَ هغهٔ دریے قسمه مخلوق وُو دا په طریقه دَ معجزے سره وُو

۴ لښکر ټول یوځائے کښې جمع کول دَ پاره دَ دے چه هیبت پرېوځی په دشمن باندے.

۵ لښکر په مختلفو ټکړو کښې تقسیم کول پکار دی په وخت دَ ضرورت کښې دَ پاره دَ تنظیم او دا ټول امور سیاسیه دی.

لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمٰنُ وَجُنُوْدُهٗ ۙ

| میږه نه کړی تاسو ته (دخپو دلاندې) سلیمان او لښکرے دَ هغهٔ |
|---|

وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۸﴾ فَتَبَسَّمَ

| او دوی په نه پوهیږی . نو مُسکے شو سلیمان |
|---|

يُوْزَعُوْنَ . رابند ولے شول په یو ځائے کښې یا معنیٰ دا ده چه تقسیم کولے شول په انتظام سره .

سک ۱۸ :. مخکښې آیت کښې بیان وُو دَ أُوْتِيْنَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ او په دے آیت کښې بیان دے دَ عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ .

حَتّٰى ، نه مخکښې تقدیر دَ عبارت دے (فَسَارُوْا) روان شول تر دے پورے

وَادِ النَّمْلِ . بقاعی په نظم الدرر کښې وئیلی چه دا وادی په طائف کښې ده او ماليدلے ده او بیضاوی وائی چه په شام کښې ده .

نَمْلَةٌ ، وئیلی شوے دی چه دَ دے میږی دوه وزرے وے ځکه دَ دے خبرے په مَنْطِقَ الطَّيْرِ کښې داخلے دی .

مشهوره دا ده چه دا مؤنثه وه (ځکه اوس بعضے ناپوهه په دے باندے دلیل نیسی په جواز دَ امارت دَ ښځو باندے) او دا قول دَ امام ابوحنیفه نه په زمانه دَ وړوکوالی دَ هغه کښې نقل کړے شوے دے لیکن طیبی او ابوحیان او زمخشری په هغے باندے رد کړے دے او ظاهر احتمال دا دے چه نر وُو . او تانیث لفظی سره دَ اسناد مؤنث نه دلیل دَ تانیث حقیقی نه دے صحیح .

حکمتونه دَ دے آیت دا دی ع۱ میږو او نورو حشراتو کښې الله تعالیٰ فهم او شعور اچولے دے .

ع۲ میږی هم ژوند په خاص تنظیم سره تیروی .

ع۳ هر مشر له پکار دی چه خپل قوم ته دَ خطراتو او مفاسدو نه دَ بچ کیدلو تدبیر او خوی لکه چه دے میږی خودلے وُو .

ع۴ او دَ چا نه یو عمل په ناخبری باندے کیږی نو هغهٔ معذور گنړل پکار دی . لکه چه په لَا يَشْعُرُوْنَ کښې عذر دَ سلیمان علیه السلام او دَ هغهٔ لښکر ته ئے اشاره اوکړه .

ضَاحِكًا مِّنْ قَوْلِهَا وَقَالَ رَبِّ

خندیدونکے د وجې د وینا د هغې نه او اوئیل دۀ اے ربه زما

أَوْزِعْنِيْٓ أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِيْٓ

برخه (توفیق) راکړے ماته چه شکر اوکړم د نعمتونو ستا هغۀ چه

أَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰى وَالِدَيَّ وَ

تا احسان کړیدے په ما باندې او په مور او پلار زما باندے او

أَنْ أَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰىهُ وَ

دا چه عمل اوکړم نیک چه ته یې خوښوے او

أَدْخِلْنِيْ بِرَحْمَتِكَ فِيْ عِبَادِكَ

داخل کړے ما لره په وسیله د رحمت ستا په بندګانو ستا کښ

الصّٰلِحِيْنَ ﴿١٩﴾ وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ

چه نیکان دی - او لټون یې کوۀ د مارغانو

ف پیغمبران او اولیاء کله د خپو د لاندے د میږی د حال نه هم علم نه لري ځکه چه علم د غیبو هغوی لره نشته۔

فائده ۱: ظاهر دا دۀ چه سلیمان علیه السلام دا سفر په هوا کښ نه کوۀ یا خو قریب سفر وۀ یا هوا تر دغه وخت پورے نه وه مسخر کړے شوے نو دا اعتراض نشي کیدلے چه لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمٰنُ یې ولے اوئیل هغۀ خو په هوا کښ منزل کوۀ۔

فائده ۲: د نملة په کلام کښ لس وجوه د فصاحت او بلاغت دی (او دا الفاظ د قرآن کلام الله دی) ۱ ندا ء یا ۲ تنبیه. ایها ۳ تسمیه. النمل ۴ امر. ادخلوا ۵ قصص. مسکنکم ۶ تحذیر. لا یحطمنکم ۷ تخصیص. سلیمٰن ۸ تعمیم - جنوده ۹ اشاره - وهم ۱۰ عذر - لَا يَشْعُرُوْنَ.

سوال: هر کله چه وینا د نملې الله تعالٰی سلیمان علیه السلام ته واوروله

فَقَالَ مَا لِيَ لَآ أَرَى الْهُدْهُدَ ز صلے

نو اُوئیل ئے څه وجه ده ماله چه نه وینم هد هد لره

أَمْ كَانَ مِنَ الْغَآئِبِيْنَ ﴿۲۰﴾

او که دے د پټیدونکو نه دے۔

نو هغه نعمت د الله تعالیٰ ئے اوگنړلو او خوشحالی ئے ښکاره کړله او شکر ئے ادا کړلو۔

حکمتونه د دے آیت دا دی ۱ د خندا دوه قسمونه ئے ذکر کړیدی۔

۱ تبسم ۲ ضحک۔ او قهقهه ئے نه ده ذکر کړے ځکه چه قهقهه د زړه د غفلت د وجے نه وی او انبیاء علیهم السلام د زړه د غفلت نه پاک دی۔

۲ په نعمت باندے خوشحالی کول جائز دی۔

۳ دعا د توفیق د شکر هم شکر دے۔

۴ او نعمت چه والدینو باندے نعمت دے نو په اولاد باندے د هغے هم شکر کول ضروری دی۔

۵ انبیاء علیهم السلام هم مکلف دی په عمل صالح کولو یعنی داسے عمل چه موافق وی د هغوی د وحی سره۔

۶ او انبیاء علیهم السلام هم رحمت د الله تعالیٰ ته محتاج دی۔

۷ او رحمت د الله تعالیٰ بهتره وسیله د دُعا ده۔

فائده :- د تبسم نه روستو ضَاحِكًا ئے ذکر کړیدے ځکه چه ضحک دلته په معنیٰ د خوشحالیٰ سره دے معنیٰ دا "موسکے شو خوشحالی کوونکے" یا مراد دا دے چه اول ئے تبسم اوکړلو نو بیا ئے صورت د ضحک اختیار کړلو۔

۲۰:- هرکله چه منزل مقصود ته دے سفر ته اورسیدو نو د لښکر د خواصو او د عوامو خبرګیری ئے شروع کړله۔

حکمتونه د آیت دا دی ۱ بادشاه او امیر باندے لازم دی چه د خپل فوج متعلقینو حاضری دے معلوموی او د هغوی د حال خبرګیری دِ کوی۔

ع۲۰ سلیمان علیه السلام په غیبو باندے علم نه لرلو ځکه چه د هُد هُد د حال نه خبر نه وو او د هغه د نه لیدلو دوه وجے ئے په ترتیب سره ذکر کړیے۔
اوله وجه مَالِیَ یعنی زما نظر کښ په څه نقصان وی چه هُد هُد راته نه ښکاره کیږی۔
دویمه وجه دے په غائب وی د دے وجے نه زه ئے نه وینم۔ معلومه شوه چه د نه لیدلو وجه غائب والے دے۔ دا صریح دلیل دے چه انبیاء علیهم السلام غائب خیز نشی لیدلے څو پورے چه الله تعالیٰ ورته نه وی خودلے۔
ع۲۱ حکمتونه دا دی ع۱ سزا ورکول مجرم ته په سبب د غیر حاضرئ سره۔
ع۲ سزا ورکول په تفاوت سره د جرم سره یعنی که لږه غیر حاضری ئے اوکړله نو عذاب به ورکړی یعنی جیل ته به ئے واچوی او که ډیره موده غیر حاضری ئے اوکړه نو ذبح به ئے کړی۔
ع۳ او په عذر صحیح سره د سزا معاف کول۔
ع۲۲:- یعنی هُد هُد لږ وخت غیر حاضر وو بیا زر حاضر شو او عذر ئے پیش کړو او د سزا نه بچ شو۔

إِنِّيْ وَجَدْتُّ امْرَاَةً تَمْلِكُهُمْ

يقيناً ما موندلے دہ يو زنانه چه بادشاهي كوى د دوى

وَاُوْتِيَتْ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ وَّ لَهَا

و وركړى شوى دى هر هغه ضرورى څيزونه د بادشاهۍ او هغې لره دے

عَرْشٌ عَظِيْمٌ ﴿۲۳﴾ وَجَدْتُّهَا وَقَوْمَهَا

تخت لوے شان والا (قيمتى) او موندله ما هغه او د هغې قوم

حكمتونه د آيت دا دى علے ضرورته ډير وخت حصاريدل د خپلے ډيوټۍ نه نه دى پكار۔

ع۲ كله ادنیٰ شخص ته د داسے خبرے علم وى چه اعلیٰ شخص سره هغه نه وى۔

ع۳ او دا ابتلا وى د الله تعالیٰ د طرف نه په لوے عالم باندے د دے د پاره چه تكبر او نكړى په خپل علم باندے۔

ع۴ دا دليل دے چه سليمان عليه السلام لره علم غيب نه وو په شهادت د هُد هُد سره۔

تفسير سراج المنير كښ وئيلے دى چه دا رد دے په شيعه كانو باندے چه هغوى وائى چه امام د زمانے نه په علمونو كښ هيڅ علم پټ نه وى او داسے عقيده د دوى د بريلويانو د آخرى نبى صلى الله عليه وسلم په باره كښ او د عام جاهلانو د خپلو پيريانو په باره كښ۔

ف اول اجمالى خبر او بيا د هغې تفصيل كولو سره په خبره كښ وقعت او عظمت پيدا كيږى دلته اوله جمله (احطت بما لم تحط به) ابهام دے او په دويمه جمله (وَجِئْتُكَ مِنْ سَبَاٍ) كښ تفصيل دے۔

سَبَاٍ، ابن كثير ليكلے دى چه د دوى ځائے ته مارب وئيلے كيده او د صنعاء يمن نه درے ميله لرے وو۔

س۲۳:- دا بيان د هغه خبر دے، او هُد هُد امور عجيبه شرعًا يا عادتًا ذكر كوى په طريقه د تعجب سره۔

اول تعجب كوى د ښځے د بادشاهۍ نه او دا عادتًا هم د غيرت نه خلاف

خبره ده او شرعًا هم ناجائز ده۔
دویم تعجب دے د کثرت د اسبابو د بادشاهۍ نه چه په هغه زمانه کښې کوموا اسبابو ته ضرورت وو هغه ټول ورسره وو دا مراد دے د کُلِّ شَیْءٍ نه،
دریم تعجب دے د هغې د تخت نه ځکه دا سے تخت سلیمان علیه السلام سره نه وو ځکه چه انبیاء علیهم السلام اسراف نه کوی۔
عَرْشٌ، د دے حضرت مفسرینو په مختلف طریقو سره لیکلے دے او خاص خبره دا ده چه دا ئے د نمر د عبادت د پاره یو ذریعه جوړ کړیوه په یکښې درے سوه شپیته طاقونه دا سے جوړ کړیوو هره ورځ به نمر په جدا طاق کښې ښکاره کیدلو او دوی به ورته سجده کولے د دے وجه نه ورپسے وَجَدْتُّهَا آه ئے بغیر د حرف عطف مخے ته ذکر کړیدے۔
حکمت دا دے ع چه الله تعالیٰ دا لویه بادشاهی د سلیمان علیه السلام د علم نه بهر ساتلے وه د ډیرو مصلحتونو د پاره او ښکاره دلیل دے چه پیغمبران علم په کُلِّ شَیْءٍ نه لری۔
ع۲ دا رنګ د دنیا بادشاهی الله تعالیٰ کله کله کافرانو له هم ورکوی د پاره د ابتلاء
۲۳۲ :- په یکښې بله زیاته عجیبه خبره ذکر کوی چه هغه شرک د دے ښځے او د قوم د هغې دے په شرک بالکواکب سره۔

اَلَّذِیۡ یُخۡرِجُ الۡخَبۡءَ فِی السَّمٰوٰتِ

هغه ذات دے چه را او باسی پټ څیزونه په آسمانونو کښ

وَالۡاَرۡضِ وَیَعۡلَمُ مَا تُخۡفُوۡنَ وَمَا

او زمکه کښ او پوهه دے په هغه څیزونو باندے چه تاسو یئے پټوئ

تُعۡلِنُوۡنَ ﴿۲۵﴾ اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ رَبُّ

تاسو یئے ښکاره کوئ۔ الله تعالیٰ نشته حقدار د بندګئ بیوا د هغه نه مالک

شرک ډیر قبیح دے د دے وجے نه دا یئے جدا مستقل ذکر کړو۔ او
څلور خبرے یئے په ترتیب سره ذکر کړے دی۔
اول نمر ته سجدے کول بیا دا عمل بد نه ګنړل بلکه خائسته ګنړل په
وسوسے د شیطان سره بیا د دے په سبب سره د توحید د علم او
عمل نه منع کیدل بیا د هغے په سبب سره د هر قسم هدایت نه محروم
پاتے کیدل۔
حکمت دا دے ۱ چه مشرک شرک کوی نو هغه ورته خائسته کار
ښکاری۔
۲ او د هغے د وجے نه د حق د اوریدلو نه محروم وی۔
۲۵: په یکښ رد دے په مشرکانو باندے په ذکر کولو د دلیل د
توحید سره یعنی سجده الله تعالیٰ لره خاص کول پکار دی ځکه چه
هغه عالم الغیب دے او هغه متصرف دے په آسمانونو او زمکو کښ۔

اَلَّذِیۡ یُخۡرِجُ الۡخَبۡءَ، جمله دِ دوا ړو صفتونو د الله تعالیٰ باندے
دلالت کوی۔
۱ پټ څیزونه د آسمانونو نمر، سپوږمئ، ستورے، بارانونه او وریځے
وغیره دی۔
۲ او پټ څیزونه د زمکے۔ بوټی اوبه، خزانے، کانونه او چینے وغیره
دی۔ د دے بعضے څیزونو د ښکاره کولو د پاره یئے بعضے انسانانو ته
طریقے او آلات ورکړیدی۔
حکمت دا دے ۱ چه توحید د الله تعالیٰ د عقل په دلیلونو سره

الۡعَرۡشِ الۡعَظِیۡمِ ۝۲۶ قَالَ سَنَنۡظُرُ

دَ عرش دېر لوئې شان والا - او ویل سلیمان علیه السلام خامخا مونږ به گورو

اَصَدَقۡتَ اَمۡ کُنۡتَ مِنَ الۡکٰذِبِیۡنَ ۝۲۷

آیا رښتیا وائې او که ته یې دَ دروغژنو نه -

ثابت دے -

عا سجده خاص حق دَ الله تعالیٰ دے -

فائده :- اَلَّا یَسۡجُدُوۡا په قراءت دَ شد سره بدل متعلق دے په اَعۡمَالَهُمۡ پورے یا صَدَّهُمۡ پورے - او که متعلق شی په لَا یَهۡتَدُوۡنَ پورے نو لا به زیاتی وی -

۲۶ :- دا تفریع ده په ما قبل دلیل باندے په ذکر دَ توحید دَ الوهیت سره او توحید دَ ربوبیت (رب العرش العظیم) دلیل دے دَ پاره دَ توحید دَ الوهیت -

حکمتونه دا دی عا توحید دوه قسمه دے توحید دَ الوهیت او توحید دَ ربوبیت -

عا او دویم دلیل دے دَ پاره دَ اول -

عا دَ ښځے تخت عظیم وو لیکن تخت دَ الله تعالیٰ عظیم دے او معرفه دلالت کوی په کمالِ عظمت باندے چه هغهٔ په نکره کښ نشته -

عا دَ هُد هُد دَ بیان نه معلومه شوه چه حیوانات حشرات ټولو ته فهم او شعور دَ توحید ورکړے شوید ے ځکه چه هُد هُد حیوان (مرغے) وو -

۲۷ :- دا هم دلیل دے چه سلیمان علیه السلام په غیبو باندے علم نه لرلو ځکه حقیقت معلومولو دَ پاره یو طریقه اختیار وی -

حکمتونه دا دی عا خبر دَ مخلوق (غیر دَ انبیاؤ او ملائیکو نه) احتمال دَ صدق او دَ کذب لری -

عا دَ خبر نه روستو تحقیق ضروری دے -

عا خبر دَ یو تن کله چه معتمد وی قبول دے لیکن دَ زیادت اعتماد دَ پاره کوشش پکار دے -

اَلۡکٰذِبِیۡنَ : کښ مبالغه ده یعنی که چرے دَ نبی په وړاندے دَ یو تن

اِذْهَبْ بِّكِتٰبِیْ هٰذَا فَاَلْقِهْ اِلَیْهِمْ

بوسه خط زما چه دا دے نو اوغورځوه دا هغوی ته

ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ فَانْظُرْ مَاذَا

بیا په ډډه شه د هغوی نه نو ګوره چه دوی څهٔ

یَرْجِعُوْنَ ﴿۲۸﴾ قَالَتْ یٰۤاَیُّهَا الْمَلَؤُا

جواب راګرځوی - اُوئیل (ښځې) اے دربار والو مشرانو

اِنِّیْۤ اُلْقِیَ اِلَیَّ كِتٰبٌ كَرِیْمٌ ﴿۲۹﴾

یقینًا راغورځولے شویدے ماته خط عزت والا -

دروغ ثابت شول نو دے به غټ کاذب وی یعنی د دروغژنو په ډله کښ به شماروی -

۲۸ :- حکمتونه د آیت دا دی ۱ هرکله چه نبی یا داعی د حق، خبرشی د یو مشرک اومفسد قوم نه نو هغوی ته فی الحال دعوت د حق ضروری دے -

۲ دعوت کله په لسان سره وی او کله په قلم سره وی -

۳ بادشاهانو ته بالخصوص دعوت د خطونو په ذریعه پکار دے لکه چه زمونږ پیغمبر هم د صلح حدیبیه نه روستو مختلفو بادشاهانو ته مهر شوی خطونه اولیږل -

۴ او د جواب انتظار ضروری دے د جواب د راتلونه وړاندے هیڅ اقدام کول نه دی پکار -

۲۹ :- حکمتونه دا دی ۱ راکینو شوی ته د مهم خبر اطلاع ورکول -

۲ کرامت د خط په هغے باندے مهر لګول دی لکه چه زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم هم د دے مقصد د پاره مهر په ګوتۍ کښ جوړ کړے وو -

۳ او د محترم خط احترام کول پکار دی -

کَرِیْمٌ، کرامت د دے خط په مهر سره هم وو او د مضمون په

إِنَّهُ مِنْ سُلَيْمٰنَ وَإِنَّهُ بِسْمِ اللّٰهِ
یقینًا دا د سلیمان علیه السلام د طرفنه دی او یقینًا مې دغو خطونه په نوم د الله تعالیٰ شروع کړي
الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ ﴿۳۰﴾ أَلَّا تَعْلُوا عَلَيَّ
چه عام مهربان او خاص رحمتونو والا دے - (تو م) لو ئی او تکبر مه کوئ زما په مقابله کښې
وَأْتُونِي مُسْلِمِينَ ﴿۳۱﴾ قَالَتْ يَا أَيُّهَا
او راشئ ما ته تابعدارې کوونکی (د الله تعالیٰ او د رسول) اُوئیل هغې اے

لحاظ سره هم او په کلمه د بِسْمِ اللّٰهِ سره هم وو -
۳۰، ۳۱ :- دا تفصیل د خط دے په ذکر د مرسل او ذکر د مضمون سره۔ او مضمون مشتمل دے په درے غټو خبرو باندے په طور د اختصار سره اول بِسْمِ اللّٰهِ چه مکمل دعوت د توحید دے مشتمل ده په توحید د الوهیت او توحید د اسماؤ صفاتو او توحید د استعانت - دوئیم دعوت پس د متلو د دینه په أَلَّا تَعْلُوا عَلَيَّ سره دے یعنی د دین نه مخالفت مه کوئ په لوئی او تکبر سره - دریم دعوت د انقیاد پوره اسلامی نظام ته په وَأْتُونِي مُسْلِمِينَ سره -
فائده :- صحیح دا ده چه إِنَّهُ مِنْ سُلَيْمٰنَ د خط په آخر کښې یا په یو طرف باندے لیکلے وو د بِسْمِ اللّٰهِ نه وړاندے نه وو لیکن عادت دا دے چه مُرسل الیه اول د مرسل نوم ته گوری دا سے خطیب شربینی په تفسیر سراج المنیر کښې لیکلے دی -
حکمتونه ، د خط لیکلو آداب دی ۱ د مرسل خپل نوم لیکل -
۲ د خط ابتدا په بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ سره -
۳ او کلمه د تسمیه پوره لیکل صرف بسم الله یا باسمه تعالیٰ یا په ابجد و کښې لیکل مناسب نه دی -
۴ خپل مقصد په اختصار سره جامع مانع لیکل -

الْمَلَؤُا اَفْتُوْنِيْ فِيْٓ اَمْرِيْ ۚ مَا كُنْتُ

مشرانو دَ قوم صلاح راکوئ ما ته په باره دَ کار (تد بیر) زما کښ ته یم زهٔ

قَاطِعَةً اَمْرًا حَتّٰى تَشْهَدُوْنِ ﴿۳۲﴾

فیصله کوونکے دَ یو کار ترڅو پورې چه تاسو حاضر یئ .

قَالُوْا نَحْنُ اُولُوْا قُوَّةٍ وَّ اُولُوْا بَاْسٍ

دوی اُوئیل موږ یو طاقت والا یو او خاوندان دَ جنګ

شَدِيْدٍ ۙ وَّ الْاَمْرُ اِلَيْكِ فَانْظُرِيْ

سخت یو او اختیار تا ته سپارلے شوے دے نو اوګوره

مَاذَا تَاْمُرِيْنَ ﴿۳۳﴾ قَالَتْ اِنَّ الْمُلُوْكَ

چه ته څهٔ حکم کوے . دے اوئیل یقینًا بادشاهان

اِذَا دَخَلُوْا قَرْيَةً اَفْسَدُوْهَا وَ جَعَلُوْٓا

هر کله چه ورننوځي (په جنګ سره) یو کلي ته نو ورانوي هغه کلے او ګرځوي

سلسله ۳۲ :- هر کله چه شورٰی والا هیڅ خبره اونکړه نو دوی ورته اوئیل آفْتُوْنِيْ ، مشوره دَ هغوی ته ئې فتوٰی اوئیل دَ وجے دَ جلدئ کولو نه په فیصله کښ او فتوٰی هغه مضبوط جواب ته وئیلے کیږی چه په یو حادثه کښ ضروری وی . اَمْرِيْ ، مراد دَ دینه جواب ورکول دَ خط دی . مَا كُنْتُ قَاطِعَةً ، په دے جمله کښ دَ هغوی تعظیم دے او ترغیب ورکول دی صحیح جواب ورکولو ته . او دا دلالت کوی چه دا ښځه په امورو سیاسیو کښ پوره هوښیاره وه .

حکمتونه دَ دے آیت ۱ بادشاه لره اهلِ شورٰی ضروری دی .

۲ اهلِ شورٰی له پکار دی چه صحیح مشوره ورکوی .

۳ او هر کله چه دوی اتفاق اوکړی په یو خبره یا ئے نو هغهٔ دے په طریقه دَ فتوے جاری کولے شی .

سلسله ۳۳ :- شورٰی والا بغیر دَ تحقیق نه مشوره ورکړه په جنګ کولو سره .

أَعِزَّةَ أَهْلِهَآ أَذِلَّةً ۚ وَكَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ ﴿٣٤﴾

عزتمن اوسیدونکے دهغے ذلیلان او دغسے دوی کوی.

وَإِنِّي مُرْسِلَةٌ إِلَيْهِم بِهَدِيَّةٍ

او یقینًا زهٔ لیږونکے یم هغوئ ته څه هدیه (ډالئ)

فَنَاظِرَةٌۢ بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُونَ ﴿٣٥﴾

نو کورم چه په څه جواب سره واپس کیږی لیږلے شوی.

په خپل قوت دَ مال او دَ فوج او په هنر دَ جنګ کولو باندے غرور ئے اوکړو. او حالات او قوّت دَ دشمن ئے نه وو معلوم کړے او دا دَ دوی بے وقوفی وه.

حکمتونه دادی ع۱ مشوره پس دَ تحقیق نه ورکول پکار دی.

ع۲ دَ خپل قوت په مقابله کښ دَ بل طرف قوّت ته هم نظر پکار دے.

ع۳ پس دَ مشورے ورکولو نه اختیار دَ امیر دے او هغه پابند دَ شوریٰ نه دے.

۳۴:- دا تردید دے دَ ښځے په مشوره دَ اهلِ شوریٰ باندے او توجه ئے ورکړه هغوی له سوچ کولو ته چه هرکله یو بادشاه ستاسو په ملک باندے حمله کول غواړی معلومیږی چه دَ هغه په ډیر قوّت وی نو دَ دے ملک به څنګه عاقبت وی؟ معلومه شوه چه ښځه دَ دے قوم ته په سیاسی نظر کښ قابله وه. دغه رنګ ابن کثیر دَ حسن بصری رحمه الله نه روایت راوړے دے.

حکمتونه دادی ع۱ امیر لره په مشوره باندے عمل کول ضروری نه وی.

ع۲ او مشوره په نرمه او مدلل طریقه سره رد کول پکار دی.

ع۳ بادشاهان دے په جنګی امورو باندے ډیر سوچ او فکر کوی.

ع۴ دَ جنګ مسلط کولو دوه آثار دی.

اول خرابی او فساد دَ وطن. دویم عزتمن خلق ذلیل کیدل.

۳۵:- دا دَ دغه ښځے سیاسی بصیرت دے. حاصل ئے دا دے چه دا خط رالیږونکے طلب ګار دَ دنیا دے او که دنیا پرست نه دے بلکه پخپله

فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمٰنَ قَالَ اَتُمِدُّوْنَنِ

نو هر کله چه راغله د دالئ سلیمان علیه السلام ته او ئیل هغه آیا امداد کوئ ما سره

بِمَالٍ ز فَمَآ اٰتٰىنِۦَ اللّٰهُ خَيْرٌ

په مال نو هغه چه راکړیدے ما ته الله تعالیٰ غوره دے

مِّمَّآ اٰتٰىكُمْ ج بَلْ اَنْتُمْ بِهَدِيَّتِكُمْ

د هغې نه چه تاسو ته ئې درکړي دي بلکه تاسو په خپله دالئ باندے

تَفْرَحُوْنَ ﴿۳۶﴾ اِرْجِعْ اِلَيْهِمْ فَلَنَاْتِيَنَّهُمْ

لویږی کوونکی یئ۔ واپس لاړشه دوی ته پس خامخا راپه ولو دوی ته

دعویٰ کښ مضبوط دے او د دے معلومول په ذریعه د مال سره کیږی ځکه چه مال لویه فتنه ده که دے سړی هدیه او مال قبول کړو او خپل مقصد ئې پریخودلو نو د ده نه به پد دے مال ورکولو سره په آسانه طریقه باندے خلاص شو او که هدیه ئې قبوله نه کړه نو د داسے شخص سره جنګ کول ګران دی - اوس زمانه کښ هم اکثر جماعتونه په ملک کښ د شریعت د نافذ کولو شور کوی نو دنیوی بادشاهان هغوی له مال یا څه اقتدار ورکړی نو هغوی خپل احتجاج پریږدی نو معلومه شوه چه د دوی مقصد دین نه دے بلکه دُنیا ده -

حکمتونه دا دی ع۱ د اقتدار او غلبے طلب کوونکی امتحان پکار دے -

ع۲ امتحان په مال سره کیږی -

ع۳ په نوم بدلولو سره (رشوت له هدیه نوم ورکولو سره) څیز نه حلالیږی۔

فائده :- هره زمانه کښ رشوت له نوم بدل کړی هدیه او دالئ نوم ورله کیږدی لیکن په نوم بدلولو سره حرام څیز حلال نه کرځی لکه چه دے شیخ هم رشوت له نوم د هدیے کیخودلو -

م۳ :- سلیمان علیه السلام هم پوهه شو چه دا ما ته رشوت په ذریعه د مقصد ته اړوی نو ځکه هغه هدیه ئې رد کړله -

اَتُمِدُّوْنَنِ بِمَالٍ، یعنی تاسو زما دنیوی مال زیاتی کول غواړئ او

بِجُنُوْدٍ لَّا قِبَلَ لَهُمْ بِهَا وَلَنُخْرِجَنَّهُمْ

لښکرے چه نه به وي طاقت دوی لره د مقابلے د هغې او خامخا او باسو به دوی لره

مِّنْهَا اَذِلَّةً وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿۳۷﴾

دوی د هغې (کلو) نه کمزوری او دوی به سپک وی۔

قَالَ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَيُّكُمْ

اُووئیل سلیمان علیه السلام اے مشورے والو کوم یو ستاسو نه

او حال دا چه زما مقصد دین دے۔

فَمَآ اٰتٰىنِۦَ اللّٰهُ، نبوت او بادشاهی په جن او طیورو باندے د نورو بادشاهو نه غوره ده۔

حکمتونه د دے آیت ع۱ انبیاء علیهم السلام فرق کوی په مینځ د هدیه او د رشوت کښې د وجے د فراست نه هدیه (چه واقعی هدیه وی) نو انبیاء علیهم السلام ئے قبلوی۔

ع۲ د دنیا په حصه باندے قناعت پکار دے۔

ع۳ په دنیا باندے فرح او خوشحالی کول د جاهلانو کار دے۔

فَلَمَّا جَآءَ، کښې ضمیر جنس رسول ته راجع دے اګرچه هغه ډیر کسان وو په قرینه د الـمرسلون سره۔

مسئله: دا تخویف دے هغوی ته د جنګ کولو په دے شرط چه هغوی انقیاد قبول نه کړی او هدیه او رسولان د هغې ئے واپس کړل۔ نو آیت کښې تقدیر دے یعنی اَنْ لَّمْ يَاْتُوْا مُسْلِمِيْنَ فَلَنَاْتِيَنَّهُمْ بِجُنُوْدٍ الخ یعنی که دوی انقیاد اونکړی نو بیا به جنګ ورسره اوکړم۔

حکمت دا دے ع۱ د دعوت حق د رد کولو نه روستو اعلان جنګ ضروری دے۔

ع۲ او د قتل نه باقی دشمنان د ملک نه ویستل او ذلیل کول پکار دی

اَذِلَّةً، بے ماله بے عزته۔

صٰغِرُوْنَ، مغلوب به کړے شی۔

يَأْتِيْنِيْ بِعَرْشِهَا قَبْلَ اَنْ يَّأْتُوْنِيْ

ستاسو نه به راوړي ماته تخت د هغې مخکښ د دې نه چه راشي دوي ماته

مُسْلِمِيْنَ ﴿۳۸﴾ قَالَ عِفْرِيْتٌ مِّنَ الْجِنِّ

تابعداري کوونکي. أوئيل يو طاقتور د پيريانو نه

اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ تَقُوْمَ مِنْ

زه به راوړم تاته هغه تخت مخکښ د پاسيدلو ستا د

مَّقَامِكَ ۚ وَاِنِّيْ عَلَيْهِ لَقَوِيٌّ اَمِيْنٌ ﴿۳۹﴾

خپل ځائے نه او بيشکه زۀ په دے باندے قوّت لرم امانتدار يم.

۳۸:- هرکله چه سليمان عليه السلام خبر کړے شو چه هغوي د إنقياد په طور سره راروان شول نو دغه وخت سليمان عليه السلام خپل ارکان شورٰي ته أوئيل د هغې د تخت د راوړلو په باره کښ. او مقصد د دے راوړلو دا دے چه سليمان عليه السلام هغه ښيځ ته او د هغې قوم ته معجزه اوښائي د پاره د اثبات د نبوت خپل او د پاره د اظهار د قدرتِ عظيمه د الله تعالى دليل په توحيد باندے. کوم چه مفسرينو ليکلي دي چه مقصد ئے قبضه کول وۀ فقط نو دا د نبي د شان سره نه خائيږي ځکه هغه هدايه د هغوي واپس کړله نو تخت ته ئے څه حاجت دے. دا اسرائيلي روايات دي خاص د سليمان عليه السلام د بدنامولو د پاره.

حکمتونه دا دي اول چه اسلامي مشاورت د پاره مجلس شورٰي ضروري دے.

ع۲ او شورٰي والا باندے هم بعضے کارونه د حکومت اچولے شي.

ع۳ په نبي باندے اظهار د معجزے ضروري وي او سليمان عليه السّلام چه څه کوي نو د الله تعالى په اذن سره ئے کوي.

۳۹:- معلومه شوه چه د هغۀ اهلِ شورٰي جنات هم وۀ او هغوي تابع وۀ د حکم د سليمان عليه السلام.

حکمتونه دا دي اول جناتو کښ ډير قوت والا شته چه درانه خيزونه پورته کولے شي.

قَالَ الَّذِیۡ عِنۡدَهٗ عِلۡمٌ مِّنَ الۡکِتٰبِ

اوویل هغهٔ چاچه دَ هغهٔ سره پوهه وه دَ کتاب

اَنَا اٰتِیۡکَ بِهٖ قَبۡلَ اَنۡ یَّرۡتَدَّ اِلَیۡکَ

زهٔ به راوړم تاته هغه مخکښې دَ دینه چه واپس شي تا ته

طَرۡفُکَ ؕ فَلَمَّا رَاٰهُ مُسۡتَقِرًّا عِنۡدَهٗ

نظر ستا . نو هرکله چه اولیدو سلیمان تخت لره ولاړ دَ هغه په خوا کښې

قَالَ هٰذَا مِنۡ فَضۡلِ رَبِّیۡ ۟ ۖ قف

اوویل دهٔ دا دَ وجې دَ فضل دَ رب زما نه دے

لِیَبۡلُوَنِیۡۤ ءَاَشۡکُرُ اَمۡ اَکۡفُرُ ؕ وَ مَنۡ شَکَرَ

دَپاره دَ دے چه په ما باندے ازمیښت اوکړي آیا شکر کوم او که ناشکري کوم، او چاچه شکر اوکړو

فَاِنَّمَا یَشۡکُرُ لِنَفۡسِهٖ ۚ وَ مَنۡ کَفَرَ

نو یقینًا دے شکر کوی دَپاره دَ فائدے خپلے او چاچه ناشکري اوکړه

۱ـ جنات لره دا طاقت هم ورکړے شوے دے چه په لږ وخت کښې ډیر مسافت قطع کولے شي چه انسان ئے نشي کولے.

۲ـ دَ هر کارکولو دَپاره دوه صفتونه پکار دي قوت او امانت.

۳ـ دَ خپل قوت اظهار په وخت دَ ضرورت کښې جائز دے.

عِفۡرِیۡتٌ ، په معنیٰ دَ ډیر قوت والا دے سرکش نه دے مراد ځکه چه هغه ځان ته امین وئیلے دے او سلیمان علیه السلام دَ هغه په صفت باندے تردید نه دے کړے.

مَقَامِکَ ، مراد ترینه مجلس دَ قضا دَ سلیمان دے چه هغه تر وخت دَ غرمے پورے وهٔ.

فَإِنَّ رَبِّي غَنِيٌّ كَرِيمٌ ﴿۴۰﴾ قَالَ

| تو یقینًا رب زما بے حاجته عزت والا دے - او ئیل سلیمان علیه السلام |
|---|

سئله :- سلیمان علیه السلام او فرمائیل چه دا تخت زر را رسول ضروری دی ځکه چه په هغے کښ تغیر او تبدیل به کوی او هغوی هم زر را رسیدونکے وو - نو او ئیل عالم د کتاب زه به ئے د رپ د سترګو نه وړاندے را او رسوم -

الَّذِي عِنْدَهُ عِلْمٌ مِنَ الْكِتَابِ . کښ درے اقوال دی -

اول قول ، د آصف بن برخیا وو وزیر د سلیمان علیه السلام وو ولی الله وو - لیکن دا قول ضعیف دے د یو څو وجو نه اول چه کرامت د ولی په اختیار کښ نه وی نو هغه څه رنګ ځان ته نسبت او کړو د راوړلو د تخت - دویم دا چه د نبی په الله کارو نو کښ ولی ته ضرورت نه وی ځکه چه صفت د نبوت د ولایت نه غالب او قوی دے - دریم دا چه الذی عنده علم من الکتاب دا صفت په سلیمان علیه السلام کښ اقوای وو په نسبت د آصف با ندے نو معهود په دے سره غیر قوی شخص څه رنګ کیدے شی -

دویم قول دا دے چه دا جبرائیل علیه السلام وو هغه حاضر وو د سلیمان علیه السلام سره او جبرائیل آمین لره الله تعالی د دیته زیات قوت هم ورکړے دے . او د علم د کتاب نه مراد دا چه د وحی الهی په نازلولو باندے دے مقرر دے . او هغه مستلزم دے علم د هغه لره -

دریم قول د سلیمان علیه السلام وو او خطاب ئے عِفْرِيتٌ ته او کړلو او دا سے خطاب په وخت د محاوره کښ کیدے شی او دا معجزه ده د سلیمان علیه السلام او نسبت د معجزے نبی ته کله کله مجازًا کیدے شی لکه په واقعه د عیسی علیه السلام کښ -

وَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ . آلعمران ۴۹ او دا رنګ سورة یوسف ۳۷ کښ - او ظاهر دلیل د ترجیح د دے قول دا دے چه سلیمان علیه السلام روستو او ئیل هَٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّي لِيَبْلُوَنِي آه دا سے کلمات هغه وخت لوستلے کیدے شی چه د یو انسان نه لوئے کار صادر شی -

نَكِّرُوا لَهَا عَرْشَهَا نَنْظُرْ أَتَهْتَدِي

تا اشنا کړئ دے (بلقیس) لره تخت ددے گورو موږ آیا هدایت مونده لے شی

أَمْ تَكُونُ مِنَ الَّذِينَ لَا يَهْتَدُونَ ﴿۴۱﴾

او که ده د هغه کسانو نه چه هیڅ هدایت نه موقی۔

فَلَمَّا جَاءَتْ قِيلَ أَهَكَذَا عَرْشُكِ ۖ

نو هر کله چه دا راغله اُوئیلے شو آیا داسے دے تخت ستا

قَالَتْ كَأَنَّهُ هُوَ ۚ وَأُوتِينَا الْعِلْمَ

اُوئیل هغے گویا که دا خو هغه دے او راکړے شوے دے موږ ته علم (ستاذ

حکمتونه ددے آیت ۱ علم د کتاب الٰهی لوے قوت دے۔

۲ هر کله چه یو نعمت حاصل شی (اگر چه په ظاهر کښ په قدرت د انسان سره وی) خو د هغے نسبت د الله تعالیٰ فضل ته کول پکار دی او دا شکر د نعمت دے۔

۳ هر نعمت الٰهیه په انسان باندے ابتلاء ده۔

۴ هر نعمت باندے یو د دوؤ نتیجونه تفریع وی یا شکر یا ناشکری۔

۵ او د هرے نتیجے فایده یا نقصان انسان ته حاصلیږی۔

۶ دا عمل ددے د پاره دے چه استعداد د بلقیس معلوم شی چه آیا دا د دے معجزے (د راوړلو د تخت) نه هدایت فائده اخستلے شی یا نشی اخستلے ځکه هر مبلغ او داعی لره د خلقو استعداد معلومول په باره د هدایت کښ پکار دی او دا په آیت کښ یو حکمت دے او ددے آیت په ذیل کښ اسرائیلی روایات لیکلے شوے دی چه سلیمان علیه السلام د هغے عقل ددے د پاره معلومولو چه نکاح ورسره اوکړی دا غیر متناسب دی۔

مِن قَبۡلِهَا وَكُنَّا مُسۡلِمِينَ ﴿٤٢﴾

نبوت) مخکښې د دې نښتې نه او شو موږ تابعدار۔

وَصَدَّهَا مَا كَانَت تَّعۡبُدُ مِن

او منع کړې وه دې لره (د توحید نه) بندګئ د هغه چا چه ئې کوله

دُونِ ٱللَّهِۖ إِنَّهَا كَانَتۡ مِن قَوۡمٍ

سِوا د الله تعالیٰ نه، یقیناً دا وه د قوم

كَٰفِرِينَ ﴿٤٣﴾ قِيلَ لَهَا ٱدۡخُلِي ٱلصَّرۡحَۖ

کافرانو نه۔ اُوئیلې شو دې ته ورننوځه بنګلې ته

۴۲:۔ په دې آیت کښې حکمتونه دادي ۱: د سوال ابتلائي په الفاظو کښې اخفاء د مقصد لره چه او فرمائیل أَهٰكَذَا أَهٰذَا ئې نه دے وئیلې۔ ۲: په جواب کښې هم حکمت او هم ترتیب دے اول کلمه د شک او بیا یقین۔ کَأَنَّ د پاره د شک دے هُوَ د پاره د یقین دے
۳: روستو د دلیل لیدلو نه انقیاد او استسلام ښکاره کول۔
۴: او لیدل د معجزے سبب د پاره د علم د حق دے۔
وَأُوتِينَا آه ظاهره دا ده چه دا قول د بلقیس دے مطلب دا چه کله دے تخت د راوړو نه هم ستا نبوت معلوم شو لیکن د دے نه وړاندے د خط د مضمون نه او بیا د هدیے د واپس کولو نه معلومه شوې وه چه سلیمان علیه السلام نبي دے۔
وَكُنَّا مُسۡلِمِينَ، یعني موږ په اراده د انقیاد او تابعدارئ سره روان شوي یو۔
۴۳:۔ په دے آیت کښې دفع د وهم کوي چه هرکله دا عاقله او هوښیاره ښځه وه نو د څه وجے نه په شرک کښې مبتلا وه۔ جواب دے په ذکر کولو د دوه اسبابو سره۔
اول سبب، د شرک عقیدے او اعمالو په سبب د جهل) د توحید نه غفلت پیدا کړے وو ځکه د انسان طبیعت دا دے چه په یو نظریه

فَلَمَّا رَأَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً وَّكَشَفَتْ

پس هر کله چه ؤ لیده ئې دا (د ماڼۍ غولي) گمان ئې اوکړو په هغې باندې د اوبو او اوچته ئې کړه جامه

عَنْ سَاقَيْهَا ۚ قَالَ إِنَّهُ صَرْحٌ

د پنډو خپلو نه، اوئيل هغه يقيناً دا بنګله

مُّمَرَّدٌ مِّنْ قَوَارِيرَ ۗ قَالَتْ

جوړه کړې شوې ده د شيشو نه، اوئيل هغې

رَبِّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي وَأَسْلَمْتُ

اے ربه زما يقيناً ما ظلم کړى دے په ځان خپل باندې او اخلاص کوم د بندګۍ

مَعَ سُلَيْمَانَ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿۴۴﴾

په تابعدارۍ د سليمان کښې الله تعالى لره چه رب العالمين دے۔

ع ۳ ۱۸

او مسلک کښې مشغول وي نو د هغې نه علاوه تحقيق نه کوي دا ئې ذکر کړو په صَدَّهَا مَا كَانَتْ تَعْبُدُ سره۔

دويم سبب، قوم د دے بتول کافر او مشرک وو يعني په ماحول د ديکښې توحيد او د حق هيڅ آواز نه وو دا ذکر دے په إِنَّهَا كَانَتْ مِنْ قَوْمٍ كَافِرِينَ سره۔

د دينه څو حکمتونه معلوم شول ۱ تعصب د مذهب او مسلک انسان لره د نورو مذهبونو نه غافل کوي۔

۲ ماحول لره د انسان په عقيده او عمل باندې اثر وي د دے وجې نه د غلط مجلس او ناکاره ملګرو نه ځان ساتل ضروري دي۔

مسئله:۔ دا حکم د سليمان عليه السلام دے نتيجه نه د دوؤ وجو نه۔

اوله وجه، چه دا زنانه ده او په زنانه باندې لازم دي چه کور کښې د ننه اوسي بهر په مجلس د ناريته کښې په نه کيني او دا ئې حکمت دے ۳ هر کفر او شرک ظلم دے په ځان خپل باندې۔

دويمه وجه، دا ده چه سليمان عليه السلام ديته خودله چه زما ستا هډيے ته هيڅ حاجت نشته بلکه ما لره الله تعالى هغه نعمتونه راکړي دي چه

# وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ

| او يقينًا | ليږلے دے موږ | ثموديانو ته | ورور د هغوی |
|---|---|---|---|

تاله ئے نه دی درکړی هر کله چه هغې حکم اومنلو داخله شوه نو هغه محل د شیشو نه یا د چمک کوونکے کتو نه جوړ کړے شویوؤ او دے نیچے دا چړے نه وؤ لیدلے نو گمان ئے اوکړو چه دا د اوبو انګنړ (غولے) دے نو د دے وجے نه ئے جامه د پنړو نه اوچته کړه نو سلیمان علیه السلام د نظر کولو نه زرسترګے بل طرف ته واړولے او هغه ئے په حقیقت پوهه کړله.

فائده ۱:- دا قول چه پیریانو سلیمان علیه السلام ته وئیلی وؤ چه د دے زنانه په پنړو باندے ویښته دی د دے سره نکاح مکوه نو هغه دا محل د دے د پاره جوړ کړو چه د هغې پنړو ته نظر اوکړی دا صحیح نه ده ځکه چه انبیاء علیهم السلام د پردو زنانه پنړو ته نظر نه کوی او دا رنګ دا اسرائیلی روایات دی یهودیانو د سلیمان علیه السلام د بدنامولو د پاره دا قصے جوړے کړے دی.

هر کله چه د بلقیس په معجزه او صدق د سلیمان علیه السلام باندے یقین راغے نو د شرک نه ئے توبه اوکړه او د سلیمان علیه السلام تابع شوه.

فائده ۲:- د بلقیس سره د سلیمان علیه السلام نکاح کول په صحیح دلیل سره ثابت نه دی او دا رنګ بادشاهئ ته واپس لیږل او پس د اسلام نه د هغې بادشاهی کول په هیڅ صحیح دلیل سره ثابت نه دی بلکه د قرآن د دے لفظ (چه ادخلی الصرح) نه روستو د هغې د خروج د پاره صریح نص نشته.

حکمتونه دا دی ۱: عالیشان مکانات جوړول د ضرورت مطابق جائز دی.

۲: کله د انسان نظر خطا کیږی اګرچه هوښیار دی.

۳: روستو د دلائلو د حق نه باطل پریښودل ضروری دی.

۴: د توحید کمال بغیر د تابعداری د رسول نه نشی کیدے.

صَالِحًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ فَاِذَا هُمْ

صالح علیه السلام چه بندګی کوئ خاص د الله تعالٰی نو ډغه وخت دوی

فَرِيْقٰنِ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿۴۵﴾ قَالَ يٰقَوْمِ

دوه ډلے شوے جګړه ئے کوله - اُوئیل صالح علیه السلام اے قومه زما

لِمَ تَسْتَعْجِلُوْنَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ

ولے په تادئ غوارئ عذاب مخکښ

الْحَسَنَةِ لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ

د ایمان راوړلو نه ولے نه غوارئ بخښنه د الله تعالٰی نه

لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۴۶﴾ قَالُوا اطَّيَّرْنَا

د دے د پاره چه په تاسو باندے رحم اوکړے شی - دوی اُوئیل سپیره حالت راغے په موږ باندے

ف۴۵ :- دا دریمه قصّه ده دا هم په ډیرو حکمتونو باندے مشتمل ده اولومړے حکمت پکښ دادے چه انبیاء او اولیاء په سلامتیا کښ الله تعالٰی ته محتاج دی نو دوی بیل چا لره نجات او سلامتیا نشی ورکولے - او دا رد د شرک فی التصرف دے -

حکمتونه د دے آیت دادی ع۱ هر نبی په توحید باندے رالیږلے شوے دے -

ع۲ د حق مسئلے په بیان سره ضرور اختلاف پیدا کیږی -

ع۳ نسبت د دے تفرق او اختلاف ، داعی د حق ته نشی کیدلے -

يَخْتَصِمُوْنَ ، د دوی اختصام په سورة اعراف ۷۵ ، ۷۶ کښ ذکر شوے دے -

ف۴۶ :- یعنی دوی طلب د عذاب کوؤ لکه اعراف ۷۷ کښ دا رنګ دوی شرک کوؤ چه هغه سبب د عذاب دے او د توحید باره کښ ئے هیڅ سوچ نه کوؤ د دے وجے نه هغهٔ ورته د زجر په طور سره اوئیل - لِمَ تَسْتَعْجِلُوْنَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ -

بیا ترغیب د استغفار ئے ورکړو چه هغه سبب د رحمت دے -

بِكَ وَبِمَنْ مَّعَكَ قَالَ طٰٓئِرُكُمْ

ستا په وجه او په وجه د هغه چا چه ستا ملګري دي، اوئيل هغه سپيرۀ حال ستاسو د

عِنْدَ اللّٰهِ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ

الله تعالیٰ د طرف نه دے بلکه تاسو قوم يئ

تُفْتَنُوْنَ ﴿٤٧﴾ وَكَانَ فِى الْمَدِيْنَةِ

چه امتحان در باندے کيدے شي. او وو په هغه ښار کښ

تِسْعَةُ رَهْطٍ يُّفْسِدُوْنَ فِى الْاَرْضِ وَلَا

نهه کسان ورانے ئے کوؤ په ملک کښ او نه وو

يُصْلِحُوْنَ ﴿٤٨﴾ قَالُوْا تَقَاسَمُوْا بِاللّٰهِ

اصلاح کوؤنکي. دوی اوئيل قسمونه اوکړئ په الله تعالیٰ باندے

حکمتونه دا دي ع۱ د عذاب د اسبابو نه ځان بچ کول ضروري دي.
ع۲ د رحمت سبب توبه او استغفار دے.
۴۷:- هر کله چه په دوی د کفر او د شرک د وجے نه مختلف عذابونه راغلل قحط، خشک سالي، مرضونه وغيره نو دوی د دے نسبت صالح عليه السلام ته کوؤ چه دا بد حالي ستا د نحوست د وجے نه ده يعني پدے وجه چه نه د اولياؤ او بزرګانو تصرفات نه منے هغۀ ورله جواب ورکړو حاصل د جواب دا دے چه دا بد حالي ستاسو د بد اعمالو د وجے د الله تعالیٰ د طرف نه ده بلکه دا د الله تعالیٰ د طرف نه په تاسو باندے عذاب دے.
حکمتونه دا دي ع۱ د طيره عقيده د جاهلانو او مشرکانو عقيده ده تفصيل د طيره ابن کثير ليکلے دے.
ع۲ بد حالات د وجے د بد اعمالو نه دي.
ع۳ د بعض عملونو سزا په دنيا کښ ورکيدے شي.
۴۸:- رَهْطٍ، نوم د جمع دے ځکه چه په دوی کښ د يو يو شخص ډير تابعدار وو د دے وجے نه ئے رَهْطٍ ورته اوئيل.

لَنُبَيِّتَنَّهُ وَاَهْلَهُ ثُمَّ لَنَقُوْلَنَّ

خامخا د شپې به حمله اوکړو په ده باندې او په کور والا د ده باندې بیا به خامخا اُووایو مونږ

لِوَلِيِّهٖ مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ اَهْلِهٖ

وارث د ده ته چه مونږ نه یو حاضر شوی قتل کولو د کورنۍ د ده ته

وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿۴۹﴾ وَمَكَرُوْا مَكْرًا

او یقینًا مونږ رشتیا وایو. او چلونه جوړ کړل دوی چلونه

يُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ، فساد د دوی په ډیرو قسمونو سره وو.
۱: شرک ته دعوت ورکول ۲: د صالح علیه السلام د تابعدارۍ نه منع کول ۳: د خلقو په عیبونو پسې تفتیش کول ۴: روپۍ اشرفۍ په سود باندې ورکول او نور گناهونه کول.
وَلَا يُصْلِحُوْنَ، په دیکښې رد دے د هغوی په زعم باندې چه هغوی خپل فساد ته اصلاح وئیله.
حکمتونه دا دی ۱: د حق پرستو مقابله کښې همیشه مفسدان وی.
۲: د مفسدانو تابعدار ډیر وی او د حق پرستو کم وی.
سوال:- دا د دوی د فساد کولو تمونه ده یعنې د صالح علیه السلام د قتل د پاره تدبیرونه جوړول او په قسمونو کښې حیلے او دهوکے کول.
تَقَاسَمُوْا بِاللّٰهِ، دا صیغه د فعل ماضی ده د باب تفاعل نه او دا حال دے معنیٰ دا چه " دوی اُووئیل په داسے حال کښې چه قسمونه ئے اوکړل په کورنۍ کښې". یا دا صیغه د امر ده د باب تفاعل نه معنیٰ دا ده " دوی اُووئیل یو بل ته قسمونه اوکړئ په الله تعالیٰ باندې" حاصل دا چه دوی عزم اوکړو چه د صالح علیه السلام او د هغهٔ په اهل باندې د شپے حمله اوکړو او قتل به ئے کړو بیا چه د ده متولی (وارث) په مونږ باندې دعوی د قتل اوکړی نو د ده سره به گواهان نه وی نو مونږ له به قسم راکوی نو مونږ به قسم اوکړو چه قسم دے مونږ د صالح علیه السلام د اهل قتل کولو د پاره حاضر شوی نه وو یعنی مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ اَهْلِهٖ سره به مهلکه ته وایو او په دے قسم کښې مونږ

وَمَكَرْنَا مَكْرًا وَّهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٥٠﴾

او تدبير اوكړو موږ تدبير او دوى نه پوهيدل ـ ـ

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكْرِهِمْ لا

نو اوګوره چه څنګه شو انجام د چل ول د دوى

أَنَّا دَمَّرْنٰهُمْ وَقَوْمَهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٥١﴾

يقينًا هلاك كړل موږ دوى او قوم د دوى ټولو لره ـ

د دے وجے نه رشتتى يو چه موږ خو په قصه د قتل د صالح عليه السلام كښ په راغلے يو نه په قصه د قتل د اهل د ده ـ او دا حيله ده په قسم خوړلو كښ لكه په دے زمانه كښ حيله ګر ملايان خلقو ته د قسم كولو داسے طريقه اوښائى چه مدعى په هغے باندے دهوكه شى او حال دا چه قسم كوونكے دروغژن وى ـ

حكمتونه دا دى ع١ مشركانو هم قسم په الله تعالىٰ باندے كوؤ ـ

ع٢ د حق پرستو د قتل كولو اراده مفسدان خلق هميشه كوى ـ

ع٣ په قسمونو كښ حيلے دهوكے د مفسدانو عمل دے ـ

من٥٠:ـ د دغه حيله جوړولو نه روستو دوى د صالح عليه السلام په كور باندے د شپے حمله اوكړله ليكن الله تعالىٰ د صالح عليه السلام حفاظت د ملائيكو په ذريعه سره اوكړو داسے ابن كثير ليكلے دى ـ او الله تعالىٰ داسے د خپلو پيغمبرانو حفاظت د ملائيكو په ذريعه سره په ډير اوقاتو كښ كړيدے ـ

وَمَكَرْنَا مَكْرًا ، يعنى د هغه د بچ كولو او د منكرينو د عذاب وركولو دپاره موږ تدبير اوكړو ـ

حكمت دا دے چه الله تعالىٰ د خپلو نيكانو بندګانو د مفسدانو په مقابله كښ امداد كوى ـ

سله :ـ دا بيان د مَكَرْنَا دے يعنى د الله تعالىٰ د طرف نه تدبير دا دے د دَمَّرْنٰهُمْ وَقَوْمَهُمْ د جدا جدا ذكر نه معلوميږى چه د دغه نهه كسانو عذاب جدا وو او د باقى قوم عذاب جدا وو ـ

فَتِلْكَ بُيُوتُهُمْ خَاوِيَةً بِمَا ظَلَمُوا

پس دغه دی کورونه ددوی نا پریوتلی دی په سبب دظلم ددوی

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٥٢﴾

یقینًا په دیکښې خامخا عبرت دے دپاره دهغه قوم چه پوهیږی۔

وَأَنجَيْنَا الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا

او بچ کړل مونږ هغه چا لره چه ایمان ئې راوړے وو او دوی

يَتَّقُونَ ﴿٥٣﴾ وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ

تقوی کوله - او (یاد کړئ) لوط علیه السلام لره کله چه اُوئیل هغهٔ قوم خپل ته

حکمت دا دے چه څوک دتیل خلاف مکرونه کوی نو وبال دهغې په په مکر کوونکی باندے راځی۔

متل دا دے چه څوک راچاه درپیش (فارسی) مَنْ حَفَرَ بِئْرًا لِأَخِيهِ فَقَدْ وَقَعَ فِيهِ (عربی)

فائده :- دا آیت ئې مصدر کړو په فَانْظُرْ سره اشاره ده دواقعے لوے مقصد عذاب د منکرینو او نجات مؤمنانو ته۔

۵۲ :- خَاوِيَةً، دا حال دے یعنی خالی د اوسیدونکو نه یا غورځیدلی شوی۔

فَتِلْكَ، پدے سره په حقیقت کښې اشاره کیږی هغه څیز ته چه محسوس او موجود وی نو کنډرات د مدائن صالح موجود دی۔

او لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ئې ځکه اوفرمائیل چه د دے قوم خالی کنډرات په مداینِ صالح کښې قریب لارے د تبوک ته اوس هم موجود دی۔

حکمت دا دے ډیر قومونه هلاک شی او کنډرات ئې پاتے شی دپاره د دے چه روستو خلق تری نه عبرت حاصل کړی۔

۵۳ :- دا دلیل دے چه سبب د نجات ایمان او تقوی ده او دا د دے قصے لوے حکمت دے چه صالحین په نجات کښې الله تعالیٰ ته محتاج دی۔

أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ وَأَنْتُمْ تُبْصِرُونَ ﴿۵۴﴾

آیا کوئ تاسو بدکارئ او تاسو پوهیږئ.

أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ

آیا تاسو راتلل کوئ نارینو ته په شهوت سره

دُونِ النِّسَاءِ ۚ بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ

وړاندې د زنانو نه، بلکه تاسو قوم

تَجْهَلُونَ ﴿۵۵﴾ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ

د جهل کار کوونکی یئ. نو نه وو جواب د قوم د هغه

إِلَّا أَنْ قَالُوا أَخْرِجُوا آلَ لُوطٍ

مگر دا چه اُوئیل هغوئ اوباسئ کورنئ د لوط لره

مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۖ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ﴿۵۶﴾

د کلی خپل نه یقیناً دوی خلق دی چه د پاکئ دعوے کوی.

فَأَنْجَيْنَاهُ وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ

پس بچ کړو مونږ ده لره او کورنئ د ده لره مگر ښځه د ده

سبق نه تر ۵۸ پورے دا شلورمه قصّه ده په دیکښ هم ډیر حکمتونه دی. لومړے حکمت پکښ دا دے چه انبیاء او صالحین په نجات او سلامتیا کښ الله تعالیٰ ته محتاج دی.

حکمتونه دا دی ع۱ استعمال د رجالو او هلکانو په شهوت سره دا هم فاحشه ده.

ع۲ او دا د جاهلانو عمل دے.

ع۳ حق پرستو لره د وطن نه ویستل.

ع۴ او په هغوی پورے مسخرے کول دا هم د جاهلانو کارونه دی.

ع۵ دا سے فواحش سبب د عذاب د دُنیا دی.

قَدَّرْنٰهَا مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۵۷﴾ وَاَمْطَرْنَا

مقرر کړی بوه مونږ هغهٔ دَ پاتے کیں ونکو نه . او ورا اوروؤ مونږ

عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿۵۸﴾

پہ دوی باندے باران ناآشنا نو ناکاره وؤ باران دَ ویرولے شوؤ .

قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلٰمٌ عَلٰى

او وایه صفتونه دَ خدای خاص الله تعالیٰ لره دی او سلامتیا ده (دَ عذابونو آفتونو نه دَ الله تعالیٰ دَ طرفه) په

عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى ۗ آٰللّٰهُ

بندګانو دَ هغهٔ باندے هغه چه غوره کړی دی . آیا الله تعالیٰ

خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۵۹﴾

غوره دے (دَ پاره دَ الوهیت) او که هغه څوک چه دوی یے دَ الله تعالیٰ سره شریکوی .

حلا باطل پرست کمال ته عیب وائی .

وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ . یعنی تاسو پوهیږئ چه دا فحش دے او ګناه ده یا دا چه تاسو دا عمل دَ یو بل په مخکښ کوئ یو بل نه پرده هم نه کوئ .

اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ ، دا په طریقه دَ مسخرے دے یعنی چه تاسو ځانونه پاک ګنړئ او مونږ پلیت نو پاک خو دَ پلیت نه لرے کیدل پکار دی نور تفصیل دَ دے په سورة اعراف کښ ذکر کړے شوے دے .

سوف خلاصه :- دَ دے آیت نه تر آخره دَ سورت پورے دریم باب دے پدیکښ دوارہ دعوے دَ توحید ذکر کوی او په مینځ دَ هغوی کښ تفصیل دَ توحید دَ الوهیت دے په عقلی دلیلونو اعترافیو سره بیا زجرونه دی په کثرت سره بیا تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او دا امور دَ دعوت دی . بیا تخویف اخروی دے په تفصیل سره او آخر کښ وحی دلیلونه په رد دَ شرک فی العبادة او دعوت الی القرآن بیا تخویف دنیوی دے .

أَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ

آیا هغه څوک چه پیدا کړی دی آسمانونه او زمکه

وَأَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً ج

او راوړلے دی تاسو لره د آسمان د طرفنه اوبه

فَأَنْۢبَتْنَا بِهٖ حَدَآئِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ ج

نو زرغون کړیدی مونږ په هغے سره باغونه د تازګئ نه

مَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُنْۢبِتُوْا شَجَرَهَا ط

نشي کیدے تاسو لره دا چه راز رغون کړئ بوټي د هغے،

ءَ إِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ط بَلْ هُمْ قَوْمٌ

آیا شته دے کارونو والا د الله تعالیٰ سره بلکه دوی قوم دی

تفسیر:- په دے آیت کښ اوله دعوی ده یعنی انبیاء علیهم السلام په سلامتیا کښ الله تعالیٰ ته محتاج دی دوی د الله تعالیٰ سره شریک نشي کیدے او دا تفریع ده په قصّه د صالح او لوط علیهم السلام باندے - او تفسیر ابن کثیر کښ ذکر دی چه دا طریقه د خطبے وئیلو ده چه اول حمد د الله تعالیٰ دے بیا سلام دے په انبیاء علیهم السلام باندے بیا تفصیل د توحید د الله تعالیٰ دے په دلیلونو عقلیو سره - او دا په دے سورت کښ دویم خطاب د نبی صلی الله علیه وسلم دے.

اصْطَفٰی، د صفا نه اخستلے شویدے ځکه چه انبیاء علیهم السلام د خیرو د بشریت (یعنی د ګناهونو نه) پاک اوصاف وی.

خَیْرٌ، دلته په معنیٰ د تفضیل نه دے ځکه چه مقابل کښ هیڅ خیر نشته یا صیغه د تفضیل په عقیده د مشرکانو سره ذکر کړیده چه هغوی په خپلو الهو کښ خیر ګڼړلو - او تقدیر د عبارت دا دے

أَعِبَادَةُ اللّٰهِ خَیْرٌ أَمْ عِبَادَةُ مَا یُشْرِکُوْنَ (آیا بندګی کول د الله تعالیٰ

يَعْدِلُوْنَ ۝٦٠ اَمَّنْ جَعَلَ الْاَرْضَ

| چه د حق نه اوړي. آيا هغه څوک چه ګرځولے ده زمکه |
|---|

غوره ده او که بندګي کول د شرکاؤ د دوی) او دا استفهام تقريري دے ځکه چه روايت کړے شوے دے چه نبي صلى الله عليه وسلم به د دے آيت نه روستو وئيل (بَلِ اللّٰهُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى وَاَجَلُّ وَاَكْرَمُ).

نظم :- د دے آيت نه دليلونه عقليه شروع شول په توحيد د الوهيت باندے او دا اعتراف سکوتي دی ځکه چه تپوس ئے (استفهام) ذکر کړے دے او جواب د خصم ئے نه دے ذکر کړے.

اَمَّنْ دا په اصل کښ اَمْ مَنْ دے او اَمْ په معنیٰ د بَلْ دے. يعني اول چه سوال ذکر کړو په اَللّٰه سره نو دا تفصيل دے په ذکر د صفاتو د الوهيت سره او پدے آيت کښ دے صفات ذکر کړے شوي او آيت کښ تقدير دے د مخکښ پشان يعني اَعِبَادَةُ مَنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ اٰلخ خَيْرٌ اَمْ عِبَادَةُ مَا يُشْرِكُوْنَ.

دويمه توجيه دا ده چه دا مستقل تپوس دے معنیٰ ئے دا ده (بلکه) آيا څوک دے چه پيدا کړي دي آسمانونه او زمکه (الی آخره) او جواب حذف دے (ليقولن الله).

ءَ اِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ، دا مستقل تپوس دے يعني هر کله چه دوی او منله چه الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه پيدا کړي دي نو آيا بل څوک (اله) شته چه پشان د الله تعالیٰ دا کارونه او کړي شي د دے نه روستو هم جواب حذف دے يعني لا (نشته). او بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَّعْدِلُوْنَ زجر دے په معنیٰ د عدول دے يعني د حق نه بے دليله اوړي يا عدل په معنیٰ د مساوات دے يعني دوی د الله تعالیٰ سره نور خلق برابر ګنړي او دا رنګ تشريح پدے روستو آياتونو کښ تر ګللا پورے ده. او پدے آياتونو کښ د اِلٰه معنیٰ ته اشاره ده چه اِلٰه هغه ذات دے چه دا کارونه (چه پدے پنځه آياتونو کښ ذکر شوي دي) کولے شي او هغه ته متصرف او کارساز وئيلے کيږي. نو معلومه شوه چه په دے آياتونو کښ اِلٰهٌ په معنیٰ د تصرف او واک دار سره دے او دا دلے عام معنیٰ ده.

قَرَارًا وَّجَعَلَ خِلٰلَهَآ اَنْهٰرًا

ټينګه (ټيکاؤ والا) او پيدا کړي دي په مينځ د هغې کښې نهرونه

وَّجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ وَجَعَلَ بَيْنَ

او پيدا کړيدي دَ هغې (دَ ټينګولو) دَپاره کلک غرونه او پيدا کړيه په مينځ

الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا ۗ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ۗ

دَ دواړو دريابونو کښې پرده ، آيا شته دَ دے کارونو والا دَ الله تعالىٰ سره

بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۶۱﴾ اَمَّنْ

بلکه ډير دَ دوی نه پوهيږي ۔ آيا هغه څوک دے

يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ

چه قبلوي دُعا دَ ډير ناچاره هرکله چه دَ هغه نه غواړي او لرے کوي

السُّوْٓءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ الْاَرْضِ ۗ

مصيبتونه او ګرځوي تاسو دَ يو بل خليفګان په زمکه کښې ۔

مَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُنْۢبِتُوْا شَجَرَهَا ، دا خطاب عام دے ټول مخلوق ته اولياء پکښ داخل دي چه هيڅوک طاقت نه لري چه دَ زمکے نه اونے بوټي زرغون کړي۔

سلک :- په دے آيت کښ ئے شلور صفات دَ الوهيت ذکر کړي دي چه دَ الله تعالىٰ نه سوا بل چا کښ نشي کيدے هغه آيت کښ کارونه علويه ذکر وو او په دے کښ دَ لاندے عالم کارونه ذکر دي۔

لَهَا رَوَاسِيَ لفظ دَ لَهَا دليل دے چه دا غرونه دَ زمکے دَ ټينګولو دَپاره دي۔

حَاجِزًا ، منع کوونکے دے دَ ګډون دَ دواړو دريابونو نه او دے ته ئے برزخ هم ويلے دے په سورة رحمٰن ۲۰ او فرقان ۵۳ کښ۔

ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۶۲﴾

آیا شته دَ دے کاردنو والا ارَ الله تعالیٰ سره، ډیر لږ نصیحت قبلوئ تاسو۔

اَمَّنْ يَّهْدِيْكُمْ فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ

آیا هغه څوک چه لار ښائی تاسو ته په تیارو دَ اوچه

وَالْبَحْرِ وَمَنْ يُّرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًاۢ

او دَ سمندر کښې او څوک چه رالیږی هواګانے زیری ورکوونکی

بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ؕ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ

مخکښې دَ رحمت دَ هغه نه، آیا دَ دے کارونو والا ارشته دَ الله تعالیٰ سره،

تَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۶۳﴾

لوے دے الله تعالیٰ دَ هغې نه چه دوی ورسره شریک جوړ وی۔

۶۲:۔ په دے آیت کښې ئے درے صفتونه دَ الوهیت ذکر کړی دی او پدیکښې ئے درے احوال دَ انسان هم ذکر کړی دی. ۱ حاجت غوښتل په وخت دَ مجبورئ کښې ۲ تکلیف لرے کول ۳ غالب کیدل یا اولاد ورکول۔

اَلْمُضْطَرَّ، ډیر عاجزی کوونکے او مجبوره۔ دَ دے اضطرار په وجه باندے ډیره تضرع کول دی په دُعا کښې نو الله تعالیٰ دَ هغه دُعا قبوله کړی که مؤمن وی او که کافر وی۔

وَيَكْشِفُ السُّوْٓءَ، دا دلیل دے چه مشکل کُشا صرف یو الله تعالیٰ دے او دا سے په سورة انعام ۴۱ او سورة یونس ۱۲ کښې ذکر شوی دی۔

خُلَفَآءَ الْاَرْضِ، معنیٰ دا چه تاسو له غلبه درکړی په کافرانو باندے او په عکس دَ دے سره او دَ هغوی دَ زمکو تاسو مالکان اوګرځوی یا معنیٰ دا چه تاسو له اولاد درکوی او دَ یو بل په ځائے باندے مو آباد کړی۔

۶۳:۔ پدیکښې ئے دوه صفتونه ذکر کړی دی۔

ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ، هغه صحراګانے او بیا بانونه چه تخے (میلونه)

پکښ نه وی - او هغه چپے د دریاب چه طرفونه پکښ نه معلومیږی هغے ته یے ظُلُمَاتِ اُوئیل او په دے پکښ د انسان د سفر حالت ذکر کوی او حال د هواګانو ئے رچه د انسان ژوند په هغے پاندے بناء دے) ذکر کړیدے.

ملا :- په دے پکښ ئے درے صفتونه د الوهیت ذکر کړیدی ۱ د انسان خلق اول - ۲ او دویم خلق ۳ او رزق ورکول -

قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ، دا واضح دلیل دے چه صدق د خبرے په صحیح دلیل باندے بناء دے او دا دریم خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم - په دے آیاتونو کښ پنځلس صفاتِ عقلیه د اِلٰه ذکر شول او په ټولوکښ جواب په نفی (لَا) سره مراد دے نو حاصل دا شو چه نشته د دے کارونو قدرت لرونکے او کوونکے سوا د الله تعالیٰ نه او دا معنیٰ ده د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ -

فائده :- د دے آیاتونو په فواصلو کښ ئے په ترتیب سره حالات د مشرکانو ذکر کړل - اول او ړیدل بغیر د دلیل نه ، دویم بے علمی او جهل ، دریم نصیحت نه قبلول د وجے د غفلت او عناد نه ، څلورم شرک کول ، پنځم طلب د دلیل د مشرک او عاجز کیدل د دوی د دلیل نه - او د دے ترتیب او تقسیم لوحکمت دا دے چه د اول دلیل جواب د ټولو اهل عقلو په تیز باندے واضح دے چه لا دے

مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ
هغه څوک چه په آسمانونو او زمکه کښ دی په غیب باندے

اِلَّا اللّٰهُ ۚ وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ﴿٦٥﴾
سوا د الله تعالیٰ نه، او دوی نه پوهیږی چه کله به دوی دوباره ژوندی کولے شی ۔

او سره د دینه دوی نه منی نو د زجر مستحق دی او دویم دلیل کښ دا سے امور ذکر دی چه دوی د هغے د علم دعوے کولے لیکن هر کله چه په علم باندے یئے عمل نه کوؤ نو اُوئیلے شو چه دوی بے علمه دی او دریم دلیل کښ اشاره ده چه هر کله د انسان نه دا مصیبتونه لرے شی او حاجت ئے پوره شی نو حق ترے هیر شی د دے وجے نه هلته سلا کښ۔
قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ یئے او فرمائیل۔ او څلورم دلیل کښ اشاره ده چه په ظلماتو د بحر و بر کښ او په سیلئ طوفانونو کښ به دوی الله تعالیٰ ته آواز کوؤ او هر کله چه په تکلیف لرے کړے شو نو دوی به شرک کوؤ نو د دے وجے نه په سلا کښ ئے تَعَالَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ سره اختتام اوکړو۔ او پنځم دلیل سره چه پوره حجت قائم کړے شو نو په آخر کښ د مشرکانو نه دلیل طلب کړے شو۔
سلا :۔ پدے آیت کښ دویمه دعویٰ د سورت ذکر کوی او دا متعلق دے د قصے د موسیٰ او سلیمان علیهم السلام سره او هر کله چه مخکښ آیاتونو کښ قدرت او تصرف خاص کړے شو په الله تعالیٰ پورے او نفی د شرک فی التصرف اوشوه نو اوس پدے آیت کښ علم د غیب خاص کوی په الله تعالیٰ پورے او نفی د شرک فی العلم کوی۔ او دا څلورم خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته۔
اَلْغَيْبَ، نه مراد هغه څیزونه دی چه په هیڅ سبب سره خودلے شوے نه دی نه په عقل سره او نه په حواسو او نه په وحی سره او دیته غیب حقیقی وائی او د دے سره متعلق قصه قرطبی ذکر کړیده او مطلب ئے دا دے چه کوم یو څیز د انسانانو په علم کښ راشی نو هغے ته غیب نه وئیلے کیږی۔

# بَلِ ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ

بلکه بند دے علم د دوی په باره د آخرت کښ

مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ، نه مراد ملائیک دی او عیسیٰ علیه السلام او ارواح د ټولو مؤمنانو چه په علیین کښ دی۔
وَالْاَرْضِ، دلته یې مَنْ د اختصار د پاره حذف کړے دے او دا آیت صریح نص دے په نفی د علم غیب کښ د غیر الله نه هم ذاتی او هم عطائی او هم جسمانی او روحانی۔
سوال اول:۔ اِلَّا الله استثناء منقطع ده او که متصل ده او په دواړو حالتو کښ نصب (زور) پکار وو نو دلته ولے مرفوع ذکر شو؟
جواب اول:۔ دا استثناء منقطع ده په معنیٰ د لیکن سره ځکه چه الله تعالیٰ د جنس د مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ نه نه دے او رفع په مستثنیٰ په لغت د بنی تمیم کښ جائز ده بناء په بدلیت سره یعنی اِلَّا الله په اصل کښ بدل دے د مَنْ نه او مَنْ په محل د رفع کښ دے نو بدل یې هم مرفوع دے او ابن کثیر دا قول نقل کړے دے د زجاج او د فراء نه۔
جواب دویم:۔ دا دے چه دا استثناء متصل ده او رفع د مستثنیٰ په نیز د اهل حجاز و باندے په حال د کلام سلبی کښ جائز ده۔
دویم سوال:۔ الله تعالیٰ د جنس د مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ نه نه دے ځکه چه هغه مخلوق دے او الله تعالیٰ خالق دے نو استثناء متصل څرنګ صحیح کیږی؟
جواب ۱:۔ دا دے چه د مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ اطلاق په الله تعالیٰ باندے جائز دے په قرینه د سورة انعام ۳ سره (په هغه معنیٰ سره چه په سورة انعام کښ مراد ده) نو استثناء متصله صحیح ده (کذا فی التفسیر نیشاپوری)۔
جواب ۲:۔ دا په فرض او تقدیر باندے بناء ده یعنی بالفرض که آسمانونو او زمکے والا په غیب باندے علم اولری نو شی به

بَلْ هُمْ فِیْ شَكٍّ مِّنْهَا ۫ بَلْ

| بلکه | دوی | په شک کښ دی | دَ هغې نه | بلکه |
|---|---|---|---|---|

دَ نوع دَ الله تعالیٰ نه لیکن ثانی باطل دے (د الله تعالیٰ په نوع دَ الوهیت کښ هیڅ شریک نشته) نو مقدم ئې هم باطل شو یعنی آسمانونو او زمکو والا هم په غیب باندے علم نه لری۔

دریم سوال :۔ هر کله چه یو څیز دَ انسان نه پټ وی نو هغه غیب دے او بیائې په عقل یا حواسو یا په ذریعه دَ دلیل وحی سره معلوم کړی نو دَ دهٔ علم ورباندے حاصل شو نو علم دَ غیب ورته حاصل شو ؟

جواب دا دے چه دا اطلاق اګرچه په لغت کښ صحیح دے لیکن په شریعت کښ جائز نه دے ځکه چه دَ لفظِ علم دَ غیب سره ثبوتًا په قرآن او حدیث کښ سِوا دَ الله تعالیٰ نه دَ بل چا دَپاره نه دے مستعمل شوے او اطلاق لغةً سره اطلاق شرعی نه ثابتیږی (کذا فی روح المعانی)۔

دَ دے آیت نه معلومه شوه چه څوک نبی یا ولی یا نجومی وغیره ته دَ علم غیب صفت ثابتوی که روحانی وی یا بدنی وی ذاتی وی یا عطائی وی نو هغه کافر دے ځکه چه دَ دے صریح آیت نه منکر دے دا رنګ شرح فقه اکبر کښ لیکلی دی۔

او حدیث صحیح دَ عائشه رضی الله عنها نه نقل دے چا چه اُوئیل چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ صبا په حالاتو باندے عالم دے پس لوے دروغ ئې په الله تعالیٰ باندے اُوتړل۔

هُم مِّنْهَا عَمُونَ ﴿٦٦﴾ وَقَالَ الَّذِينَ

دوی دَ هغې نه ړانده دی . او وائی هغه کسان

كَفَرُوٓا ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا وَّاٰبَآؤُنَآ

چه کفر یې کړیدے آیا هر کله چه مونږ خاورے شو او پلاران زمونږ

اَئِنَّا لَمُخْرَجُوْنَ ﴿٦٧﴾ لَقَدْ وُعِدْنَا

آیا مونږ به خامخا راویستلے کیږو . یقینًا وعده کړے شویده

هٰذَا نَحْنُ وَاٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ

دا زمونږ سره او دَ مشرانو زمونږ سره دَ دینه مخکښ

۶۶ :. دا زجر دے په انکار دَ قیامت باندے روستو دَ زجر نه په شرک دَ منکرینو کوم چه په آیت ۶۰ کښ تیر شول.

بَلْ، یا په خپله معنیٰ سره دے یا په معنیٰ دَ هَلْ استفهامی دے په استفهام انکاری سره.

اِدّٰرَكَ ، دَ دے مفسرینو څلور معانی ذکر کړے دی.

اوله معنیٰ، بَلْ په معنیٰ دَ هَلْ او اِدّارك په معنیٰ دَ استحکم دے یعنی آیا مضبوط دے علم دَ دوی په باره دَ قیامت کښ (چه قیامت به نه راځی).

دویمه معنیٰ، اِدّارك په معنیٰ دَ تَعَابَ سره دے معنیٰ دا ده بلکه غائب دے علم دَ دوی په باره دَ آخرت کښ یعنی علم یې هغې ته نه رسیږی.

دریمه معنیٰ، اِدّارك په معنیٰ تتابع قولهم دے معنیٰ دا چه بلکه پرله پسے دی خبرے دَ دوی په باره (دَ انکار) دَ آخرت کښ.

څلورمه معنیٰ، اِدّارك په معنیٰ دَ تساقط دے معنیٰ دا چه بلکه ختم شویدی (اسباب) دَ علم دَ دوی په باره دَ آخرت کښ. عَمُوْنَ مراد تری نه عمی دَ زړه دے چه هغه جهل دے. او لفظ دَ بل دَ ترقی دَ پاره دے او اشاره ده چه په یقین دَ منکرینو درے قسمونو ته اشاره ده.

۶۷ ، ۶۸ :. دا هم زجر دے په انکار دَ بعث بعد الموت سره او دا

إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ۝٦٨

نه دي دا مګر دروغ قصې دي د زړو خلقو۔

قُلْ سِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَٱنظُرُوا۟

اووایه اوګرځئ په زمکه کښې پس اوګورئ

كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُجْرِمِينَ ۝٦٩

چه څرنګ شو انجام د مجرمانو۔

وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُن فِى

او مه خفه کېږه په دوی باندے او مه کېږه په

ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ۝٧٠ وَيَقُولُونَ

تنګسیا کښې د دوی د چلوتو د وجې نه۔ او دوی وائي

انکار صرف په سبب د استبعاد سره دے یعنی د عقل نه ئې لرے ګنړی دلیل د انکار ورسره نشته۔ او په دویم کښې اشاره ده چه مسئله د بعث نړه خبره ده لیکن دوی ورته اساطیر وائي لکه دے زمانه کښې کمیونسټ وائي چه د قیامت خبرے د ملیانو ډکوسلے دی۔ دا سے په سورة مؤمنون ۸۲ کښې هم تیر شوی دی۔

فائده:- هر کله چه په هغه سورت کښې د آباؤ منکرینو ذکر ډیر مخکښې تیر شوے و نو ځکه د آباء لفظ ئې په هذا باندے روان دے راوړو او دے سورت کښې د انکار قریب ذکر شو نو هذا ئې مخکښې کړو۔

۶۹:- په دے آیت کښې جواب دے د انکار د هغوی په طریقه د تخویف دنیوی سره۔ او دا ختم خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته۔

۷۰:- دا تسلی ده پیغمبر ته په انکار د منکرینو او په مکرونو جوړولو د هغوی په مخالفت د نبی صلی الله علیه وسلم کښې او په دے آیت کښې شپږم او اووم خطاب دے۔

مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۷۱﴾

کله به وی دا وعده که چرے تاسو رشتینی یئ۔

قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ رَدِفَ لَكُمْ

اَوایه نزدے ده چه را اوبه رسی تاسو ته

بَعْضُ الَّذِیْ تَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَاِنَّ

بعضے هغه عذاب چه تاسو یے به تلوارے غواړی۔ او یقینًا

رَبَّكَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ

ستا رب خامخا فضل والا دے په خلقو باندے

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۷۳﴾ وَاِنَّ

او لیکن ډیر دَ دوی نه شکر نه کوی ردَ الله تعالیٰ)۔ او یقینًا

رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ

ستا رب خامخا پوهیږی په هغه خبرو چه پټوی یے سینے دَ دوی

۷۱:۔ دا زجر دے منکرینو ته په انکار دَ قیامت سره۔

۷۲:۔ دا جواب دے په طریقه دَ تخویف دنیوی سره ځکه بَعْضُ الَّذِیْ نه مراد عذاب دَ دنیا دے۔

رَدِفَ، روستو پیوست. دا تللو ته وئیلے شی لکه ردیف په سورلئ باندے هغه چاته وئیلے شی چه روستو په بل ملګری پسے پیوست په یو سورلئ باندے سور وی۔ د لته مراد تدرار سیدل دی۔ او دا اتم خطاب دے۔

۷۳:۔ دا هم زجر دے چه الله تعالیٰ دَ دوی نه عذاب روستو کوی په فضل خپل سره لیکن دوی دَ دے فضل شکر نه کوی۔ او دا نهم خطاب دے۔

وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿٧٤﴾ وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ

او په هغه چه دوی یې ښکاره کوی۔ او نشته هیڅ پټه (خبره او خصلت)

فِي السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ إِلَّا فِي كِتَابٍ

په آسمان او او زمکه کښې مګر په کتاب

مُّبِينٍ ﴿٧٥﴾ إِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَقُصُّ

ښکاره کښې ده۔ یقینًا دا قرآن بیانوی

عَلٰى بَنِىٓ إِسْرَآءِيلَ أَكْثَرَ الَّذِي

په بنی اسرائیلو باندے ډیرے داسے مسئلے

هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿٧٦﴾ وَإِنَّهُ لَهُدًى

چه دوی په هغے کښې اختلاف کوی۔ او یقینًا دا قرآن خامخا هدایت

۷۴ :- دا دلیل عقلی دے او رد دے په شرک فی العلم باندے۔ او دا لسم خطاب دے۔

او جواب دے یو وهم دے که څوک وهم اوکړی چه دوی ته عذاب ځکه روستو دے چه کیدیشی الله تعالیٰ ته د دوی علم نه وی نو په دوه آیاتونو کښې د دے جواب ورته کوی۔

پدے آیت کښې خصوصی علم ذکر کوی او ورپسے آیت کښې عمومی علم د الله تعالیٰ ذکر کوی۔

۷۵ :- دا هم دلیل عقلی دے او رد دے په شرک فی العلم باندے۔ او کِتَابٍ مُّبِينٍ نه مراد لوح محفوظ دے او د دواړو دلیلونو مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د حالاتو د دے منکرینو نه بیخ خبر دے لیکن مهلت ورکوی په سبب د فضل سره۔

۷۶ :- دا ترغیب الی القرآن دے ۔ او هرکله چه بعضے د غائب څیزونو نه اختلافات د بنی اسرائیلو وو نو په دے آیت کښې یې اشاره اوکړه چه دغه قسم غائبات په قرآن کریم سره ښکاره کیږی۔ او پدے کښې اشاره ده چه واقعات د سلیمان علیه السلام بنی اسرائیلو

پټ کړے او بدل کړے وو۔ او په سليمان عليه السلام ئې دروغ وتړل نو په دے سورت کښ د هغے بيان اوشو۔

۷۷:- دا هم ترغيب دے قرآن ته په ذکر د دوؤ صفتونو جامعو سره۔

۷۸:- دا تسلي ده رسول ته او متعلق دے د يختلفون سره. او دا بولسم خطاب دے او د حکم نه مراد قرآن دے نو دا فيصله دنيوي ده او ترغيب دے قرآن ته يا د حکم نه مراد فيصله د آخرت ده نو دا تخويف اخروي دے مخالفينو ته۔

۷۹:- دا هم تسلي او تشجيع ده رسول ته په مقابله د اختلاف کوونکو کښ. او دا دولسم او ديارلسم خطاب دے۔ فَتَوَكَّلْ. فاء د پاره د تفريع ده په دے صفتونو د الله تعالیٰ باندے چه مخکښ آيت کښ ذکر شول۔

۸۰، ۸۱:- دا هم تسلي ده رسول الله ته او څوارلسم او پنځلسم او شپاړسم او اولسم خطاب دے او جواب د وهم دے چه هر کله د دے رسول

وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِی الْعُمْیِ عَنْ

او نه یې هدایت کوونکے (کافرانو ته) چه د ړانده و پشان دي (چه بېرته یې کړے) د

ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ یُّؤْمِنُ

ګمراهۍ د دوي نه، نه شې کولے اورول مګر هغه چاته چه ایمان لري

بِاٰیٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۸۱﴾ وَاِذَا وَقَعَ

په آیاتونو زمونږ پس دوي تابعداري کوي - او هرکله چه پوره شي فیصله

دعوت حق مبین دے نو دا ولے کافرو خلقو کښې اثر ولے نه کوي؟

نو جواب اوشو حاصل دا چه ستا بیان په دوي کښې تاثیر نه کوي ځکه دے

مانع د دوي د طرف نه دے ستا د طرف نه هیڅ نقصان نشته هغه دا

چه دوي پشان د مړو دي او د مړي ټول حواس او عقل بے کاره وي

یعني نه آوري او نه وینې او نه پوهیږي په عقل سره او دا رنګ

دوي پشان د کڼو دي او د کونړ حاسه د اوریدلو بے کاره ده او دا رنګ

دوي پشان د ړاندو دي چه حاسه د لیدلو ئې بے کاره ده یعني د علم

اسباب زړه، (عقل) او غوږونه او سترګے دي او هغه لکه چه د

مړي او کونړ او ړوند بے کاره دي دا سے د دے کافرانو هم دي

نو دا پشان د خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰی سَمْعِهِمْ وَعَلٰی

اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ" بقره ۷ دے.

هرکله چه مړے او کونړ په تا اوریدلو کښې شریک دي نو هغه دواړه

ئې یو ځائے ذکر کړل او دواړو سره ئې لا تسمع ذکر کړے دے

یعني تشبیه ده د کافرانو عنادیانو د مړو او کڼو سره په نه

اوریدلو کښې- دا درے تشبیهات په طریقه د تنزل سره دي یعني

اوله اعلیٰ تشبیهه ده ځکه چه په مړو کښې هیڅ حاسه نشته او په

کونړو کښې صرف د اوریدلو حاسه نشته خو چه نه اوري نو سوچ او فکر

په څرنګ اوکړي او په ړوند کښې صرف حاسه د لیدلو نشته او اوریدل

او فکر خو کولے شي یا دا تشبیهات په اعتبار د درے قسمو نو د منکرینو

سره دي- (باقي مسئله د مړو د اوریدلو او نه اوریدلو به انشاء الله

الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ اَخْرَجْنَا لَهُمْ دَآبَّةً

دَعذاب په دوی باندے راوباسو به موږ دوی لره یو ښاور

مِّنَ الْاَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ ۙ اَنَّ النَّاسَ

دَ زمکے نه خبرے به کوی دَ دوی سره (څکه چه) یقینًا خلقو به

كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا لَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۸۲﴾

په آیاتونو زموږ باندے یقین نه لرلو۔

تعالیٰ په تفسیر دَ سورة روم کښ تفصیلًا راځی)۔

اِذَا وَلَّوْا، دا دَ زیات تاکید دَپاره دے یعنی کوڼ نه آوری او هر کله چه شا اوکرځوی بیا بلکل نه اوری نو دارنګ دے کافرانو هم قرآن ته شا کړځولے ده۔

عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ، متضمن دے معنیٰ دَ بیج کولو لره۔

اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ، معلومه شوه چه ایمان کامل والا دَ قرآن نه پوره فائده اخستلے شی۔ په دے آیت کښ ایمان تصدیق دَ قلب دے او اسلام ظاهری اعمال او طاعت کول دی او اسماع نه مراد اسماع دَ فائدے ورکولو ده۔

۸۲: دا تخویف دنیوی دے په سبب دَعدم ایمان بالآیات والقرآن۔ او مراد دَ وقوع دَ قول نه فیصله دَغضب دَ الله تعالیٰ ده په عدم قبولیت دَ توبے او دَ ایمان سره۔ او نقل دی دَ ابوسعید خدری په روایت سره چه هغه وخت به هله راځی چه تول خلق به امر بالمعروف او نهی عن المنکر پریږدی۔ او دَعبد الله بن مسعود په روایت سره هغه وخت دے چه علماءِ حق مړه شی او علم دَ دین او دَ قرآن به پاتے نشی۔ هر کله چه دا سے وخت راشی نو بیا به توبه نه قبلیږی او مؤمنان به نه پیدا کیږی لکه چه نوح علیه السلام ته وحی اوکړے شوه (اِنَّهٗ لَنْ يُّؤْمِنَ مِنْ قَوْمِكَ اِلَّا مَنْ قَدْ اٰمَنَ (هود ۳۶)) نو دغه وخت به دَآبَّةً دَ زمکے نه پیدا شی۔

په حدیث دَ مسلم کښ ذکر دی چه درے علامات دَ قیامت چه ښکاره

وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا

او په کومه ورځ چه راجمع به کړو دَ هر امت نه يو ډله

مِّمَّنْ يُكَذِّبُ بِآيَاتِنَا فَهُمْ

دَ هغه چا چه دروغژن ګڼي آيا تونه زمونږ پس دوی به

شي نو بيا په ايمان نه قبليږي تمرد مغرب نه راختل او دجّال او دابة الارض۔

او دا رنګ بيل حديث د مسلم کښ علامات د قيامت لس ذکر کړے دي او په هغے کښ يو دابة الارض ده نو معلومه شوه چه دابة الارض به ضرور راځي ليکن د هغے شکل او د هغے د خروج مکان او نور تفصيلي احوال په صحيح روايا تو سره ثابت نه دي (اګر چه تفسير قرطبي او نور مفسرينو ليکلي دي) نو په دے باندے ايمان اجمالي کافي دے، او چا چه د دے مصداق عمر رضی الله عنه يا بل داعي د حق ګرځولے دے نو هغه تفسير قرطبي په ډيرے سختئ سره رد کړے دے۔

تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ النَّاسَ، په دے کښ درے توجيهات دي۔

اوله توجيه دا ده چه أَنَّ دويم مفعول دے د تُكَلِّمُهُمْ۔ او بِآيَاتِنَا کښ بآيات ربنا مراد دے معنیٰ دا شوه دا دابة به خبر ورکوی چه خلق په آيا تونو د رب زمونږ يقين نه کوی د دے وجے نه زۀ ئے دا او ليږلم۔

دويمه توجيه دا ده تُكَلِّمُهُمْ، د پاره مفعول حذف دے بِبُطْلَانِ الْأَدْيَانِ كُلِّهَا سِوَى الْإِسْلَامِ او بِعَدَمِ قَبُولِ تَوْبَتِهِمْ۔ او أَنَّ متعلق دے په أَخْرَجْنَا پورے معنیٰ دا ده چه دا دابة خبر ورکوی خلقو ته د ابطال د ټولو دينونو سوا د دين اسلام نه بيا به خبر ورکوی په نه قبليدلو د توبے د دوی سره۔ او دابة به دے وجے سره را وباسو چه خلق زمونږ په آيا تونو باندے يقين نه لري۔

دريمه توجيه دا ده چه تُكَلِّمُهُمْ په معنیٰ لغوی سره دے يعنی جرح به کوی په انسانانو د هغه وخت باندے چه خبره چه أَنَّ النَّاسَ آه او بِآيَاتِنَا نه مراد آيات ربنا دے

يُوزَعُونَ ﴿٨٣﴾ حَتّٰىٓ اِذَا جَاۤءُوْ قَالَ

حصے حصے کړې شي. تر هغې پورې چه کله دوی راشي او به وائي الله تعالیٰ

اَكَذَّبْتُمْ بِاٰيٰتِيْ وَلَمْ تُحِيْطُوْا بِهَا

آیا تاسو دروغژن کنړل آیاتونه زما او حال دا چه نه وو راګیر کړي تاسو هغې له

عِلْمًا اَمَّاذَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٨٤﴾

په علم خپل کښ بلکه څه دي هغه چه تاسو کول.

وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ بِمَا ظَلَمُوْا

او راپه شي فیصله د عذاب په دوی باندې په وجه د ظلم د دوی

فَهُمْ لَا يَنْطِقُوْنَ ﴿٨٥﴾ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّا

نو دوی به خبرې نشي کولې. آیا نه ګوري دوی چه یقینًا

جَعَلْنَا الَّيْلَ لِيَسْكُنُوْا فِيْهِ وَالنَّهَارَ

ګرځولې ده موږ شپه (زمونږ پیدا کړې شوې ده) چه آرام اوکړي دوی په هغې کښې او ورځ

سلا:- د دې آیت نه تخویف اخروی شروع دې د آیات الٰهیه مکذبینو د پاره.

يُوزَعُونَ، بند به کړې شي په یو ځای کښ بیا به بوتللې شي میدان د حساب ته.

سلا:- د تکذیب په باره کښ تپوس او زورنه ده چه بغیر د علم او تحقیق نه ولې تکذیب کوئ یعني اول خو انسان په یو خبره ځان پوهه کړي نو روستو د هغې نه بیا تصدیق یا تکذیب کوي.

اَمَّاذَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ، یعني سوا د تکذیب نه نور هم تاسو ناکاره عملونه کول. اَمَّا په اصل کښ اَمْ مَا دې.

سلا:- په دې کښ هم تخویف اخروی دې.

وَقَعَ الْقَوْلُ، یعني فیصله د عذاب په دوی باندې واجبه شوه.

فَهُمْ لَا يَنْطِقُوْنَ، یعني حجة او دلیل به نشي پیش کولې یا مراد دا

مُبْصِرًا اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوْمٍ

رڼا والا رڼا کسب اوکړي په هغې کښې) بیقینًا په دې کښې دېر دلیلونه دي هغه قوم لره

یُّؤْمِنُوْنَ ﴿۸۶﴾ وَیَوْمَ یُنْفَخُ فِی الصُّوْرِ

چه ایمان راوړي. او په کومه ورځ چه پوکے اوکړیشي په شپیلۍ کښې

فَفَزِعَ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِی الْاَرْضِ

نو گبراؤ به شي هغه خوک چه په آسمانونو کښې دي او هغه خوک چه په زمکه کښې دي

اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ؕ وَكُلٌّ اَتَوْهُ

مگر هغه خوک چه الله تعالیٰ غواړي (د هغوي بچ کول) او ټول به راځي هغه ته

دٰخِرِیْنَ ﴿۸۷﴾ وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا

عاجزي کوونکي. او وینې به ته غرونو لره گمان به کوے ته په هغې باندے

چه په خوله باندے به ئے مهر او وهلے شي.

۸۶:- هر کله چه مخکښې زجر او تخویف په انکار د آیات قرآنیه باندے ذکر وؤ. اوس زجر ورکوي په انکار د آیات عقلیه سره او دا رنګ په دې کښې دلیل دے د پاره د اثبات د بعث بعد الموت.

یُؤْمِنُوْنَ، یعنی هغه خوک چه یقین کوي چه دا تصرفات د الله تعالیٰ دي په دے آیت کښې یو یو څیز په هر جانب کښې بیت دے اللیل سره لظلما او د مبصرا سره تبتغوا من فضله بیت دے.

۸۷:- د دے آیت نه تخویف اخروي شروع دے او د دے حالات ئے په دے آیت کښې ذکر کړے دي. صحیح دا ده چه نفخ فی الصور دوه ځله ده اول د فناء د پاره او دویمه د بعث د پاره. او فزع او صعق یو شے دے او مراد د دیته اوله شپیلۍ ده د پاره د فنا ځکه چه وړیے د غرونو حال ئے ذکر کړے دے او هغې ته فزع او صعق هم وائي ځکه چه ویره او بے هوشي به اول راشي نو بیا به مړه شي. په اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ کښې اختلاف دے بعضو ټیلے دي شهداء دي او انبیاء علیهم السلام پکښې هم داخل دي او بعضو ټیلے دي مراد ترینه ملائیک دي او بعضو

جَامِدَةً وَّهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ط

کلک په ځای باندې او هغه به تیریږي پشان د تیریدلو د وریځې ،

صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِيْٓ اَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ ط

جوړښت د الله تعالیٰ دې هغه ذات چه مضبوط کړي دي هر څیز ،

اِنَّهٗ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَفْعَلُوْنَ ﴿۸۸﴾

یقیناً الله تعالیٰ خبردار دې په هغه کارونو چه تاسو یې کوئ -

وئیلې دي چه مراد تري نه کامل مؤمنان دي په قرینه د سك۸۹ سره -
مطلب دا دې چه فنا نه روانې کومه فزع او گبراهټ راځي نو
دوي په د هغې نه مستثنیٰ دي - بالفرض که دوي هغه وخت موجود وي.
وَكُلٌّ اَتَوْهُ ، کل په معنیٰ کښې جمع دې نو ضمیر د جمع ورته راجع
کول صحیح دي او پدې تفسیر اَتَوْهُ دٰخِرِيْنَ . نه فنا او مرګ
قبلول دي.
دویم قول دا دې چه دا نفخ في الصور په ورځ د محشر ده روستو
د بعث نه او فزع په معنیٰ د صعق (بې هوشي) دې -
سك۸۸ :- دا د احوالو د قیام د قیامت نه هیبت ناک څلورم حال دې -
تَحْسَبُهَا جَامِدَةً ، یعنی اوس ته ګمان کوې چه دا غرونه ډیر کلک
دي او حال دا چه دا به د وریځو پشان روان شي یا دا چه په هغه وخت
به ته ګمان کوې چه دا غرونه پخپل ځای باندې ولاړ دي او حال
دا چه روان به وي ځکه چه غټ جسم چه حرکت کوي نو انسان په
هغې باندې نه پوهیږي.
امام قرطبي د غرونو حالات چه په وخت د قیام ساعت کښې به وي
په ترتیب سره ذکر کړي دي. اول اِنْدِكَاكٌ رَفْ كُنَّا دَكَّةً وَّاحِدَةً
دویم كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوْشِ . دریم هَبَآءً مَّنْبَثًّا - څلورم نسف -
پنځم مرالسحاب - شپږم سراب -
صُنْعَ اللّٰهِ ، مفعول مطلق دې د فعل یا انظروا محذوف دې یعنی
اوګورئ جوړښت د الله تعالیٰ نه غرونو وغیره لره -

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَيْرٌ
چا چه راتله او کړو په ښه (خصلت) سره نو دهٔ سره بدله به وی
مِّنْهَا ۚ وَهُمْ مِّنْ فَزَعٍ يَّوْمَئِذٍ
دَ هغې دَ وجې نه او دوی به دَ ګبراهټ دَ دغه ورځې نه
اٰمِنُوْنَ ﴿٨٩﴾ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ
امن والا دی۔ او چا چه راتلل اوکړل بدۍ سره
فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ فِى النَّارِ ؕ هَلْ
نو او غرځولے به شی مخونه دَ دوی په اور کښ بدله نشی
تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٠﴾
درکیدلے تاسو ته مګر دَ هغه عملونو چه تاسو کول۔

كُلَّ شَيْءٍ، نه مراد غرونه او دَ هغې ټکړے دی یا هر څیز مراد دے او اتقان نه مراد مناسب او په حکمت سره جوړول دی۔

۸۹:۔ دا دَ احوالو دَ بعث بعد الموت نه پنځم حال دے او بشارت دے مؤحدینو لره۔

حَسَنَةٍ کلمه دَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ده۔ خَيْرٌ مِّنْهَا من اَجْلِيَه دے یعنی بهتر جزاء به وی دَ وجے دَ کلمے دَ توحید نه۔

مِنْ فَزَعٍ يَّوْمَئِذٍ، دا فزع دَ ورځ قیامت دَ مخکښ نه جدا ده ځکه چه ورځ دَ قیامت ډیر هیبتونه دی یو دَ هغې نه ذبح دَ موت ده۔ دلته صعق مراد نه دے ځکه چه هغه صعق او بیا اقامت په ټولو مؤمنانو باندے هم راځی۔

۹۰:۔ دا تخویف اخروی دے او په دیکښ شپږم حال ذکر کوی۔ والسیئة نه مراد شرک او کفر دے۔

هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ، اشاره ده چه دا جزا په شان دَ عمل دَ دوی ده دوی دَ اللّٰه تعالیٰ دین لره اُلټه کړے وه نو دوی به هم اُلټه کړے شی او دا رنګ سورة شعراء کښ تیر شو یدی

إِنَّمَآ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ رَبَّ هَٰذِهِ

يقيناً امر كړے شوے دے ماته چه خاص بندګي دِ اوکړم دَ مالک دَ دے

الْبَلْدَةِ الَّذِي حَرَّمَهَا وَلَهُ كُلُّ

ښار هغه ذات چه عزت ئے ورکړے دے او دَ هغهٔ اختيار کښ هر

شَيْءٍ ۖ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٩١﴾

څهٔ دی او ماته امر كړے شوے دے چه زهٔ شم دَ تابعدارئ کوونکو نه۔

وَأَنْ أَتْلُوَ الْقُرْآنَ ۖ فَمَنِ اهْتَدَىٰ

او چه بيانوؤم قرآن پس چا چه هدايت اومندلو

فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ ۖ وَمَن ضَلَّ

نو يقيناً هدايت موندي خپلے فائدے لره او څوک چه ګمراه شو

سلا:۔ هر کله چه هيبت دَ قيامت ذکر کړے شو نو دَ هغے نه دَ بچ کيدلو دَ پاره طريقه ذکر کوی او دا وحی دليلونه دی۔ إِنَّمَآ أُمِرْتُ، يعنی توحيد عقيدةً او عملاً باندے ماته امر کړے شوے دے۔

رَبَّ هَٰذِهِ الْبَلْدَةِ، دا اول دليل دے او وَلَهُ كُلُّ شَيْءٍ، دا ورپسے دويم دليل دَ توحيد دے۔ هر کله چه دوه امرونه دی دَ دے وجے نه دوه دليلونه ئے ذکر کړل۔

مِنَ الْمُسْلِمِينَ، مراد دا دے چه دَ توحيد عملونه ښکاره کولو باندے مامور يم لکه په سورة انعام ۱۶۳ کښ۔ دَ بَلْدَةِ تخصيص دَ دے وجے نه اوشو چه هغهٔ دَ مشرکانو په نظر کښ معظم ده محبوبه ده نو دَ هغے رب به هم ضرور معظم او معبود وی او دا رنګ بعضے روايات کښ منقول ده چه دابة الارض به دَ زمکے دَ مکے نه را اوځی دَ دے وجے نه خاص کړے شوه په ذکر سره پدے سورت کښ۔

فائده:۔ هر کله چه پدے سورت کښ خطابات دَ نبی صلی الله عليه وسلم ذکر کړے شول په ۶ ، ۵۹ . ۶۲ ، ۶۵ ، ۶۹ ، ۷۰ ، ۷۲ ، ۷۳ ، ۷۷ ، ۷۸ ، ۷۹/۸۰ ، ۸۱/۸۲ ، ۹۱/۹۲ کښ نو دَ دے آيت په اول کښ قُل مقدر دے او متعلق دے دَ هغه

فَقُلۡ اِنَّمَاۤ اَنَا مِنَ الۡمُنۡذِرِیۡنَ ﴿۹۲﴾
نو او وایه یقینًا زهٔ دَ ویره ورکوونکو نه یم۔
وَقُلِ الۡحَمۡدُ لِلّٰهِ سَیُرِیۡكُمۡ اٰیٰتِهٖ
او او وایه ټول صفتونه دَ خدای پاک خاص الله تعالیٰ لره دی زر دے چه او به خایئ تاسو ته دلیلونه خپل
فَتَعۡرِفُوۡنَهَا ؕ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ
پس تاسو به یے اوپیژنئ، او نه دے ستا رب غافل
عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۹۳﴾
دَ هغه عملونو نه چه دوی کوی۔

خطابا تو سره - او دا اتلسم خطاب دے۔
۹۲:۔ دا هم دلیل وحی دے دَ اُمِرۡتُ دَ لاندے داخل دے۔ نولسم خطاب دے په تقدیر دَ قل سره - فَقُلۡ شلم خطاب دے۔ او تلاوت په طریقه دَ دعوت سره مراد دے اشاره ده چه وضاحت دَ توحید په قرآن بیانولو سره دے۔
دَ مَنۡ ضَلَّ فَقُلۡ، اصل جزا مقدر ده فَیَضِلُّ عَلَیۡهَا او فَقُلۡ آه دَ پاره دَ براءت دَ نبی صلی الله علیه وسلم دے دَ ذمه وارئ دَ گمراهانو نه۔
۹۳:۔ دا دعوی دَ توحید ده لکه چه دا تفریع لے ذکر کړے وه په احوالو دَ انبیاؤ سابقینو باندے په ۵۹ کښ نو اوس دا تفریع شوه په دلیلونو دَ توحید او په ذکر دَ احوالو دَ قیامت باندے۔ دا یویشتم خطاب دے۔
اٰیٰتِهٖ، دَ دیته مراد هغه نمونے دَ عذاب دنیوی دی په مختلفو قومونو مکذبینو باندے۔
وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ، هم دَ دے تائید دے یا مراد دَ دیته نور دلیلونه دَ توحید دَ الله تعالیٰ دی او دا دویشتم خطاب دے۔

(تمّت تفسیر سورة النمل بحمد الله تعالیٰ وکرمه)

سورة القصص مكية | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰياتها ۸۸ ركوعاتها ۹

شروع کوم په نوم د الله تعالیٰ امداد او غواړم په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے

طٰسٓمٓ ﴿۱﴾ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ

الله تعالیٰ بنه پوهیږی د دے په معنیٰ باندے ۔ دا آیاتونه د هغه کتاب دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة القصص

ربط :- د دے سورت د سورة النمل سره په ډیرو وجوهو سره دے ۔

اوله وجه دا ده چه مخکښ سورت کښ اثبات د توحید او شو په دلیلونو نقلیو او عقلیو سره نو په دے سورت کښ تسلی او تشجیع ده نبی او مؤمنانو ته په رسولو د دے مسئلے سره او بشارت دے په کامیابئ سره ۔

دویمه وجه سورة الشعراء او سورة النمل کښ د موسیٰ علیه السلام د قصے نه ابتداء نه وه ذکر کړے او س په دے سورت کښ د موسیٰ علیه السلام د ولادت د حال نه شروع کوی ۔

دریمه وجه دا چه د هغه سورت په آخر کښ سَيُرِيكُمْ اٰيٰتِهٖ ئے فرمائیلے وو نو په دے سورت کښ د هغه آیاتونو نه واقعه د هلاکت د فرعونیانو ذکر کوی ۔

دعویٰ :- د دے سورت دا ده تسلی ده اهل حق ته په کامیابئ سره روستو د تیرولو د مصیبتونو نه په دعوت د توحید کښ او د دے د پاره مثال نعمتونه دی په بنی اسرائیلو باندے او عذابونه دی په دشمنانو باندے یعنی فرعون ، هامان او قارون ۔ او په سورت کښ اثبات د توحید دے په عقلی دلیلونو سره او په رد د دریے اقسامو د شرک سره چه شرک فی العلم او فی التصرف او فی الدعاء دے ۔

خلاصه د دے ۔ دا سورت تقسیم دے دریے بابونو ته ۔

الْمُبِينِ ۝٢ نَتْلُوا عَلَيْكَ مِنْ نَّبَإِ

چه وضاحت کوونکے دَ حق او باطل دے۔ بیا توو موږ په تا باندے بعضے دَ خبر

مُوسٰى وَفِرْعَوْنَ بِالْحَقِّ لِقَوْمٍ

دَ موسیٰ علیه السلام او فرعون نه په رشتیا (دَ تسلئ دَپاره) دَ هغه قوم

يُّؤْمِنُوْنَ ۝٣ إِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِي الْأَرْضِ

چه ایمان راوړی۔ یقیناً فرعون لوئی کړے وو په ملک کښ

وَجَعَلَ أَهْلَهَا شِيَعًا يَّسْتَضْعِفُ

او جوړ کړے وو اوسیدونکی دَ هغے ډیرے ډلے کمزورے کوله ئے

اول باب ترسلا پورے دے په دیکښ اول ترغیب دے قرآن ته بیا دعوٰی دَ سورت ده۔ بیا اجمال دَ قصے دَ موسیٰ علیه السلام دے په ذکر دَ پنځه نعمتونو سره په بنی اسرائیلو باندے، او ذکر دَ نعمت په فرعونیانو باندے دَ وجے دَ شپږ ظلمونو نه بیا قصه دَ موسیٰ علیه السلام چه تقسیم ده پنځه مقاماتو ته۔

تفسیر:- سلا:- دا دَ مقطعاتو نه دے دَپاره دَ تنبیه په اعجاز دَ قرآن کریم باندے۔

سلا:- دا ترغیب دے قرآن کریم ته او آلْمُبِيْنِ کښ اشاره ده چه په دے سورت کښ تفصیل دَ واقعے دَ موسیٰ علیه السلام دے۔

سلا:- دا دعوٰی دَ سورت ده یعنی تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم او مؤمنانو ته۔ یعنی په واقعه دَ موسیٰ علیه السلام او دَ فرعون کښ مؤمنانو دَپاره فائدے او بشارت او تسلی ده چه تکبر او لوبی او ډیر والے دَ مال او جاه دَ عذاب نه بچ کول نشی کولے۔ او حق پرستو باندے مصیبتونه راځی او الله تعالیٰ ئے په کامیابی ورکوی۔

طَآئِفَةً مِّنْهُمْ يُذَبِّحُ أَبْنَآءَهُمْ
يو ډله د هغوى نه حلالول يې ځامن د هغوى

وَيَسْتَحْيِ نِسَآءَهُمْ ۚ إِنَّهُ كَانَ
او بې حيا كولې يې زنانه د هغوى ، يقينًا دے وو

مِنَ الْمُفْسِدِينَ ﴿۴﴾ وَنُرِيدُ أَنْ نَّمُنَّ
د فساد كوونكو نه - او موږ غوښتل چه احسان اوكړو

عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ
په هغه كسانو باندے چه كمزورى كړے شوى وو په ملك كښې

وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَّنَجْعَلَهُمُ الْوٰرِثِينَ ﴿۵﴾
او جوړ كړو موږ دوى لره مشران د دين او جوړ كړو دوى لره وارثان د ځمكے -

ﻫ :- په دے آيت كښې د فرعون بد خويونو ذكر كړے دى.
عَلَا فِي الْأَرْضِ ، تكبر په دعوى د ربوبيت او د الوهيت سره.
شِيَعًا ، دا هغه ډلے چه هغوى د يو بل سره تعصب او ضد كوى او دا رنګ بعضو له عزت او اقتدار كښې حصه وركول او د بعضو نه ځان متوجه اخستل.
يُذَبِّحُ أَبْنَآءَهُمْ ، په دے كښې دواړه كرته داخل دى يعنى د سورة بقره ۴۹ او د سورة اعراف ۱۲۷
الْمُفْسِدِينَ ، مراد دا دے چه كفر او د شرک اشاعت به يې كولو او د توحيد او د تابعدارئ د موسیٰ عليه السلام نه يې خلق منع كول.
ﻫ :- دا ذكر د انعاماتو دے په بنى اسرائيلو باندے په دے آيت كښې درے انعامات ذكر شوى دى او دريمه انقلابى انعامات وګڼلے كيږى. اول دا چه ضعف او كمزورى د دوى بدلوى په قوت او ركولو سره. او په يكښې هغه انعاماتو ته اشاره ده كوم چه په سورة بقره كښې ذكر كړے شوى دى.
دويم وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً ، مراد د دينه دعوت كوونكى دى دين حق ته

وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَنُرِيَ

او چه طاقت ورکړو دوی لره په ملک کښ او وخایو

فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ وَجُنُوْدَهُمَا مِنْهُمْ

فرعون او هامان او لښکرو د هغوی ته د طرف د بنی اسرائیلو

مَّا كَانُوْا يَحْذَرُوْنَ ﴿۶﴾ وَأَوْحَيْنَآ إِلٰٓى أُمِّ

هغه شے چه دوی تر ینه ویره کوله - او خودته اوکړه موږ مور د

مُوْسٰٓى أَنْ أَرْضِعِيْهِ ۚ فَإِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ

موسیٰ علیه السلام ته چه پئ ورکوه ده لره پس هرکله چه ویریږے په ده باندے

فَأَلْقِيْهِ فِي الْيَمِّ وَلَا تَخَافِيْ وَلَا تَحْزَنِيْ ۚ

نو واچوه ده لره په دریاب کښ او مه ویریږه (د ده د مرګ نه) او مه خفه کیږه (د ده په جدائی)

إِنَّا رَآدُّوْهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوْهُ مِنَ

یقیناً موږ واپس راګرځوو ده لره تا ته او جوړوو ده لره د

لکه سورة الم سجده ۲۳ کښ ذکر دی - او دیکښ اشاره ده چه په دین کښ مقتدا جوړیدل لوے انعام الٰهی دے -

دریم وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِيْنَ ، د دے ذکر په سورة اعراف ۱۳۷ کښ تیر شوی دے -

۶ :- په دیکښ دوه انعامات دی - اول دا چه علاوه د وراثت د مصر نه نورو ملکو نو کښ قدرت ورکول لکه چه په زمکه د شام کښ ئے هم دوی ته تسلط ورکړو - دویم نُرِيَ فِرْعَوْنَ الخ ،

مَّا كَانُوْا يَحْذَرُوْنَ ، چه هغه زوال د بادشاهۍ د فرعون دے په سبب د یو ولد د بنی اسرائیلو چه هغه دوی ته په ذریعه د بنی اسرائیلو یا په خوب کښ فرعون سره معلوم شوے وو - او فرعون د هغے ویرے نه ذبح د ابناؤ د بنی اسرائیلو کوله -

الْمُرْسَلِيْنَ ۞ فَالْتَقَطَهٗ اٰلُ فِرْعَوْنَ

پیغمبرانو نه پس را اوچت کړو دهٔ لره کورنۍ د فرعون په عاقبت دا

لِيَكُوْنَ لَهُمْ عَدُوًّا وَّحَزَنًا ؕ اِنَّ

چه شي دوی لره دښمن او غم ، یقینًا

فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ وَجُنُوْدَهُمَا كَانُوْا

فرعون او هامان او لښکرې د هغې دواړو وو دوی

خٰطِـِٕيْنَ ۞ وَقَالَتِ امْرَاَتُ فِرْعَوْنَ

خطاکار ـ او اوئیل ښځې د فرعون

قُرَّتُ عَيْنٍ لِّيْ وَلَكَ ؕ لَا تَقْتُلُوْهُ ۖ

یخ والے د سترګو زما او ستا دے ، مه وژنئ دهٔ لره

ے خلاصه :- د دے آیت نه تفصیل د قصّے د موسیٰ علیه السلام دے او د دے نه مقام اول دے تر ۱۳ پورے ، په یکښ ذکر د مصبیت دے په مور د موسیٰ علیه السلام یا ندے سره د بشارتونو او کرامتونو نه او سبب د رسیدلو د موسیٰ علیه السلام دے د فرعون کور ته او بیا واپس د مور غیږے ته او دا احوال د صغر (وړوکوالی) دی۔

تفسیر په دے آیت ے کښ دوه اوامر او دوه نواهی او دوه بشارتونه ذکر دی۔ او وحی نه مراد الهام دے په طریقه غالبًا نه سره یا په واسطه د ملک سره او دیته کرامت وئیلے کیږیشی۔ او په یکښ ذکر د مصیبت دے سره د بشارت نه۔

ے :- په دے آیت کښ اشاره ده چه بعضے وخت کښ عمل د یو شخص د ضرر د پاره سبب اوګرځی۔

لِيَكُوْنَ ، دیته لام عاقبت وئیلے کیږی۔ خٰطِـِٕيْنَ ، خطا شوے وو په تربیت د موسیٰ علیه السلام کښ ، یا مشرکان او ګنهګاران وو۔ او په دے آیت کښ مصیبت ظاهرًا ذکر شو ځکه چه د موسیٰ علیه السلام کور د فرعون نه ورتلل ظاهرًا سبب د خفګان د مور وو۔

عَسٰۤى اَنْ يَّنْفَعَنَاۤ اَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا

کیدی شي چه نفع راکړي موږ ته یا به یې او نیسو دځوی په ځاے باندے

وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ⑨ وَاَصْبَحَ فُؤَادُ

او دوی نه پوهیدل ۔ او صباله شو زړهٔ دَ

اُمِّ مُوْسٰى فٰرِغًا ؕ اِنْ كَادَتْ لَتُبْدِيْ

مورِ دَ موسیٰ اوزګار دَ هرڅه نه (رسوا دَ فکر دې نه) یقیناً نزدے وه چه حال یې دَ هغه

بِهٖ لَوْلَاۤ اَنْ رَّبَطْنَا عَلٰى قَلْبِهَا

ښکاره کړے وے که چرے تړون نه وے راوستلے موږ په زړه دَ هغې باندے

لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ⑩ وَقَالَتْ

دَ پاره دَ دے چه شي دَ ایمان والو نه ۔ او اوئیل دے

سف: دا نعمت دَ الله تعالیٰ دے دَ مصیبت نه نجات او حفاظت دَ موسیٰ علیه السلام یعنی الله تعالیٰ دَ موسیٰ علیه السلام حفاظت اوکړو په ذریعه دَ ښځے دَ فرعون سره، او دغه ښځے اُمید دَ نفع کړے وو نو الله تعالیٰ هغې لره هدایت نصیب کړو په سبب دَ موسیٰ علیه السلام سره او دَ دے ښځے ذکر په سورۃ تحریم ۱۱ کښې شته دے ۔

اَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا، اشاره ده چه دَ دے ښځے ولد نه وو لیکن دَ دے وجے نه چه فرعون کښې مردانیت نه وو نو ځکه هغه چپ پاتے شو۔

قُرَّتُ عَيْنٍ، هغه اولاد ته وئیلے شي چه دَ هغوی په ښائسته عمل او اخلاقو باندے خوشحالي حاصلیږي لکه په سورۃ فرقان ۷۴ کښې ۔

وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ، دا کلام مستقل رد دے په فرعونیانو باندے چه دوی موسیٰ علیه السلام دغه وخت نه پیژندلو، یا دا کلام دَ ښځے دے یعنی موږ به دے په پټه طریقه دَ ځان دَ پاره ولد اوګرځوو او نورو خلقو ته به معلومه نه وي هغوی به خیال کوي چه دے واقعي دَ دوی ولد دے ۔

سنا: پدے آیت کښې ذکر دَ مصیبت دے په مور دَ موسیٰ علیه السلام باندے لیکن سره دَ نعمت نه په طریقه دَ کرامت دَ هغې، ځکه ربط القلب دَ دا سے

لِاُخْتِهٖ قُصِّيْهِ ز فَبَصُرَتْ بِهٖ عَنْ

خور دَ هغهٔ ته لاړه شه وروسته پسې نو کتل هغې دهٔ ته دَ

جُنُبٍ وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۱﴾ وَحَرَّمْنَا

لرې نه او دوی نه پوهیدل . او منع کړے وو مونږ

عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ مِنْ قَبْلُ فَقَالَتْ

په دهٔ باندے پئ ورکوونکے مخکښ دَ دینه نو اووئیل رخور دَ دهٔ)

هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰٓى اَهْلِ بَيْتٍ

آیا اوخایئم تاسو ته یو کور والا

يَّكْفُلُوْنَهٗ لَكُمْ وَهُمْ لَهٗ نٰصِحُوْنَ ﴿۱۲﴾

چه پالنه به کوی دَ دهٔ ستاسو فائدے دَپاره اودوی به دَ دهٔ خیرخواه وی .

مصیبت په وخت دَ الله تعالیٰ دَطرف نه کرامت او نعمت دے . او دا سے ربط القلب په اصحاب کهف ملاکین وو .

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ، مراد دَ دے هغه څوک دے چه په وخت دَ مصیبت او ابتلاء کښ هم په ایمان باندے پوخ وی او دَ الله تعالیٰ په وعدو باندے یقین لری .

ملا :- هر کله چه مور دَ موسیٰ علیه السلام ته معلومه شوه چه موسیٰ علیه السلام دَ فرعون کورته تللے دے لیکن زړه دَ دے مضبوط وو او نور حال معلومولو دَ پاره ئے خور دَ موسیٰ علیه السلام دَ فرعون کورته اولیږله . هغه هم هوښیاره وه څکه چه موسیٰ علیه السلام ته تردے نه راتلله دَپاره دَ دے چه څوک شک او نکړی چه دا دَ دهٔ خور ده . نو دَ دے وجے دَ لرے نه ئے کتل .

وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ، دوی نه پوهیدل چه دا دَ دهٔ خورده دَ ده حال معلوموی .

ملا :- دا حُسن تدبیر دَ الله تعالیٰ دے دَپاره دَ واپس کولو دَ موسیٰ علیه السلام خپلے مورته .

حَرَّمْنَا ، دا تحریم لغوی دے په معنیٰ دَ منع سره څکه چه پیدا شوے

فَرَدَدْنٰهُ اِلٰٓى اُمِّهٖ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا

نو واپس کړو موږ دغه لره مور د دغه ته د پاره د دے چه یخے شي سترګے د دے

وَلَا تَحْزَنَ وَلِتَعْلَمَ اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ

او نه خفه کیږي او دے د پاره چه یقین اوکړي چه یقیناً وعده د الله تعالیٰ

حَقٌّ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳﴾

رشتیا ده او لیکن ډیر خلق نه پوهیږي۔

وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗ وَاسْتَوٰٓى

او هر کله چه اورسیدو خوانئ خپلے ته او برابر شو

اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا ؕ وَكَذٰلِكَ

ورکړو موږ دغه ته فرق د حق او باطل او پوهه د دین، او د غسے

عمر کښ تحریم شرعي ممکن نه دے۔

وَهُمْ لَهٗ نٰصِحُوْنَ، وئیلے شویدي چه فرعونیانو پدے باندے اعتراض اوکړو چه د دے نه معلومه شوه چه ته د دے. بچی مور پیژنے، نو دے ورته جواب کښ اُوئیل چه لهٗ ضمیر اهل بیت ته راجع نه دے په دلیل د لکم سره. بلکه فرعون ته راجع دے نو هغوی چپ شول.

۱۳:- دا نعمت د الله تعالیٰ دے روستو د صبر کولو نه په مصیبت باندے۔

اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ، د دے نه مراد هغه وعده ده چه په ۷ کښ ذکر شوے ده۔

لَا يَعْلَمُوْنَ، یعني نه پوهیږي په ښهٔ عاقبت د صبر په مصیبت باندے نو انتظار د نعمت نه کوي او بے صبري کوي۔

فائده:- مفسرینو لیکلي دي چه فرعون د مور د موسیٰ علیه السلام د پاره یو دینار (اشرفۍ) د ورځے مقرر کړلو او دا هغے لره د مال فئ په صفت سره جائز وو۔

نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿١٤﴾ وَدَخَلَ الْمَدِينَةَ

بدله ورکوو مونږ خاښته عمل کوونکو ته . او داخل شو دے ښار ته

عَلَىٰ حِينِ غَفْلَةٍ مِّنْ أَهْلِهَا

په وخت د غفلت د اوسیدونکو د هغے کښې

فَوَجَدَ فِيهَا رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلَانِ

نو اومندلو دهٔ په هغے کښې دوه سړی جنګ ئے کوؤ

هَٰذَا مِن شِيعَتِهِ وَهَٰذَا مِنْ

دا یو د قبیلے د موسیٰ علیه السلام نه وو او دا بل د رډ لے)

عَدُوِّهِ فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِي مِن

د دشمن د دهٔ نه وو نو مدد اوغوښتلو د دهٔ نه هغه سړی چه د

شِيعَتِهِ عَلَى الَّذِي مِنْ عَدُوِّهِ

قبیلے د دهٔ نه وو په مقابله د هغه سړی کښې چه د دشمن د دهٔ نه وو

خلاصه:- د دے آیت نه دویم مقام دے تر ۲۲ پورے په دے کښې مصائب او احوال د ځوانئ د موسیٰ علیه السلام دی یعنی مصیبت د قتل د قبطی ۔ تضرع الله تعالیٰ ته تحبّبًا ، او اتفاق د فرعونیانو په قتل د موسیٰ علیه السلام او هجرت مدین ته ۔

تفسیر:- په دے آیت ۱۴ کښې انعام په موسیٰ علیه السلام قَبْلَ النُّبُوَّةِ ذکر کړے

أَشُدَّهُ، جمع د دے وجے نه ذکر کړله چه په ځوانئ کښې ټولو قوتونو نه بدلیدل پاخه شی ۔

حُكْمًا، پوهه په احکامو دنیویه کښې ۔

عِلْمًا، پوهه د احکام اخرویه ۔

كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ، تشبیه د احوالو د مور د موسیٰ علیه السلام سره ده ، څرنګ چه مور د هغهٔ عمل اوکړو په امر د الله تعالیٰ او په مصیبت کښې ئے صبر اوکړو نو بیا خوشحاله کړے شوه دغسے هر محسن لره بدله

**فَوَكَزَهٗ مُوْسٰى فَقَضٰى عَلَيْهِ ۤ قَالَ**

نو په موکه او وهوده لره موسیٰ   نو ختم ئے کړو ژوند دهغهٔ   اُووئیل موسیٰ

**هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ**

دا   دَ   عمل   دَ   شیطان نه دے ،   یقیناً دے

**عَدُوٌّ مُّضِلٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۱۵﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّيْ**

دښمن گمراه کوونکے   ښکاره دے -   اُووئیل هغهٔ   اے ربه زما یقیناً ما

ملاوېږي - یا تشبیه دَ حال دَ موسیٰ علیه السلام چه چا لره الله تعالیٰ په ورډکوالی کښ په طریقه دَ خرق عادت اوساتی نو هغهٔ ته الله تعالیٰ دَ دین پوهه او ذمه واری ورکوی نو اشاره شوه حال دَ خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم ته.

مسئله - هر کله چه موسیٰ علیه السلام دَ دین دَ فرعون نه نفرت کوؤ نو دَ هغوی سره ئے تعلق نه لرلو بلکه دَ هغوی نه جدا په گرځیدلو دَ دے وجے نه ښار ته دَ غرمے په وخت کښ یو ضرورت دَ پاره داخل شو په پس غه وخت عام خلق اوده وؤ - او لفظ دَ عَلٰی دلیل دے چه دَ غفلت وخت دَ ده قصد وؤ -

فَاسْتَغَاثَهٗ ، وئیلے شویدی چه قبطی (چه دَ قوم دَ فرعون نه وؤ) په اسرائیلی باندے په ظلم سره گیډے دَ خشاک دَ فرعون مطبخ ته اوړل غوښتل او هغهٔ طاقت نه لرلو -

فَوَكَزَهٗ مُوْسٰى ، امداد کول دَ مظلوم په ټولو دینو نو کښ ضروری دے نو موسیٰ علیه السلام دَ دغه ظالم دَ دفع کولو دَ پاره هغهٔ په سینه کښ په موکه باندے او وهلو اراده دَ قتل دَ هغه ئے نه وه کړے - لیکن هغه اسرائیلی نه په آسانه طریقه نه جدا کیدلو بغیر دَ موکے وهلو نه -

فَقَضٰى عَلَيْهِ ، دَ هغه کار ئے پوره کړو دا په عرف کښ کنایه ده دَ مرگ نه یا ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے معنیٰ دا چه فیصله اوکړه الله تعالیٰ په هغه باندے دَ مرگ -

هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ ، بعضو خلقو دلیل نیولے دے چه داگناه وؤ ځکه

ظَلَمْتُ نَفْسِىْ فَاغْفِرْلِىْ فَغَفَرَلَهٗ ط

ظلم کړيدے په ځان خپل بانديے نو بخنه اوکړے ماته نو بخنه يے اوکړه هغۀ ته،

اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶﴾ قَالَ

يقينًا الله تعالىٰ بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔ اُووئيل دۀ

چه نسبت يے شيطان ته کړيدے۔

اوّل جواب دا دے چه نسبت شيطان ته مستلزم دګناه نه دے لکه چه فتىٰ دَ موسىٰ عليه السلام نسيان دَ ههٔ شيطان ته نسبت کړيدے۔ ليکن هرکله چه دَ داسے کار په نتيجه بانديے (چه تکليف دے) شيطان خوشحاليږى دَ دے وجے نه هغۀ ته نسبت کيږى۔

دوّيم جواب دا دے چه هٰذَا اشاره ده دغه مقتول ته او عَمَلِ لښکر ته ويئلے کيږى۔

درّيم جواب دا چه هرکله چه په دے کار کښ اذن دَ الله تعالىٰ دَ طرفه نه وؤ ځکه چه بغير دَ موکے وهلو نه دَ هغۀ دفع کول هم ممکن وؤ نو خلاف اولىٰ شو نو موسىٰ عليه السلام دَ خوفِ الٰهى دَ وجے نه شيطان ته نسبت اوکړو په منزله دَ ګناه يے اوګنړلو او دا دَ کاملو نيکانو عادت دے۔

مسئله:- روستو دَ پښيمانه کيدلو نه تضرع يے الله تعالىٰ ته اوکړله دَ بندګئ دَ اظهار په طريقے سره۔

بعضے خلقو دليل نيولے دے چه ظَلَمْتُ نَفْسِىْ فَاغْفِرْلِىْ دلالت کوى چه دا عمل دَ موسىٰ عليه السلام ګناه وؤ۔

جواب دا دے چه په قاعده دَ حسنات الابرار سيئات المقربين سره دغه عمل چه خلاف اولىٰ وؤ ګناه نه وؤ ليکن موسىٰ عليه السلام دَ هغے نه تعبير په ظلم سره اوکړو او دَ هغے يے مغفرت طلب کړو۔ لکه چه نبى صلى الله عليه وسلم ابوبکر صديق رضى الله عنه ته داسے دُعا خودلے وه اللهم انى ظلمت نفسى ظلما کثيرا فاغفرلى مغفرة (تر آخر پورے) لفظ دَ ظلم او طلب دَ مغفرت مستلزم دَګناه نه دے بلکه داسے الفاظ تعبّدًا استعماليږى۔

فَغَفَرَلَهٗ په طريقه دَ الهام (چه قبل دَ نبوت نه پيغمبرانو ته معصوميږى) ورته

رَبِّ بِمَآ اَنْعَمْتَ عَلَیَّ فَلَنْ اَكُوْنَ

اے ربه زما په وجه د انعام کولو ستا په ما باندے پس هیچرے به نشم زهٔ

ظَهِیْرًا لِّلْمُجْرِمِیْنَ ﴿۱۷﴾ فَاَصْبَحَ فِی

مددګار د مجرمانو ۔ نو صبا کړو موسیٰ علیه السلام په

الْمَدِیْنَةِ خَآئِفًا یَّتَرَقَّبُ فَاِذَا الَّذِی

ښار کښ ویره کوونکے انتظار یے کوو نو ناګهه هغه کس

اسْتَنْصَرَهٗ بِالْاَمْسِ یَسْتَصْرِخُهٗ ؕ قَالَ

چه مدد یے د ده نه غوښتلے وو پرون ورته چغے یے وهلے ده ته ۔ اُو ویل

معلومه شوه اوکه چرے د قتل ګناه مراد ده نو هغه بغیر د معافئ کولو د ورثه د مقتول او په غیر د دیت او قصاص نه نهٔ بخلے کیږی۔

ف :- په دے کښ دوه قولونه دی. اول قول دا دے چه دا جمله خبریه ده او وعده ده په آئنده زمانه کښ۔ پدیکښ بیا دوه توجیه دی۔

اوله توجیه، چه دا اسرائیلی سړے وجه مجرم وو د دهٔ امداد ما اوکړو لیکن آئنده د پاره د داسے مجرمانو امداد نه کوم۔

دویمه توجیه دا ده چه اوس خو د دے مظلوم په امداد کښ زما نه قتل اوکړے شو خو تا را باندے انعام د مغفرت اوکړو نو دا رنګ آئنده د پاره به هم د هیڅ مجرم امداد نه کووم بلکه د مظلوم مدد به کووم۔

دویم قول دا دے چه دا دُعا ده او انعام د مغفرت دے او نور نعمتونه یے وسیله اوګرځوله چه د دے په وسیله سره ما آئنده د پاره د مجرمانو د امداد نه بچ اوساتے. د عطاء رضی الله عنه نه روایت دے چه حلال نه دی چه څوک د ظالم سره مدد کوی او نه دے د هغهٔ د پاره کاتب (منشی) وی او نه دے د هغهٔ ملګرتیا کوی ۔ تفسیر قرطبی کښ تفصیل نقل کړے دے۔

لَهٗ مُوسٰىٓ اِنَّكَ لَغَوِيٌّ مُّبِيْنٌ (۱۸)
ده ته موسى عليه السلام يقينًا ته خامخا سركش بنكاره يې .
فَلَمَّآ اَنْ اَرَادَ اَنْ يَّبْطِشَ بِالَّذِيْ
پس هر كله چه قصد اوكړو چه را اونيسي هغه كس
هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا قَالَ يٰمُوسٰىٓ
چه هغه دشمن د دواړو دے اُوئيل هغه اے موسى
اَتُرِيْدُ اَنْ تَقْتُلَنِيْ كَمَا قَتَلْتَ
آيا ته غواړے چه ما قتل كړے لكه چه تا قتل كړے
نَفْسًا بِالْاَمْسِ اِنْ تُرِيْدُ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ
يو تن پرون ورځ نه غواړے ته مګر چه شے ته
جَبَّارًا فِى الْاَرْضِ وَمَا تُرِيْدُ اَنْ تَكُوْنَ
زورآوري كوونكے په دے ملك كښ او نه غواړے دا چه شے ته

ﺳ۱۸. دا سے خوف د صالحينو او انبياو د شان نه څه بعيده نه ده .
يَتَرَقَّبُ ، انتظارئي كوو چه اوس به زه د فرعون دربار كښ طلب كړے شم يا دا معنى چه حالات ئې معلومول .
يَسْتَصْرِخُهٗ ، په دے لفظ كښ اشاره ده چه د دے سړي فرياد د پروني سړي نه زيات وو ځكه چه هغه صرف د مدد د طلب د پاره آواز كړے وو او نن دے سړي چغې اووهلے .
قَالَ لَهٗ مُوسٰى ، راجح دا ده چه ضمير د لَهٗ راجع دے اسرائيلى ته .
لَغَوِيٌّ مُّبِيْنٌ ، د دے وجے نه چه ته بے طاقته ئې او بيا هم هره ورځ د زوراورو سره جنګونه كوے او د غوى امر نه منے يا د دے وجے نه چه ستا په وجه پرون زما د لاسه سړے قتل شو .
دويمه توجيه دا ده چه ضمير قبطي ظالم ته راجع دے .

مِنَ الْمُصْلِحِيْنَ ⑲ وَجَآءَ رَجُلٌ

| دَ | اصلاح کوونکو نه - | او | راغے | یو | ناریته |
|---|---|---|---|---|---|

مِّنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ يَسْعٰى قَالَ

| دَ | لرے طرف | دَ | ښار نه | منډے وهلے | اُوئیل یے |
|---|---|---|---|---|---|

يٰمُوْسٰٓى اِنَّ الْمَلَاَ يَاْتَمِرُوْنَ

| اے موسیٰ | یقیناً مشران دَ مِصر جرګه کوی | ستا په باره کښ |
|---|---|---|

بِكَ لِيَقْتُلُوْكَ فَاخْرُجْ اِنِّىْ

| چه | قتل کړی تا لره | نو اوځه - | یقیناً زهٔ |
|---|---|---|---|

لَكَ مِنَ النّٰصِحِيْنَ ⑳ فَخَرَجَ

| تا لره | دَ | خیر خواهو نه یم | نو | او وتلو |
|---|---|---|---|---|

سئله :- په یکښ دوه احتمالونه دی - اول احتمال دا چه بالذی عدو لهما نه مراد اسرائیلی دے چه پرونی قبطی او دَ ننی قبطی دواړو دښمن دے نو دے اسرائیلی ګمان اوکړو چه نن ما لره قتل کوی نو ډپرونی حال یے ښکاره کړو -

کَمَا قَتَلْتَ ، دَ دهٔ دَ طرف نه قول یقینی دے -

دویم احتمال دا دے چه مراد دَ دے نه قبطی دے چه دشمن دے دَ موسیٰ علیه السلام او دَ دے اسرائیلی ، او هغه په طریقه دَ ګمان سره اوئیل چه پرونے سړے په هم تا قتل کړے وی او موسیٰ پدے عمل کښ احتیاط اوکړو چه دَ ډکړ په ځائے نن بطش وکړو ځکه چه حدیث صحیح کښ دا شی چه مؤمن دَ یو سوری نه دوه کرته نه چیچلے کیږی -

جَبَّارًا ، هغه خوګ دے چه دَ ځان دَ پاسه دَ هیچا قانون نه منی -

مِنَ الْمُصْلِحِيْنَ ، اول صفت ثبوتی او دویم صفت سلبی ذکر کړے دے دَ پاره دَ ډیرے مبالغے کولو -

سئله :- هر کله چه دَ دغه قبطی بقین راغے چه پرون قتل موسیٰ علیه السلام

مِنْهَا خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ قَالَ رَبِّ

| دَ هغې نه وېره کوونکے | انتظار يې کوو | اُووئيل دَه اے ربه زما |
|---|---|---|

نَجِّنِىْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢١﴾

| بچ کړے ما لره | دَ | قوم | دَ | ظالمانو نه . |
|---|---|---|---|---|

کړے دے نو خبرې فرعون ته اورسوې نو دَ هغه ارکان شورٰی دَموسٰی علیه السلام دَ قتل په باره کښ اتفاق فیصله اوکړه هغه خبره مشهوره شوه نو رجل مؤمن رچه نوم یې حزقیل یا شمعون یا شمعان وو) موسٰی علیه السلام ته په تادئ سره خبر راورو او هغه ته یې دَ خیر مشوره ورکړه . مسلمان باندے دَ بل مسلمان حفاظت دَ مال او دَ دم واجب دے او دیته نصیحت وئیلے کیږی . او دغے په سورة یٰس سلا کښ دی او وجه دَ فرق هلته بیا نیږی .

سلا . عمل کول په خبر دَ یو شخص عادل باندے جائز دی او هر کله چه ورسره قرینے دَ صدق موجود وی بیا خو په هغې باندے عمل کول ضروری وی . دلته هم موسٰی علیه السلام ته معلومه شوه چه دا خبر خورشو او دا خلق به ما وژنی او خبر دَ دغه شخص صادق هم ورسره ملګرے شو نو موسٰی علیه السلام ته دے وجے نه فی الحال عمل اوکړو او خوف یې څکه کوو چه خبر رشتینے وو . او دَ عمل شروع کولو او سفر کولو سره دُعا هم پکار دَه . نو هغه دُعا اوغوښتله رب نجنی من القوم الظلمین . او دا هجرت دَ موسٰی علیه السلام دَ ظالم قوم نه دَ پاره دَ حفاظت دَ ځان دے او دا هم سنت دَ انبیاء علیهم السلام دے .

وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ قَالَ

او هر کله چه مخ ئې کړو طرف د مدين ته اوئيل ده

عَسٰى رَبِّيْٓ اَنْ يَّهْدِيَنِيْ سَوَآءَ

اميد دے چه رب زما به روان کړي ما لره په برابر

السَّبِيْلِ ﴿۲۲﴾ وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ

لار (د مدين) - او هر کله چه اورسيدو اوبو (کوهي) د مدين ته

وَجَدَ عَلَيْهِ اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ

او موندله ده د هغې په خوا کښې يوه ډله د خلقو نه

سـ۲۲:- خلاصه :- د دے آيت نه دريم مقام دے تر سـ۲۹ پورے په دے کښې تکاليف په موسیٰ عليه السلام باندے په سفر د مدين کښې بغير د توښے نه او اوږے کيدل د هغه او سره د دينه د کمزورو خلقو سره امداد کول، بيا خپل ځان مزدور کول، دا ټول ذکر دي.- او ورسره نعمت هم ذکر دے نکاح د يو رجلِ صالح د لور سره او سبب د حلال رزق موندل دی.-

تفسير:- پدے آيت سـ۲۲ کښې د سفر د موسیٰ عليه السلام ابتداء ده او اسباب د سفر ورسره نشته او لار د مدين ورته هم نه ده معلومه او مسافت هم اته ورځے وو ليکن صرف په توکل د الله تعالیٰ باندے روان شويدے او دا اعلیٰ درجه توکل دے - موسیٰ عليه السلام ته معلومه وه چه مدين د فرعون د تسلط نه بهر دے - بل دا چه مدين د ابراهيم عليه السلام د اولاد نه وو د هغه په نوم دا ښار جوړ شوے وو. د هغه اولاد پکښې اوسيدل نو موسیٰ عليه السلام د نسبي اشتراک او د نبوت د کورنۍ په وجه سره د دے ښار سفر غوره کړو-

اَنْ يَّهْدِيَنِيْ ، مخکښې آيت کښې دُعا د نجات وه او پدے کښې دُعا د مقصد حاصلولو ده - او عسٰی وئيلے دے د وجے د ډير توکل کولو نه په الله تعالیٰ باندے-

يَسْقُوْنَ ۚ وَوَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمُ امْرَاَتَيْنِ

او په کول يې څاروي او ومندلے يئے دَ هغوي بېرته دوه زنانه

تَذُوْدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ؕ قَالَتَا

چه منع کول يې څاروي ڈاو بوله، اُوئيل ده څه کار دے ستاسو اُوئيل دوي

لَا نَسْقِيْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ ٚ وَاَبُوْنَا

او به کول نه کوو موږ ترهغې پورے چه واپس لاړشي شپونکي او پلار زمونږ

شَيْخٌ كَبِيْرٌ ﴿۲۳﴾ فَسَقٰى لَهُمَا ثُمَّ تَوَلّٰٓى

بوډا زوړ دے۔ نو او به يې کړل دوي لره (څاروي) بيا په ډډه شو

۲۳۔ وَرَدَ، ورود په معنیٰ دَ وصول راځي او کله په معنیٰ دَ دخول راځي دلته اوله معنیٰ مراد ده۔

مَآءَ مَدْيَنَ، دَ مدين نه بهر کوهئ دَ او بو وۀ چه په هغې باندے لويه بوقه وه چه هغه په لس کسانو راويستلے شوه او دَ هغې نه به يې خپل څاروي او به کول۔

وَوَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمُ امْرَاَتَيْنِ تَذُوْدٰنِ، يعني موسیٰ عليه السلام تعجب اوکړو چه نارينه خپل څاروي او به کوي او واپس ځي او زنانه په انتظار کښې حصارے دي بلکه تکليف هم ورکوي چه څاروي او بو ته زور کوي او دوي يې منع کوي۔ او دا حال دَ دغه خلقو په بے غيرتئ يا بے مروتئ باندے دليل وۀ او دا ظلم وۀ په زنانو باندے، دَ دے وجے نه موسیٰ عليه السلام دَ هغوي نه په مَا خَطْبُكُمَا سره تپوس اوکړو ځکه چه په دے لفظ سره تپوس کول خاص دي په ډير مصيبت زده يا په لوے کار کوونکو پورے۔ او په دے کښې مقصد دَ هغه دا وۀ چه دَ دے مظلومانو مدد اوکړي۔

دَ دوي دَ جواب خلاصه دا ده چه دا خلق موږ ته او به نه راکوي خو چه دَ دوي نه روستو کومے او به پاتے شي په هغې باندے موږ څاروي او به کوو او دَ دے قوم دَ مخالفت دَ وجے نه څوک موږ سره مزدوري يا امداد نه

إِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ إِنِّي لِمَا أَنزَلْتَ

سوري ته نو اُوئیل یې اے ربه زما یقینًا زۀ هغې څه ته چه ته یې رالیږے

إِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيرٌ ﴿۲۴﴾ فَجَاءَتْهُ

ماته د خوراک نه محتاج یم. پس راغله دۀ ته

إِحْدَاهُمَا تَمْشِي عَلَى اسْتِحْيَاءٍ ز

یوه زنانه د هغه دوارو نه پیاده راتلله په ډیره حیاء باندے

قَالَتْ إِنَّ أَبِي يَدْعُوكَ لِيَجْزِيَكَ

اُوئیل هغې یقینًا زما پلار رابلی تا لره دے د پاره چه بدله درکړی تا ته

أَجْرَ مَا سَقَيْتَ لَنَا ۚ فَلَمَّا جَاءَهُ

بدله د هغې چه تا اوبه کول کړیدی زمونږ د پاره، نو هر کله چه راغے هغۀ ته

کوی او پلار زمونږ بوډا کمزورے دے نو مونږ دا څاروی په مجبورئ باندے صحراء ته راولو.

د آبُونَا شَیْخٌ کَبِیْرٌ، پدے سره یې د اعتراض جواب اوکړو که څوک اوائي چه پیغمبر په خپلو لونړو باندے ولے څاروی سره وی.

۲۴:۔ هر کله چه د مظلومانو سره امداد کول د موسیٰ علیه السلام عادت دے نو د دوی سره یې هم امداد اوکړو۔ په موافق د روایت د مفسرینو سره په هغه کوهی باندے بوقه وه د لس کسانو د طاقت مناسب نو موسیٰ علیه السلام هغۀ په یواځے راویستله او د دے زنانو څاروی یې اوبه کړل او دوی ته یې د خپلے لوګے هیڅ ذکر اونکړو ځکه چه کاملان خلق خپل حاجتونه ظاهری هم مخلوق ته نه ښکاره کوی۔

فَقِیْرٌ، مراد دا دے چه زۀ اوګے یم او اے ربه ستا در نه محتاج یم او دا هم تعریض دے په دُعا سره صراحةً سوال هم نه دے او دا ادب دے په دعاګانو د انبیاؤ کښې.

وَقَصَّ عَلَيْهِ الْقَصَصَ قَالَ لَا تَخَفْ

او بیان ئې کړو په هغه حالت پوره | اوئیل هغهٔ مه ویریږه

نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۵﴾

نجات د اوموندلو ذ قوم ظالمانو نه۔

ف ۲۵:- هرکله چه دا زنانه دعام عادت نه مخکښ کورته واپس شوے نو پلار ترینه تپوس اوکړو نو دوی دغه حال تفصیلاً ذکر کړو نو شعیب علیه السلام رسچه ذ دوی پلار وؤ په فراست سره معلومه کړه چه دا شخص ذ مدین اوسیدونکو نه نهٔ دے، او ذکمزورو سره مدد کوونکے شخص دے ذدے وجے نه یوه لورئې ورپسے ذپاره ذدعوت ورکولو رااولیږله۔

إِحْدٰىهُمَا، هرکله چه خاروی دیر وؤ او ذکلی نه لرے بوتلل پکار وی نو ذ هغے ذپاره دواړه زنانه ورتللے او هرکله چه موسی علیه السلام ته دعوت ورکول آسان او نزدے وؤ نو یوه زنانه ورپسے ئې اولیږله۔ معلومه شوه چه نیکان خلق ذ زنانو نه بغیر ذ سخت ضرورت نه کار نه اخلی او نه ئې بلا ضرورت بهر پریږدی۔

عَلَى اسْتِحْيَآءٍ، یعنی خپل بدن ئې پټ ساتلے دے او په رفتار کښ ئې ناز او کرشمے نه کولے لکه چه ذبے حیا زنانو عادت دے۔

عَلٰى، لفظ ذ تمکن ذپاره دے یعنی په حیا بانذے کلکه وه۔

لِيَجْزِيَكَ اَجْرَ مَا سَقَيْتَ لَنَا، دا جمله ذدعوت ذ قبلولو ذ تاکید ذپاره ده لیکن موسی علیه السلام پدے اراده سره دعوت نه دے قبول کړے چه اجرت واخلی ځکه چه مفسر قرطبی لیکلی دی چه شعیب علیه السلام هغه ته طعام پیش کړو نو هغه انکار اوکړو اوئیل ئې مونږ داسے کورنئ نه یو چه خپل دین په ډکه زمکه سرو زرو سره هم نه خرڅوؤ۔ هغه ورته اوئیل دا اجرت ذ سقی نه دے بلکه عادت زمونږه میلمستیا ورکول دی نو هله موسی علیه السلام خوراک اوکړو

الظّٰلِمِيْنَ، ذدے نه مراد فرعونیان دی چه ذ هغوی حکومت په مدین کښ نه وؤ۔

قَالَتْ اِحْدٰىهُمَا يٰٓاَبَتِ اسْتَاْجِرْهُ ؗ

اوئیل یوے زنانه دَ هغے دواړو نه اے پلاره زما په مزدورئ سره ونیسه دۀ لره

اِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَاْجَرْتَ الْقَوِيُّ

یقینًا غوره دَ هغه چا نه چه تۀ ئے په مزدورئ سره نیسې دا طاقت ور

الْاَمِيْنُ ﴿۲۶﴾ قَالَ اِنِّيْٓ اُرِيْدُ اَنْ اُنْكِحَكَ

امانتدار دے. اُوئیل هغۀ یقینًا زۀ غواړم چه په نکاح سره درکړم

اِحْدَى ابْنَتَيَّ هٰتَيْنِ عَلٰٓى

تاته یوه دَ دے دوو لوڼو نه په دے شرط

اَنْ تَاْجُرَنِيْ ثَمٰنِيَ حِجَجٍ ۚ فَاِنْ اَتْمَمْتَ

چه اخلے به زما نه بدله دَ کارکولو اته کاله نو که تا پوره کړل

عَشْرًا فَمِنْ عِنْدِكَ ۚ وَمَآ اُرِيْدُ

لس کاله نو ستا دَ طرفنه به وی (احسان) او نه غواړم

ملا۲۶ :- دا دلیل دے چه دوی تراوسه پورے مناسب مزدور نه وۀ موندلے او دلیل دے چه عقدِ اجاره په ټولو دینونو کښ جائز عقد دے۔

الْقَوِيُّ الْاَمِيْنُ ، اشاره ده چه مزدور کښ دوه صفتونه پکار دی اول طاقت لرل دَ هغه کار ، دویم امانت داری - دے زنانو په موسٰی علیه السلام کښ دا دواړه صفتونه لیدلے وۀ قوت دا وۀ چه دَ لس کسانو دَ طاقت بوقه دۀ یواځے رادیستلے وه - امانت دا وۀ چه موسٰی علیه السلام هغه زنانه ته وئیلي وۀ زکومه چه دَ دعوت دَپاره راغلے وه او دواړه واپس کورته راتلل) چه زما نه روستو راځه هسے نه چه په رفتار کښ ستا جامه دَ پښو نه اوچته شي او زما نظر پرے اولګی -

أَنْ أَشُقَّ عَلَيْكَ ۚ سَتَجِدُنِيْٓ إِنْ شَآءَ

چه دیر کړاؤ کیدم په تا باندې، زر ده او به موږې ما لړ که چرې او غواړي

اللّٰهُ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۲۷﴾ قَالَ ذٰلِكَ

الله تعالیٰ دَ نیکانو نه - اووئیل موسیٰ علیه السلام دا فیصله ده

۲۷:۔ دا دلیل دے چه صالحان خلق پخپله لونړه خپلې دَ نکاح دَ پاره پیش کوی هر کله چه صالح شخص اُو یني۔

اُرِيْدُ ، دا ئې دَ دے وجې نه فرمائیلې دی چه دا عرض دَ نکاح دے عقد دَ نکاح نه دے ځکه چه عقد دَ نکاح کښې ایجاب قبول په صیغه دَ ماضي سره ضروری وی بل دا چه په عقد کښې تعیین دَ یو ښځې ضروري دے او دلته ئې تعیین نه دے کړے۔

عَلٰٓى أَنْ تَأْجُرَنِيْ ، عَلٰى دَ عوض دَ پاره دے یا دَ شرط دَ پاره دے که دَ عوض دَ پاره وی نو په دے باندے اعتراض دا دے چه مزدوری دَ موسیٰ علیه السلام دَ شعیب علیه السلام سره څه رنګ مهر کیدے شي دَ پاره دَ لور دَ هغې ځکه چه دَ مهر حقدار پلار نه دے بلکه منکوحه ده، جواب دا دے چه دا دَ هغوی په دین کښې جائز ده لیکن دا قول ثابت نه دے - دویم جواب دا دے چه دا مطلب هله کیدے شي چه تَأْجُرَنِيْ په معنیٰ دَ عوض راکولو وی لیکن دا په معنیٰ دَ خستلو دَ اجرت دے دویمه توجیه دا ده چه عَلٰى دَ پاره دَ شرط دے او دا شرط دَ نکاح سره مناسب او موافق دے او کوم شرط چه داسے وی نو دَ نکاح سره په شرط لګولو کښې نقصان او فساد نه راولی - دَ دے شرط مطلب دا دے چه ته په زما سره کار کوے خو دَ هغې په زما نه اجرت اخلې په عوض دَ کار کولو او دَ دے اجرت نه په ستا دَ ښځې مهر او نفقه پوره کیږی۔

تَأْجُرَنِيْ ، معنیٰ دا ده چه زما نه به اجرت اخلې په عوض دَ کار کولو زما سره - او اجارے دَ پاره مدت مقرر کول ضروري دی نو دلته هم اته کاله مدت ضروریه ده او لس کاله دَ موسیٰ علیه السلام په رضا باندے موقوف دی۔

بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ ۭ اَيَّمَا الْاَجَلَيْنِ

په مینځ زما او مینځ ستا کښې، هر یو د دواړو نیټو نه

قَضَيْتُ فَلَا عُدْوَانَ عَلَيَّ ۭ

چه پوره کړو ما نو نشته زیاتے کول په ما باندے۔

وَاللّٰهُ عَلٰي مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ ؀۲۸

او الله تعالیٰ په هغه خبرو چه موږ وایو ذمه دار دے۔

فَلَمَّا قَضٰى مُوْسَى الْاَجَلَ وَسَارَ

پس هر کله چه پوره کړه موسیٰ نیټه او روان ئے کړه

بِاَهْلِهٖٓ اٰنَسَ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ

کورنۍ خپله او لیدلو دهٔ د طرف د طور نه

نَارًا ۚ قَالَ لِاَهْلِهِ امْكُثُوْٓا اِنِّىْٓ

اور لره اُوئیل هغهٔ کور والو ته حصار شئ یقینًا ما۔

س۲۸:- دا قبولیت د عقد دے د طرف د موسیٰ علیه السلام نه۔
او اَیَّمَا الْاَجَلَیْنِ، کښې اشاره ده چه عقد دے په اتو کلونو سره او لس پوره کول په خوښه باندے بناء دی۔
فَلَا عُدْوَانَ، تجاوز کول په غیر لازم څیز سره لازم کول یعنی دواړه حالتونو کښې به زمانه نوره زیاتی مدت مزدوری کول نه غواړے۔
وَاللّٰهُ عَلٰی مَا نَقُوْلُ وَکِیْلٌ، قول د موسیٰ علیه السلام یا قول د شعیب علیه السلام دے او دے دواړو په شهادت او وکالت د الله تعالیٰ باندے اکتفاء کړیده او دا د کامل صالحانو مقام دے۔

آنَسْتُ نَارًا لَّعَلِّيْٓ اٰتِيْكُمْ مِّنْهَا
لیدلے دے اور کیدیشی چه راوړم تاسو ته د هغې نه :
بِخَبَرٍ اَوْ جَذْوَةٍ مِّنَ النَّارِ
څۀ خبر د لارے یا سکروټه د اور نه
لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ ﴿۲۹﴾ فَلَمَّآ اَتٰىهَا
دے د پاره چه تاوده شئ تاسو ۔ پس هرکله چه راغے ورته

۲۹: خلاصه:- د دے آیت نه تر ۳۵ پورے څلورم مقام دے په یکښې نبوت د موسیٰ علیه السلام، او دوه معجزات اولیږل فرعونیانو ته او قبولیت د دُعا د موسیٰ علیه السلام ذکر دی او دا د الله تعالیٰ د نعمتونو نه دی سره د ابتلاء نه۔
تفسیر:- اَلْاَجَلَ، دا ابن عباس رضی الله عنهما نه د بخاری روایت دے چه موسیٰ علیه السلام لس کاله تیر کړل ځکه چه رسول د الله تعالیٰ چه څه وائي نو هغه کوی۔
وَسَارَ بِاَهْلِهٖٓ، د خاوند اختیار دے چه خپله کوروالا بغیر د گناه نه هرچرته بوځي نو هغه به ئے تابع وی۔
جَذْوَةٍ، سکروټه د اور ده او هرکله چه د لرګي په سر کښې وی نو قبس ورته وئیلے کیږی۔
لَعَلِّيْ، په سورة طٰهٰ او په دے سورت کښې ئے په لَعَلَّ سره ذکر کړیدے او دا حقیقت دے ځکه چه خبر یا اور راوړل یقیناً معلوم نه دی بلکه په طریقه د امید سره دی۔ او سورة النمل کښې سَاٰتِيْكُمْ ذکر کړے دے په طور د مضبوط امید سره ځکه چه سورة النمل کښې حکمتونه ذکر کول مقصد وو او حکمت په تاکید سره ذکر کول پکار دی۔ او دا رنګ په سین سره ذکر کولو کښې اشاره وه زر راوړلو ته۔

نُودِیَ مِنْ شَاطِیءِ الْوَادِ الْاَیْمَنِ

آواز ورکړی شو دَ غاړے دَ کنډے ښی طرفته

فِی الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَکَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ

په زمکه برکتی کښ دَ اونے دَ طرفنه

اَنْ یّٰمُوْسٰۤی اِنِّیْۤ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ

چه اے موسیٰ یقیناً زهٔ الله یم رب

الْعٰلَمِیْنَ ﴿۳۰﴾ وَ اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ؕ

دَ عالمینو - او اوغورځوه همسا خپله ،

ف ۳۰ :- اَلْاَیْمَنِ صفت دَ شاطیء دے یعنی دَ وادئ ښے طرف په نسبت دَ یمین دَ موسیٰ علیه السلام سره او ښی طرف کښ خیر او برکت وی۔
مِنَ الشَّجَرَةِ ، دا بدل دے دَ شَاطِیء نه او معنیٰ داده چه طرف دَ شجرے نه آواز راغے دا مراد نه دے چه دَ شجرے نه آواز راغے چه زهٔ الله یم لکه چه حلولیات وائی چه الله تعالیٰ بدعه او نه کښ حلول کړے دے نو هغے اوئیل چه زهٔ الله یم ، (نعوذ بالله) او دوی وائی چه الله تعالیٰ هرکله چه اوغواړی نو هر قسم مخلوق کښ دننه حلول کوی او هغه مخلوق بیا دعوی دَ الوهیت کولے شی لیکن دا عقیده باطله ده او کفرِ صریح دے ځکه چه دَ دعوی الوهیت او ربوبیت دَ مخلوق دَ طرف نه دروازه کولاویږی - او سورة انبیاء ۲۹ کښ دی ۔ وَمَنْ یَّقُلْ مِنْهُمْ اِنِّیْۤ اِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ فَذٰلِكَ نَجْزِیْهِ جَهَنَّمَ ۔
یعنی که دا قول څوک قصداً اکوی او که بے اختیاره کوی دوارو ته شامل دے۔
فائده :- موسیٰ علیه السلام ته الله تعالیٰ چه کلام واؤرولو نو دَ هغه یقین راغے چه دَ کلام تدا کوونکے الله تعالیٰ دے - او دا کلام دَ الله تعالیٰ دے او دا صریح دلیل دے چه اوریدلے شوے کلام دَ الله تعالیٰ وؤ۔

فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ

پس هر کله چه هغه اولیدله چه زر زر خوځیدله ګویا که دا سرے مار دے

وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّلَمْ يُعَقِّبْ ط يٰمُوْسٰى

او ګرځیدو شاګوټګے او شا ته یې نه کتل راوتیل مونږ موسٰی

اَقْبِلْ وَلَا تَخَفْ قف اِنَّكَ مِنَ الْاٰمِنِيْنَ ﴿۳۱﴾

مخامخ شه او مه ویریږه ، یقینًا ته د امن والا ته یې ۔

اُسْلُكْ يَدَكَ فِىْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ

ورننه باسه لاس خپل په ګریبان خپل کښ را اوځی به

بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ ز وَّاضْمُمْ

سپین بغیر د څه نقصان نه او جوخت کړه

اِلَيْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ فَذٰنِكَ

ځان ته متی خپلے د وجے د هیبت نه پس دا دوه یقینی

بُرْهَانٰنِ مِنْ رَّبِّكَ اِلٰى فِرْعَوْنَ

دلیلونه دی ستا له طرفه د رب ستا نه فرعون ته

سلا :۔ دا سے سورة النمل کښ تیر شوی دی او دا اوله معجزه ده او هر کله چه په دے سورت کښ یې مکان د نداء په وضاحت سره بیان کړو نو اَقْبِلْ یې په دوجه زیات راوړو چه دغه مکان ته مخامخ شه ۔ او هر کله چه سورة النمل کښ حکمتونه بیانول مقصد وو نو د دے وجے نه یې لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُوْنَ ذکر کړو چه په هغے کښ حکمتونو ته اشاره ده ۔

وَمَلَإِيْهٖۤ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۳۲﴾

او مشرانو دَ قوم دَ هغهٔ ته، یقینًا دوی وُو قوم نافرمان۔

قَالَ رَبِّ اِنِّيْ قَتَلْتُ مِنْهُمْ

اُوئیل هغه اے ربه زما یقینًا ما وژلے دے دَ دوی نه

نَفْسًا فَاَخَافُ اَنْ يَّقْتُلُوْنِ ﴿۳۳﴾

یو تن نو ویریږم چه دوی به ما لره قتل کړی۔

۳۲:- دا دویمه معجزه ده۔ هرکله چه په دے سورت کښ مقصد ابتدائی حالات ذکر کول دی نو په دے معجزه کښ اول حال داخلول دی چه په اسلک کښ مراد دے روستو بیا پیوست کول دَ لاس دی دَ جناح سره کوم چه په سورة طٰه ۲۲ کښ ذکر دی۔

وَاضْمُمْ اِلَيْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ، دَ دے دوه مطلبه دی اول دا چه هرکله دَ رنړا دَ لاس نه دربانده هیبت راشی نو لاس واپس گریوان کښ داخل کړه نو رنړا به زائله شی نو دا تتمه شوه دَ دویمے معجزے۔

دویم مطلب دا دے چه هرکله په تا بانده دَ مار دَ وجے یا دَ فرعون دَ وجے یا دَ بلے وجے نه هیبت اوویره راځی نو دَ هغے دَ لرے کولو دَ پاره دا تدبیر کوه چه لاس له په سینه بانده په یو ځائے کیږه نو هیبت به درنه زائله شی۔ او دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه روستو دَ موسٰی علیه السلام نه دا تدبیر هرچا دَ پاره فائده مند دے۔

بُرْهَانٰنِ، دا دلیل دے چه معجزات یقینی دلیلونه دی په توحید او رسالت بانده۔ او دا دلیل دے چه وَاضْمُمْ اِلَيْكَ مستقله معجزه (دریمه) نه ده۔

فٰسِقِيْنَ، فسق په اعتبار دَ عقیدے سره مراد دے۔

۳۳:- دا اوله دُعا ده دَ موسٰی علیه السلام یعنی زهٔ دَ هغوی مجرم یم په سبب دَ قتل کولو دَ قبطی سره۔ نو ته ما دَ هغوی نه بچ اوساتے۔

وَ اَخِیْ هٰرُوْنُ هُوَ اَفْصَحُ مِنِّیْ

او ورور زما هارون هغه ډیر صفا دے زما نه

لِسَانًا فَاَرْسِلْهُ مَعِیَ رِدْاً یُّصَدِّقُنِیْۤ ز

په ژبه کښ پس اولیږه هغه زما سره امدادی چه تصدیق کوی زما

اِنِّیْۤ اَخَافُ اَنْ یُّكَذِّبُوْنِ ﴿۳۴﴾ قَالَ

یقینًا زهٔ ویریږم چه دوی به ماته دروغژن اووائی۔ اُوئیل الله تعالیٰ

سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِاَخِیْكَ وَ نَجْعَلُ

زر ده چه کلک به کړم مټ ستا په ورور ستا سره او درِبه کړم

لَكُمَا سُلْطٰنًا فَلَا یَصِلُوْنَ اِلَیْكُمَا ۛۚ

تاسو دواړو لره رعب (غلبه) نو رسیدل به نشی کولے تاسو دواړو ته (للارشی)

بِاٰیٰتِنَاۤ ۛۚ اَنْتُمَا وَ مَنِ اتَّبَعَكُمَا الْغٰلِبُوْنَ ﴿۳۵﴾

په معجزاتو زما سره، تاسو دواړه او څوک چه ستاسو تابعدار دی زور آور یئ۔

۳۴:۔ دا دویمه دُعا ده په باره د ورور کښ د هغې تفصیل سورة طٰهٰ او سورة الشعراء کښ تیر شویدے۔

۳۵:۔ دا قبولیت د دواړو دُعاګانو دے په غیر ترتیب سره یعنی د دویمې دُعا استجابت اول ذکر شو او د اولے دُعا قبولیت ئے پدے قول سره ذکر کړو

وَ نَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطٰنًا، او درِبه کړم تاسو دواړو ته رُعب (دبدبه) یعنی تاسو له به داسے رعب درکړم چه فرعونیان به تاسو نه ویریږی تاسو ته به هیڅ ضرر نشی رسولے۔

بِاٰیٰتِنَاۤ، یعنی اذهبا مقدر دے، لاړشئ دواړه په معجزاتو سره۔

اَنْتُمَا وَ مَنِ الخ دا بشارت او وعده ده د طرف د الله تعالیٰ نه دپاره د تسلی۔

فَلَمَّا جَآءَهُم مُّوسٰى بِاٰيٰتِنَا بَيِّنٰتٍ

پس هر كله چه راغے دوى ته موسىٰ عليه السلام په معجزاتو زمونږ ښكاره

قَالُوْا مَا هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًى

اُوئيل دوى نه دے دا مگر جادو دے ذخان نه جوړ كړ شوے

وَّمَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِىْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ ﴿۳۶﴾

او نه دى آوريدلى مونږ دا په مشرانو زمونږ ړومبنو كښ۔

وَقَالَ مُوسٰى رَبِّىْٓ اَعْلَمُ بِمَنْ جَآءَ

او اُوئيل موسىٰ عليه السلام رب زما ښه پوهه دے په هغه چا چه راوړى

بِالْهُدٰى مِنْ عِنْدِهٖ وَمَنْ تَكُوْنُ لَهٗ

هدايت د طرف د هغهٔ نه او په هغه چا چه وى هغهٔ لره

عَاقِبَةُ الدَّارِ ۭ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۳۷﴾

انجام خوره د كور (روستنى)، يقيناً نه شى بچ كيدلے ظالمان۔

س۳۶:- خلاصه:- د دے آيت نه تر س۴۲ پورے پنځم مقام دے په دے كښ امتحان دے په موسىٰ عليه السلام باندے په دعوت كولو فرعون ته او د هغوى كبر ونه او تلبيس اچول په قوم باندے او تازليدل په هغوى باندے د عذاب او لعنت په دنيا او آخرت كښ ذكر دى او دا نعمتونه دى په موسىٰ عليه السلام او د هغهٔ په منكرو باندے سره د نعمت د انزال تورات نه۔

تفسير:- په دے آيت س۳۶ كښ دعوت د موسىٰ عليه السلام په اختصار سره ذكر دے او تكذيب د فرعونيانو په دوه طريقو سره، اول تكذيب د معجزاتو چه دا سحر دے دويم تكذيب د توحيد چه دا د مشرانو نه خلاف دے ځكه چه مراد د هٰذَا نه بيان د توحيد دے۔

س۳۷:- هر كله چه دوى په ضمن د تكذيب كښ موسىٰ عليه السلام ته د گمراهۍ نسبت اوكړو نو موسىٰ عليه السلام د هغے جواب اوكړو په دے آيت كښ په تفويض (سپارل) سره علم د الله تعالىٰ ته۔

وَقَالَ فِرْعَوْنُ يٰۤاَيُّهَا الْمَلَاُ مَا

او وئیل فرعون اے مشرانو د قوم نه

عَلِمْتُ لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرِيْ ج

پیژنم زه ستاسو د پاره هیڅ حقدار د بندګۍ او د طاعت سوا زما نه

فَاَوْقِدْ لِيْ يٰهَامٰنُ عَلَى الطِّيْنِ

پس بل کړه اور زما د پاره اے هامان په خټو باندے

فَاجْعَلْ لِّيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْۤ اَطَّلِعُ

پس جوړه کړه ما لره بنګله کیدے شي چه بره او خبر شم

اِلٰۤى اِلٰهِ مُوْسٰى لا وَاِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ

په الله د موسیٰ پسے او یقیناً زه ګمان کوم په دهٔ باندے

مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿۳۸﴾ وَاسْتَكْبَرَ هُوَ

د دروغژنو نه ۔ او لویي او کړه دهٔ

---

اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ ، کښ اجمالاً اشاره ده چه فرعونیان به تباه کیږی په عذاب سره نو معلومه شوه چه دوی ګمراهان دی۔

سـ۳۸ :۔ دا دعوٰی د فرعون ده د حصر د الوهیت په خپل ځان کښ مراد د دے دا دے چه بغیر زما د اجازت نه بل الٰه نشته او زهٔ هم الٰه یم لکه دلالت کوی پدے باندے سورة اعراف سـ۱۲۷۔ او انکار د بل الٰه نه او په الٰه د موسیٰ پسے بره ختل دا ټول تلبیس د فرعون دے په خپل قوم باندے ۔ د پاره د دے چه قوم جاهلان دی او زما تابعداری کوی ۔ لکه پدے قول کښ فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ فَاَطَاعُوْهُ (زخرف سـ۵۴)۔

فَاَوْقِدْ لِيْ يٰهَامٰنُ عَلَى الطِّيْنِ ، مراد د دینه پخے خښتے جوړول دی او دا طریقه ایجاد د فرعون دے بیا صرح (مانړۍ) جوړول دی او بیا د هغې نه پړے کیدل وغیره دا قصے صحیح ثابت نه دی۔ وَاِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ ، پدیکښ اشاره کوی چه مانړۍ جوړولو ته ضرورت نشته ځکه چه موسیٰ دروغژن دے۔

وَجُنُوْدُهٗ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ
او لښکرو د دهٔ په ملک کښې بغیر د حق نه

وَظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ اِلَيْنَا لَا يُرْجَعُوْنَ ﴿٣٩﴾
او گمان اوکړو دوی چه یقیناً دوی به موږ ته نشي راګرځیدلے۔

فَاَخَذْنٰهُ وَجُنُوْدَهٗ فَنَبَذْنٰهُمْ
نو اونیوو موږ دهٔ لره او لښکرے د دهٔ نو گذار کړل موږ دوی لره

فِي الْيَمِّ ۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ
په دریاب کښې نو اوګوره چه څه رنګ شو انجام

الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٠﴾ وَجَعَلْنٰهُمْ اَئِمَّةً يَّدْعُوْنَ
د ظالمانو۔ او اوګرځول موږ دوی لره پیشوایان چه بلنه کوی

اِلَى النَّارِ ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ لَا
اور ته او په ورځ د قیامت به

يُنْصَرُوْنَ ﴿٤١﴾ وَاَتْبَعْنٰهُمْ فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا
د دوی مدد نشي کولے۔ او را اولیږلو موږ په دوی پسے په دے دنیا کښې

٣٩:۔ د دوی دوه مرضونه ئے ذکر کړل۔ اول استکبار په باطل یعني شرک او کفر۔ دویم انکار د بعث بعد الموت نه۔
وَظَنُّوْٓا ، مراد د ظن نه د دوی عقیده ده۔
٤٠:۔ دا صریح نص دے په ډوبولو د فرعون او غرق کولو د هغهٔ باندے او فَانْظُرْ كَيْفَ آية کښې اشاره ده چه دا لوے عبرت دے ظالمانو ته۔
٤١:۔ اوله جمله کښې د دوی دنیوی حال ذکر شوے دے یعني دوی د کفر او د شرک دعوت کوونکی وو، معلومه شوه لفظ امام د ګمراهئ په اقتداء کښې هم استعمالیږی۔

لَعْنَةً ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ هُمْ مِّنَ

لعنت | او په ورځ د قیامت به | دوی | د

الْمَقْبُوحِينَ ۝٤٢ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوسَى

بد وټیلو شوو نه وی. | او یقینًا ورکړے وو موږ موسٰی علیه السلام ته

الْكِتٰبَ مِنْ بَعْدِ مَآ أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ

کتاب | روستو د هغے نه چه هلاک کړلے موږ پیړۍ

الْأُولٰى بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ وَهُدًى

مخکنۍ دپاره د پوهے (د زړونو) خلقو لره | او دپاره د هدایت

وَرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ۝٤٣

او د رحمت | د دے دپاره چه دوی | نصیحت واخلی.

۴۲:- په دے کښ ذکر د عذاب دنیوی او اخروی دواړو دے.
الْمَقْبُوحِينَ، هلاک کړے شوے یا بد شکلی یا لرے کړے شوے
د رحمت د الله تعالیٰ نه.
أَتْبَعْنٰهُمْ، په دے کښ معنیٰ د همیش والی ده.
۴۳:- د قوم فرعون اهلاک لوے انعام وو او س بل انعام ذکر
کوی چه هغه کتاب تورات دے موصوف په درے لوے صفتونو
سره.
مِنْ بَعْدِ مَآ أَهْلَكْنَا، ابن کثیر لیکلی دی چه دا دلیل دے چه د فرعون
نه روستو الله تعالیٰ په یو امت باندے استیصالی (د ویخه ویستونکے)
عذاب نه دے رالیږلے. هاں یو یو کلی باندے عذاب راغلے دے
او راځی.
بَصَآئِرَ، کښ اشاره ده دلیلونو او مثالونو وغیره ته.
وَهُدًى، کښ اشاره ده عقیدے او اعمالو ته او رَحْمَةً کښ اشاره
ده بشارتونو او ثوابونو ته.

وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ إِذْ قَضَيْنَا

او نه وے ته په طرف مغربي کښې کله چه حواله کړو موږ

إِلَىٰ مُوسَى الْأَمْرَ وَمَا كُنْتَ مِنَ

موسیٰ علیه السلام ته کار د پیغمبرئ او نه وے ته د

الشّٰهِدِيْنَ ﴿۴۴﴾ وَلٰكِنَّا أَنْشَأْنَا قُرُونًا

حاظرو ناظرو نه ـ او لیکن موږ پیدا کړے پیړئ

فَتَطَاوَلَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ وَمَا كُنْتَ

نو اوګده تیر شول په هغوی باندے عمرونه او نه وے ته

ثَاوِيًا فِي أَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُوا عَلَيْهِمْ

اوسیدونکے په مدین والو کښې چه لوستلے تا په هغوی باندے

آيٰتِنَا وَلٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ ﴿۴۵﴾

آیاتونه زموږ او لیکن یو موږ ره لیږونکی ـ

۴۴ ـ خلاصه:ـ تر دے ځایه پورے مقامات موسویه ختم شول ـ د دے آیت نه تر ۵۱ پورے دویم باب دے په دے کښې اثبات د صدق د رسول دے او حکمت د ارسال رُسل دے ـ بیا زجر دے منکرینو د کتاب او رسول ته او ترغیب دے قرآن ته او دلیل نقلی دے د اهل کتاب سابقین نه او د هغوی لس صفات ، بیا جواب د سوال دے په نفی د هدایت سره د رسول نه بیا زجر دے منکرینو ته او تخویف دنیوی دے ـ

تفسیر:ـ په ۴۴ ، ۴۵ ، ۴۶ کښې اثبات د صدق رسول دے تفریع په قصه د موسیٰ علیه السلام باندے او دا استدلال دے په عدم حضور د نبی صلی الله علیه وسلم په وخت د واقعاتو د موسیٰ علیه السلام کښې یعنی حاضر نه وو په دغه حالاتو کښې او سره د دے نه رښتنے واقعات یې ذکر کړل نو معلومه شوه چه

وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الطُّوْرِ اِذْ نَادَيْنَا

او نه وې ته په طرف د طور غر کښې کله چه آواز وکړو موږ (موسیٰ ته د پاره د کتاب)

وَلٰكِنْ رَّحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ لِتُنْذِرَ

او لیکن را او لیږلے مونږ ته رحمت ستا د رب د طرف نه د پاره د دے چه ویره ورکړې

قَوْمًا مَّآ اَتٰهُمْ مِّنْ نَّذِيْرٍ مِّنْ

هغه قوم ته چه نه دے راغلے دوی ته هیڅ ویره ورکونکے ستا نه

قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۴۶﴾

مخکښې د پاره د دے چه دوی نصیحت قبول کړی۔

وحی ورته شوید ه او نبی صادق دے۔

وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ، په دے کښې مراد اول وخت د وحی د موسیٰ علیه السلام دے په واپسئ کښې د مدین نه مصر ته چه هغه د دے سورت په ۳۰ کښې ذکر شو۔

وَمَا كُنْتَ مِنَ الشّٰهِدِيْنَ، دا نفی په طریقه د عموم سره ده روستو د خصوص نه یعنی په هیڅ زمانه کښې حاضر ناظر نه دے (غیبی حالاتو بانده لے)۔

قُرُوْنًا، نه مراد دیرے زمانے دی چه په هغے کښې رسول نه وؤ راغلے۔ زمانه د فترة ده نو په هغے کښې رسول ته ډیر ضرورت پریوتلو نو (فَاَرْسَلْنَاكَ) مقصد دے۔

تَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا، مراد د دے لوستل د شاګردی په استاد باندے مطلب ئے دا دے چه ته په مدین کښې دیره نه وے چه تا د هغوی ته دا واقعات ایزده کړے دی کوم چه د موسیٰ علیه السلام حالات وؤ په مدین کښې۔

وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الطُّوْرِ اِذْ نَادَيْنَا، مراد د دے نه وخت د کتاب ورکولو دے موسیٰ علیه السلام ته په طور کښې یعنی په دغه وخت کښې هم حاضر نه وے او بیا هم مونږ تا ته خبر درکړو او رسول هم او ګرځولے د وجے د رحمت نه۔

وَلَوْلَآ أَنْ تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌۢ بِمَا

او كه چرے نه وے دا خبره چه اورسي دوی ته مصيبت په سبب د هغه عملونو چه

قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ فَيَقُولُوا رَبَّنَا

چه مخکښ لیږلے دی لاسونو د دوی نو وائی به اے ربه زمونږ

لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ

ولے تا نه رالیږلو مونږ ته رسول پس تابعداری به کړے وے

ءَايَٰتِكَ وَنَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٧﴾

مونږ د آیاتونو ستا او وے به مونږ د مؤمنانو نه .

ﺳﮑﺘﻪ :- دا جواب د سوال دے چه د رسول رالیږلو ته څه ضرورت وو عذاب به یې دوی باندے رالیږلے وے مخکښ د رسول رالیږلو نه. جواب دے په بیان د حکمت د ارسال رسول سره چه هغه دفع عذر د خلقو ده لکه چه سورة طٰه ۱۳۴ کښ او سورة نساء ۱۶۵ کښ تیر شویدی. او د آیت په آخر کښ لِمَآ أَرْسَلْنَاكَ پټ مراد دے .

أَنْ تُصِيبَهُمْ : په دیکښ معنیٰ د وخت پټه ده یعنی په وخت د رسیدلو د عذاب کښ فیقولوا لنتبع .

وَنَكُونَ : دا ټول د لولا د لا لاندے داخل دی او ان تصیبهم ظرف دے د دے دواړو دیاره یعنی چه دا درے واړه کارونه نوے په وخت د رسیدلو د عذاب کښ نو مونږ به دوی ته رسول نه وے رالیږلے بلکه عذاب به مو دوی ته ورکړے وے .

فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا

نو هر کله چه راغې دوی ته حق (رسول او قرآن) د طرف زمونږ نه

قَالُوْا لَوْلَآ اُوْتِيَ مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ

اُوئیل دوی ولې نشي ورکړې شوې ده ته پشان د هغې چه ورکړې شوې دې

مُوْسٰی ؕ اَوَلَمْ يَكْفُرُوْا بِمَآ

موسی علیه السلام ته، آیا دوی کفر نه دې کړې په هغه کتاب

اُوْتِيَ مُوْسٰی مِنْ قَبْلُ ۚ قَالُوْا سِحْرٰنِ

چه ورکړې شوې وو موسی علیه السلام ته د دې نه مخکښ وئیلي دي دوی دا دوه جادوګر دي

تَظٰهَرَا ۫ وَقَالُوْٓا اِنَّا بِكُلٍّ كٰفِرُوْنَ ﴿۴۸﴾

چه امداد ئې کړې دې د یو بل سره او دوی وئیلي دي چه مونږ په هر یو باندې کفر کوونکي یو۔

۴۸:۔ په دې کښ زجر دې منکرینو د قرآن او د رسول ته په دوه طریقو سره اوله طریقه د انکار دا ده چه دوی اوئیل چه دې رسول ته د موسی علیه السلام په شان معجزات او کتاب په یوځل ولې نشي ورکړې شوې او د دې په جواب کښ د دوی د انکار دویمې طریقې ته اشاره ده او هغه یوه خاص واقعه وه هغه دا ده چه د یهودیانو د یو عام ملاقات اوشو د قریش مکه سره، نو دوی ترینه تپوس اوکړو چه دا نبي دعوی د نبوت کوي او د توحید مسئله کوي او وائي چه ذبح او نذر په نوم د غیر الله باندې حرام دې او دې دعوی د نبوت کوي ته د دې باره کښ څه وائي نو هغه ورته اوئیل چه دا سې زمونږ په کتاب کښ هم شته دې نو قریش غصه شول او انکار ئې اوکړو او دوی اوئیل سِحْرٰنِ تَظٰهَرَا یعنې تورات او قرآن دواړه جادو دې او د یو بل سره ئې امداد کړې دې۔

قُلْ فَأْتُوا بِكِتٰبٍ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ هُوَ

ته اوایه نو راوړئ تاسو یو کتاب د طرف د الله تعالیٰ نه چه هغه

أَهْدٰى مِنْهُمَآ أَتَّبِعْهُ إِنْ كُنْتُمْ

ښهٔ هدایت والا وی د دے دواړو نه تابعداری به یې اوکړم زهٔ که چرے تاسو

صٰدِقِيْنَ ﴿۴۹﴾ فَإِنْ لَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَكَ

یئ رشتني - نو که چرے دوی قبوله نکړی خبره ستا

فَاعْلَمْ أَنَّمَا يَتَّبِعُوْنَ أَهْوَآءَهُمْ ط

نو پوهه شئ چه یقیناً تابعداری کوی دوی د خواهشاتو خپلو ،

وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنِ اتَّبَعَ هَوٰىهُ بِغَيْرِ

او څوک ډیر بے لارے دے د هغه چا نه چه تابع وی د خواهش خپل بغیر

هُدًى مِّنَ اللّٰهِ ط إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى

د هدایت د طرف د الله تعالیٰ نه ، یقیناً الله تعالیٰ توفیق نه ورکوی

---

۴۹ :- دا جواب دے د دے قول چه سِحْرٰنِ تَظٰهَرَا یعنی چه دوی د قرآن او تورات دواړو نه انکار کوی نو دوی دے د دے نه ښهٔ هدایت والا کتاب راوړی چه په هغې کښں یې شرک جائز کړے وی په دے شرط چه د الله تعالیٰ د طرف نه وی دا تحدی ده او طریقه د مناظرے هم ده -

الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۰﴾ وَلَقَدْ وَصَّلْنَا

| قوم ظالـمانو ته - او یقینًا بوبل پسې پیوست بیان کړی موږ |
|---|

لَهُمُ الْقَوْلَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۵۱﴾

| دوی ته وینا د دے د پاره چه دوی نصیحت قبول کړی. |
|---|

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ

| هغه کسان چه ورکړی دی موږ دوی ته کتاب مخکښ د قرآن نه |
|---|

هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾ وَاِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ

| دوی پدے باندے ایمان راوړی. او کوم وخت چه اولوستلے شی په دوی باندے |
|---|

ت ؎ :۔ دا بیان د عجز د دوی دے د کتاب راوړلو نه په خپل شرک باندے او په هغے باندے تفریع ده په فَاعْلَمْ سره یعنی چا سره چه دلیل شرعی نه وی نو مستلزم ده چه دوی په د خواهش تابع وی او تابعداری د خواهش ضلال او ظلم دے.

الظّٰلِمِيْنَ، کښې اشاره ده چه سره د علم نه دوی عنادی کافران دی.

ساه :۔ دا رد دے په اتباع د خواهش باندے.

وَصَّلْنَا لَهُمُ، یعنی وحی لره موږ د رسولانو په واسطه پرله پسے درلیږلے ده د پاره د دفع د عذر د خلقو یا د الْقَوْلَ نه مراد مضمون د قرآن دے او مراد دا دے چه د قرآن مضامین وعد وعید، دعوی، دلیلونه، قصص، امثال وغیره د یو بل سره پیوست پرله پسے موږ بیان کړی دی نو دا ترغیب دے قرآن ته.

ساه :۔ دا دلیل نقلی دے د مخکنو علماء اهل کتاب نه او د هغوی لس صفات ذکر دی. په دے آیت کښې اول صفت د دوی ذکر دے.

بِهٖ ضمیر الکتاب ته راجع دے یعنی دوی په خپل کتاب باندے ایمان لری.

قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖٓ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ

دوی وائی ایمان راوړے دے مونږ پدے یقینًا داحق دے د طرف د

رَّبِّنَآ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِيْنَ ﴿۵۳﴾

رب زمونږ نه یقینًا مونږ وو د دینه مخکښ مسلمانان ۔

اُولٰٓئِكَ يُؤْتَوْنَ اَجْرَهُمْ مَّرَّتَيْنِ

دغه کسان ورکولے به شی دوی ته ثواب د دوی دوه کرته (برغ)

بِمَا صَبَرُوْا وَيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ

پدے وجه سره چه دوی صبر کړیدے او دفع کوی دوی په نیکئ سره

السَّيِّئَةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۵۴﴾

بدئ لره او د هغے مال نه چه مونږ دوی ته ورکړے دے خرچ کوی په لار د الله تعالی کښ

۵۳ :- پدیکښ دوه صفتونه دی ایمان بالقرآن او اسلام راوړل مخکښ د قرآن د نزول نه او دلته بِهٖ او اِنَّهٗ ضمیرونه قرآن ته راجع دی او د دینه معلومه شوه چه مخکنو خلقو ته هم مسلمانان ویلے کیږی کوموچه صحیح ایمان راوړے دے ۔

۵۴ :- پدیکښ درے صفتونه ذکر دی ۔ ۱ صبر ، ۲ دفع د سیئه ۳ په حسنه سره انفاق کول ۔

مَّرَّتَيْنِ ، هرکله چه په مخکښ آیاتونوکښ ئے ایمان په تورات او ایمان په قرآن ذکر کړو د دے وجے نه ئے دوه اجرونه ذکر کړل او دا دوه اجرونه په سبب د یوعمل سره دی لیکن په سبب د ملګرتیا د دویم عمل تو په اول کښ خلور اجرونه دی ۔

يَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ ، دا الفاظ عام دی او شامل دی ډیرو امورو ته ۔

الْحَسَنَةِ ، کښ خائسته اخلاق ، نرم کلام ، صبر وتحمل او توبه استغفار او دعوت د توحید او سنت ټول داخل دی ۔ او السَّيِّئَةَ کښ د الْحَسَنَةِ مقابل بد اخلاق ، سخته خبرے ، کنځل او طعنونه ، ګناهونه شرک او بدعات ټول داخل دی ۔

وَإِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ أَعْرَضُوا عَنْهُ وَقَالُوا

او کله چه دوی واوری بے فائدے خبرے مخ اړوی د هغے نه او دوی وائی

لَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ سَلَامٌ

موږ د پاره زموږ عملونه دی او تاسو لره ستاسو عملونه دی سلام د جدائی دے

عَلَيْكُمْ لَا نَبْتَغِي الْجَاهِلِينَ ﴿۵۵﴾ إِنَّكَ

په تاسو باندے نه لټوؤ موږه ملګرتیا د جاهلانو. یقیناً ته

لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ

نشے رسولے مقصد ته هغه چاله چه ته یے خوخوے او لیکن الله تعالی

يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ وَهُوَ أَعْلَمُ

رسوی مقصد ته هغه چاله چه او غواړی او هغه پوهه دے

بِالْمُهْتَدِينَ ﴿۵۶﴾ وَقَالُوا إِنْ نَتَّبِعِ

په هدایت موندونکو. او دوی وائی که چرے تابعداری اوکړو موږ

۵۵:- په دیکښ ځلور صفات دی۔ اعراض د لغو نه دا دے چه د لغو جواب نه ورکوی، لغو نه قبلوی، لغو کښ شرکت نه کوی۔ او لغو عام دے طعنو نه، کنځل، لوبے غزلے وغیره او دا سے په سورة الفرقان ۷۲ کښ دی.

سَلَامٌ عَلَيْكُمْ، دا سلام متارکت دے یعنی زموږ ستاسو دین جدا جدا دے موږ تاسو ته کنځل وغیره نه کوؤ۔ او که دا معنی شی چه موږ تاسو سره جنګ نه کوؤ نو دا منسوخ دے او دا سلام تحیه نه دے دا سے په سورة فرقان ۶۳ کښ تیر شوے دے۔

لَا نَبْتَغِي الْجَاهِلِينَ، یعنی طریقے او اخلاق او ملګرتیا د جاهلانو نه غواړو.

۵۶:- دا جواب د سوال دا دے چه هر کله دا نبی صادق دے نو خپل خپلوان پرے ولے ایمان نه راوړی۔

حاصل جواب دا دے چه توفیق د هدایت په اختیار د الله تعالی کښ دے او په دے آیت کښ رد دے په شرک فی التصرف باندے یعنی د

الْهُدٰى مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ اَرْضِنَا ط

دَ هدایت په منکریٔیا ستاکښې او په تختولے شو موږ دَ ملک خپل نه

اَوَلَمْ نُمَكِّنْ لَّهُمْ حَرَمًا اٰمِنًا

آیا ځاے نه دے ورکړے موږ دوی ته په حرم کښې چه امن والا دے

يُّجْبٰۤى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ رِّزْقًا

راټکلے کیږی هغے ته میوے (غلے) دَ هر قسم دَ پاره دَ خوراک

مِّنْ لَّدُنَّا وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۷﴾

دَ طرف زموږ نه او لیکن ډیر دَ دوی نه نهٔ پوهیږی۔

نبی صلی اللہ علیہ وسلم په اختیار کښې هدایت نشته۔ دلته مراد دَ هدایت نه توفیق ورکول او مقصد نه رسول دی دا دَ نبی په اختیار کښې نشته او هدایت چه معنیٰ دَ لارے خودل دی نو هغه دَ نبی ذمه واری ده۔ او آیت نازل شوے دے په باره دَ ابوطالب کښې په قول دَ اکثرو مفسرینو لیکن حکم ئے عام دے۔

سمکه :- دا زجر دے او اشاره ده چه دا مشرکانِ مکه (خپلوان دَ پیغمبر) دَ دے وجے نه منکر نه دی چه دا قرآن او توحید ورته ناحق ښکاری بلکه دَ خلقو دَ ویرے دَ وجے نه ایمان نه راوړی۔ لکه اوس زمانه کښې ډیر هم داسے شته چه دَ خلقو دَ ویرے دَ وجے نه دَ حق مرسته نه کوی۔
نُتَخَطَّفْ، مراد دَ دے شړل او ویستل دی دَ وطن نه او په تکلیفونو سره تنګول دی۔ او دا تشبیه ده لکه ټپوس چه دَ چرګے بچی تختوی۔
او دَ دوی جواب دے پدے قول سره اَوَلَمْ نُمَكِّنْ لَّهُمْ یعنی په دوی باندے ښکاره درے انعامات کړیدی۔ ۱ حرم کښې ځاے ورکول ۲ امن دَ دشمنانو نه ۳ هر قسم غلے او میوے حرم مکه ته راجمع کیدل دَ دوی دَ خوراک دَ پاره، لکه په سورة قریش ۳۔ ۴ کښې۔ نو حاصل دا شو چه الله تعالیٰ تاسو لره په حال دَ کفر او شرک ستاسو کښې دا نعمتونه درکړیدی نو په حالت دَ اسلام کښې به هم درکوی دَ خلقو نه ولے ویریږئ۔

وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍۭ بَطِرَتْ

او ډیر هلاک کړیدی موږ کلی چه ډه حد نه تیرو شلے وو

مَعِيْشَتَهَا ۚ فَتِلْكَ مَسٰكِنُهُمْ لَمْ

په ژوند خپل کښ پس دغه دی کورونه د دوی چه او سیدل

تُسْكَنْ مِّنْۢ بَعْدِهِمْ اِلَّا قَلِيْلًا ؕ

نه دی شوی په هغے کښ روستو د دوی نه مګر لږ وخت

وَكُنَّا نَحْنُ الْوٰرِثِيْنَ ﴿۵۸﴾ وَمَا كَانَ

او وو موږ آخری مالکان . او نه دے

رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى حَتّٰى يَبْعَثَ

رب ستا هلاکوونکے د کلو تر دے پورے چه اولیږی

فِيْٓ اُمِّهَا رَسُوْلًا يَّتْلُوْا عَلَيْهِمْ

په مینځ د هغے کښ رسول چه بیانوی په دوی باندے

اٰيٰتِنَا ۚ وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرٰٓى

آیاتونه زموږ او نه وو موږ هلاکونکی د کلو

۵۸؛- دا تخویف دنیوی دے هغه چاته چه د مال او دنیا د وسعت په وجه باندے مست شی او ایمان نه راوړی او دا هم جواب دے د مخکښ قول د منکرینو یعنی د مخلوق نه مه ویریږئ بلکه د الله تعالیٰ د عذاب نه اوویریږئ۔

بَطِرَتْ مَعِيْشَتَهَا، د حد نه تیر شویوو په ژوند او اسباب د معیشت کښ۔ یا جاهل وو د شکر د معیشت خپل نه۔ په اوله معنیٰ سره فِیْ پټ دے او په دویمه معنیٰ سره فِیْ ته ضرورت نشته۔

اِلَّا قَلِيْلًا، مراد د دے نه صرف ورتلل او تماشا کول دی د هغه کنډراتو۔

إِلَّا وَأَهْلُهَا ظَٰلِمُونَ ﴿٥٩﴾ وَمَا أُوتِيتُم

مګر او سیدونکي د هغې ظالمان دي ـ او هغه چه درکړیشوي یې تاسو ته

مِّن شَيْءٍ فَمَتَٰعُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا

څه څیز نو لږه نفع د ژوند دنیوی ده

وَزِينَتُهَا ۚ وَمَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ

او ښکلا د هغې ده او هغه چه د الله تعالیٰ سره دی غوره دی

وَأَبْقَىٰٓ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٠﴾ أَفَمَن

او همیشه دی آیا نو د عقل نه کار نه اخلئ آیا نو هغه څوک

ع ۶

۵۹ :- جواب د سوال دے چه هر کله دا مکے والا هم په بطر او تکبر کښ واقع شویوو نو الله تعالیٰ په دوی باندے عذاب ولے نه راولیږلو حاصل جواب دا دے چه د رسول د رالیږلو انتظار وو ډیاره د دے وجے چه په دوی باندے حجت قائم شی او د دوی ظلم ښکاره شی ځکه چه دا ظلم سبب د عذاب دے ـ په اوله جمله کښ سبب د تاخیر د عذاب ذکر کړے دے او په دویمه جمله کښ سبب د عذاب ذکر دے ـ

اُمِّهَا ، ام القری مکه مکرمه ده چه اصل د عرب او عجم دے او دا سے په سورة شوریٰ ۷ کښ هم ذکر دے او دیته ام القریٰ د دے وجے نه وئیلے شی چه اول کعبه په دے ځائے کښ جوړه شوے ده لکه په سورة العمران ۹۶ کښ او حدیث کښ راغلی دی چه زمکه د دے ځائے نه غوړولے شوی ده ـ

۶۱ :- خلاصه :- د دے آیت نه تر آخر د سورت پورے دریم باب دے په دیکښ تزهید فی الدنیا دے او فرق په مینځ د اهل دنیا او اهل آخرت دے ـ بیا تخویف اخروی دے او په هغے کښ ئے درے سوالات ذکر کړے دی ـ بیا عقلی دلیلونه دی بیا تخویف اخروی دے ـ بیا واقعه د قارون ده په تخویف دنیوی سره ـ او بیا امور متفرعه دی او خطابات د نبی صلی الله علیه وسلم دی په تشجیع سره او اختتام دے په کلماتو د

وَعَدْنٰهُ وَعْدًا حَسَنًا فَهُوَ لَاقِيْهِ

چه وعده کړیده موږ ده ته سره وعده ښائسته پس هغه په ځائم کیږ ونکے ده ته وی

كَمَنْ مَّتَّعْنٰهُ مَتَاعَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

پشان د هغه چاچه مزے ورکړے وی موږ مزے د ژوندون دلیوی

ثُمَّ هُوَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ ﴿٦١﴾

بیا هغه په ورځ د قیامت به د حاضر کړے شوؤنه وی (په عذاب کښ).

وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ اَيْنَ

او په کومه ورځ چه آواز به ورکړی دوی ته نو وائی به کوم ځائے دی

شُرَكَآءِيَ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿٦٢﴾

شریکان زما هغه چه تاسو پرے ګمان کوؤ.

توحید سره.

تفسیر:- پدے آیت ۶۱ کښ تزهید فی الدنیا دے په ذکر د فرق سره په مینځ د متاع د دُنیا او د ثواب د آخرت کښ. د دنیا څیزونه دوه قسمه دی د بعضے نه د خوراک څښاک پوشاک وغیره فائدے اخستلے کیږی او بیا زر فنا شی، دیته متاع وائی او بعضے څیزونو نه هیڅ فائده نه اخستلے کیږی صرف د ول ډال د پاره وی هغے ته زینت وائی.

۶۱:- پدیکښ بیان د فرق دے په مینځ د دُنیا پرستو او د جنتیانو کښ او متعلق دے د مخکښ آیت په طریقه د لف نشر غیر مرتب سره.

اَلْمُحْضَرِيْنَ، مراد د دیته مشرکین او نافرمان دی د دے وجے نه روستو د مشرکانو د پاره تخویف ذکر کوی.

۶۲:- پدیکښ تخویف اخروی دے مشرکینو (دنیا پرستو) ته- پدے آیت کښ اول سوال ذکر دے په باره د متبوعینو ګمراهانو کښ چه هغوی خپل تابعداران ګمراه کړی ته راېلی لکه مشرکان او مبتدعین پیران او ملایان.

تَزْعُمُوْنَ، تاسو دعوی کوله چه دا زموږ سفارشیان او د الله تعالی شرکاء دی.

قَالَ الَّذِيْنَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ

او به وائي هغه کسان چه پوره شو يدے په هغوی باندے حکم د عذاب

رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَغْوَيْنَا ۚ

اے ربه زمونږه دا هغه خلق دی چه ګمراهئ ته رابللی دی مونږ

اَغْوَيْنٰهُمْ كَمَا غَوَيْنَا ۚ تَبَرَّاْنَآ

ګمراهئ ته رابللی دی مونږ دوی لره لکه چه مونږه ګمراه وو بيزاري ښکاره کوو مونږ

اِلَيْكَ ۫ مَا كَانُوْٓا اِيَّانَا يَعْبُدُوْنَ ﴿۶۳﴾

تا ته نه وو دوی مونږ لره عبادت کوونکي .

۶۳۔ په دے آيت کښ جواب د متبوعينو ذکر شوے دے او دوی د دے وجے نه جواب کوی چه ضمنًا په دوی باندے اعتراض دے چه تاسو خپل تابعداران ولے ګمراه کړے دی حاصل د جواب دا دے چه مونږ په زور نه دی ګمراه کړی بلکه مونږ صرف دعوت د ګمراهئ ورکړے دے نو دوی په خپله خوښه زمونږ تابعداری کړے وه .

حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ ، مراد تری نه فيصله د عذاب د الله تعالیٰ ده په دوی باندے په دے قول چه لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ (هود ۱۱۹).

اَغْوَيْنَا ، اول د پاره د تسليم د دعوے دے چه هاں مونږ ګمراه کړے دی بيا تفصيل د جواب دے په دويم اَغْوَيْنَا سره يعنی مونږ ګمراهئ ته دعوت ورکړے دے .

كَمَا غَوَيْنَا ، تقدير د عبارت دا دے فَغَوَوْا بِاِخْتِيَارِهِمْ كَمَا غَوَيْنَا بِاِخْتِيَارِنَا . يعنی دوی په خپله خوښه ګمراه شول لکه چه مونږ په خپل اختيار سره ګمراه شوے وو) . يا کاف په كَمَا کښ د پاره د علت دے لکه په سورة صافات ۳۲ کښ .

تَبَرَّاْنَآ اِلَيْكَ ، يعنی مونږ باندے د دوی د وجے نه ملامتيا نشته ځکه چه مونږ په دوی باندے زور نه وو کړے .

مَا كَانُوْٓا اِيَّانَا يَعْبُدُوْنَ ، يعنی دوی مونږ لره صرف اطاعت کړيدے

وَقِيلَ ادْعُوا شُرَكَاءَكُمْ فَدَعَوْهُمْ

او اوبه وئیلے شي را اوبلئ شریکان ستاسو نو دوی به ورته آواز درکړي

فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ وَرَأَوُا الْعَذَابَ ۚ

پس وربه نکړي هغوی هیڅ جواب دوی ته او دوی به اوینی عذاب لره

لَوْ أَنَّهُمْ كَانُوا يَهْتَدُونَ ﴿۶۴﴾

(روانی به) ارمان دے چه دوی پوهیدلے (چه دا شریکان هیڅ مه دنشي کولے)۔

وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ مَاذَا

او په کومه ورځ چه آواز به درکړي دوی ته نو اوائي به څه شے

أَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِينَ ﴿۶۵﴾ فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ

جواب درکړے وو تاسو رسولانو ته - نو پټ به شي په دوی باندے

عبادتونه ئے نور بزرګانو لره کړے دی نو د هغوی ته د هم تپوس اوکړلے شي۔

۶۴:- دا دویم سوال دے او دا په باره د هغه بزرګانو کښ دے چه دوی ورله عبادت کوؤ او هغوی ترینه هیڅ خبر نه لری۔

فَدَعَوْهُمْ، یعنی دوی به هغوی لره خپل امداد ته را اوبلی نو هغوی به د دوی هیڅ استجابت اونه کړي

وَرَأَوُا الْعَذَابَ، ضمیر مشرکانو ته راجع دے۔

لَوْ أَنَّهُمْ كَانُوا، دپاره د تمنیٰ دے یعنی چه دوی به افسوس او ارمان اوکړي په هدایت پسے یا لَوْ شرطیه دے او جزا ئے محذوف ده او مراد د يَهْتَدُونَ نه دا دے که دوی ته علم وے چه دا بزرګان زمونږ د عبادتونو نه خبر نه لری نو دوی به د الله تعالی سره نه شریکولے۔

۶۵:- دا دریم سوال دے په باره د اتباع د رسولانو کښ یعنی اول دواړه سوالونه په باره د توحید کښ وو او دا سوال په باره د اتباع سنت کښ دے۔

أَجَبْتُمُ، یعنی اجابت قولی او عملی هم کړے وو یا مخالفت هم کړے وو۔

الْأَنْبَآءُ يَوْمَئِذٍ فَهُمْ لَا يَتَسَآءَلُونَ ﴿٦٦﴾

دلیلونه (خبرونه) پداغه ورځ نو دوی به د یو بل نه هیڅ تپوس نشي کولے.

فَأَمَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا

نو هرچه هغه څوک دے چه توبه يے کړيده (د شرک نه) او ايمان يے راوړيدے او عمل يے کړيدے برابر د سنت سره

فَعَسَىٰ أَنْ يَكُونَ مِنَ الْمُفْلِحِينَ ﴿٦٧﴾

نو خامخا دی به هغه د کامیابو نه.

وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ ط

او رب ستا پیدا کوی څه چه اوغواړی او غوره کوی.

مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ ط سُبْحٰنَ

نشته دے مخلوق لره هیڅ اختیار (د خدایئ توپ) پاکی ده

اللّٰهِ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٦٨﴾

الله تعالی لره او اوچت دے د هغے نه چه دوی ورله شریکان کنړی.

۶۶:- الْأَنْبَآءُ، د دینه مراد هغه تاویلات او توجیهات دی چه دوی به د ردکولو د سنت د پاره پیش کول، او اختراعی دلیلونه يے جوړ کړے وُو نو د هغے د هیریدلو په وجه پاتے به دومره هیبت زده نشی چه د یو بل نه به هم تپوس نشی کولے.

۶۷:- د تخویف نه روستو بشارت دے مومنانو ته۔ عَسٰى، د کریم او د شریف د طرفنه د پاره د تحقیق راځی۔

۶۸:- روستو د تخویف د مشرکانو او د بشارت د مؤحدینو نه عقلی دلیلونه ذکر کوی د پاره د رد د شرک او د اثبات د توحید۔ او په دے دلیل کښ اشاره ده چه چاله توفیق ورکوی د ایمان او عمل صالح او چاله نه ورکوی دا د الله تعالی اختیار دے۔ او د. اول دلیل عقلی دے مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ، مراد د خیرة نه اختیار او تصرف د الوهیت دے او دا د ټول مخلوق نه حقیقتًا نفی ده په یکښ هغه اختیار مراد نه دے

وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ

او رب ستا پوهه دے په هغه څه چه پټوی سینې د دوی

وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿۶۹﴾ وَهُوَ اللّٰهُ لَآ إِلٰهَ

او هغه چه دوی ښکاره کوی۔ او هغه الله تعالیٰ دے نشته حقدار د بندګئ

إِلَّا هُوَ ۖ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْأُولٰى

سوا د هغه نه، خالص هغه لره ستائنه د خدائی توب ده په دنیا کښ

وَالْاٰخِرَةِ ۖ وَلَهُ الْحُكْمُ وَإِلَيْهِ

او آخرت کښ او خاص هغه لره اختیار دے او خاص هغه ته

تُرْجَعُونَ ﴿۷۰﴾ قُلْ أَرَءَيْتُمْ

به ورګرځولے شئ۔ اووایه خبر راکړئ

کوم چه موقوف علیه د پاره د تکلیف د احکامو راځی۔ او دا دلیل دے چه نبی صلی الله علیه وسلم نه مختار کل وئیل شرکی کلمه ده ځکه چه هغه لره د ټول عالم اختیار او تصرف نه ذاتی شته او نه عطائی۔

سُبْحٰنَ اللّٰهِ، دا تفریع د مسئلے د توحید ده په ما قبل دلیل باندے۔

۶۹ :- دا دویم دلیل عقلی دے په باره د علم د الله تعالیٰ کښ روستو د بیان د صفت د تصرف نه. هر کله چه علم د خفی (پټ) مستلزم نه دے علم د ښکاره لره، ځکه چه د هغے د پاره کله نور موانع هم وی، د دے وجے نه يُعْلِنُونَ ئے مستقل ذکر کړو۔

۷۰ :- دا تفریع د توحید ده په تیر شوے دلیلونو باندے او په دے آیت کښ څلور کلمات د توحید دی توحید د الوهیت، توحید د صفاتو، توحید د حکم، توحید د جزاء او حساب۔ او روستنئ درے جملے په اصل کښ علت دے د پاره د اولنئ جملے۔

إِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا
که چرے اوګرځوی الله تعالٰی په تاسو باندے شپه همیشه

إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ إِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ
تر ورځ د قیامت پورے څوک دے واکدار سوا د الله تعالٰی نه

يَأْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ ط أَفَلَا تَسْمَعُوْنَ ﴿۷۱﴾
چه راولی تاسو لره رڼا د نمر، آیا نو تاسو نه آورئ.

قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ
او په خبر راکړئ که چرے اوګرځوی الله تعالٰی په تاسو باندے

النَّهَارَ سَرْمَدًا إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ
ورځ همیشه تر ورځ د قیامت پورے

مَنْ إِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَأْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ
څوک دے واکدار سوا د الله تعالٰی نه چه راوړی تاسو ته شپه

سـ :- دا دریم دلیل عقلی دے او دا اعترافی سکوتی دے ځکه چه د مخاطب نه تپوس شوے دے او د هغه چپوالے ئے نقل کړے دے - او په دے آیت کښ د الله یو تفسیر دے چه نمر راخیژولے شی یعنی چه نمر کښ تصرف کوی هغه نه الله وئیلے کیږی - دا چه په جاهلانو کښ قصّه مشهوره ده چه شمس تبریز بابا په ملتان باندے نمر راکوز کړے دے دا دروغ دی منکرت قطے دی او د شرک عقیده ده ځکه چه نمر کښ تصرف کول صرف د الله تعالٰی شان دے -

إِنْ جَعَلَ ، ابن کثیر ذکر کړی دی چه جزاء د دے شرط محذوف ده یعنی لَا ضَرَّ ذٰلِكَ بِهِمْ (ضروریه دا تکلیف ورکوی دوی ته) او مَنْ إِلٰهٌ ئے هم جزاء کیدے شی -

تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۷۲﴾

چه آرام به کوئ په هغې کښې، آیا پس تاسو نه وینئ۔

وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ

او د وجې د رحمت د الله تعالیٰ نه گرځولے یئے دۀ تاسو لره شپه

وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا

او ورځ دے د پاره چه آرام اوکړئ په شپه کښې او د پاره د دے چه لټوئ

مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۷۳﴾

فضل د الله تعالیٰ په ورځ کښې او د پاره د دے چه شکر اوکړئ۔

وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ اَيْنَ شُرَكَآءِيَ

او په کومه ورځ چه آواز به ورکړی دوئ ته نو اووبه وائی کوم ځائے دی برخے والا زما

الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿۷۴﴾ وَنَزَعْنَا

هغه چه تاسو گمان کوئ۔ او را اوباسو به

۷۲:- دا څلورم دلیل عقلی اعترافی سکوتی دے یعنی نمر غائب کول او شپه راوستل صرف د الله تعالیٰ اختیار کښې دی۔

فائده:- په اول آیت کښې د شپې د دوام ذکر دے او د شپې اوریدل کیږی لیکن لیدل نه کیږی د دے وجے نه د هغې سره ئے اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ ذکر کړو۔

او په دویم آیت کښې د ورځے د دوام ذکر دے او په ورځ کښې لیدل کیږی د دے وجے نه اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ئے ذکر کړو۔

۷۳:- دا پنځم عقلی دلیل دے په دیکښې د شپې او د ورځے نظام چلول او د هغې په ترتیب سره فائدے بیان کول د الله تعالیٰ تصرف او اختیار دے یعنی لتسکنوا متعلق دے د الليل سره د لتبتغوا متعلق دے د والنهار سره او دواړه د دواړو سره هم متعلق کیدے شی۔ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ، د دے نه مراد توحید منل دی۔

۷۴، ۷۵:- دا تخویف اخروی دے او کوم چه په ۶۲ کښې تیر شو په هغے

مِن كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا فَقُلْنَا

دَ هر امت نه گواهی کوونکے نو اوبه وایو موږ

هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ فَعَلِمُوا أَنَّ

راوړئ دلیل تاسو (په شرک باندے) نو دوی به پوهه شي چه یقینًا

الْحَقَّ لِلَّهِ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا

حق د خدائتوب خاص د الله تعالی دے او ورک به شي د دوینه هغه چه دوی

يَفْتَرُونَ ﴿۷۵﴾ إِنَّ قَارُونَ كَانَ مِن قَوْمِ

دروغ جوړول. یقینًا قارون وو د قوم

مُوسَىٰ فَبَغَىٰ عَلَيْهِمْ وَآتَيْنَاهُ

د موسی علیه السلام نه نو ظلم ئے اوکړو په دوی باندے او ورکړی وو موږ ده ته

مِنَ الْكُنُوزِ مَا إِنَّ مَفَاتِحَهُ لَتَنُوأُ

د خزانو نه په دومره قدر چه د هغے چابیانے خامخا دروند بوے

بِالْعُصْبَةِ أُولِي الْقُوَّةِ إِذْ قَالَ لَهُ

په یوه ډله طاقتوره باندے کله چه اُووئیل ده ته

قَوْمُهُ لَا تَفْرَحْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ

قوم د ده لوئی مه کوه یقینًا الله تعالی مینه نه کوی

کینی مراد فساد د عقیدے نه د دوی وو او په دے آیت کښی مراد دا دے۔ چه د دوی شرک بے دلیله دے۔ او مراد د شَهِيدًا نه هغه څوک دے چه دوی ته ئے دعوت او تبلیغ کړے وو هغه به شهادت اوکړی دوی ته د تبلیغ کولو چه ما دوی ته تبلیغ کړے وو او شهادت به اوکړی د دوی د انکار کولو۔ اَلْحَقَّ، مراد د دینه حق د عبادت او الوهیت دے۔ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ، هغه شرکی قصے په باره د اولیاؤ کښی چه دوی د ځان نه جوړ کړیدی۔

الْفَرِحِيْنَ ﴿۷۶﴾ وَابْتَغِ فِيْمَآ اٰتٰىكَ اللّٰهُ

دَ لويئ كوډنكو سره - او اولټوه په هغې كښ چه دركړيدي تاته الله تعالىٰ

الدَّارَ الْاٰخِرَةَ وَلَا تَنْسَ نَصِيْبَكَ

كور روستنے او مه هيروه برخه خپله

مِنَ الدُّنْيَا وَاَحْسِنْ كَمَآ اَحْسَنَ اللّٰهُ

دَ دنيا نه او احسان كوه څكه چه الله تعالىٰ احسان كړيدے

سلك :- دا دَ تخويف دنيوى دَ پاره مثال دے تعلق لرى دَ سلا سره او دا رنګ په دے واقعه كښ دليل دے چه مشرك او كافر سره په وخت دَ عذاب راتللو كښ هيڅ څوک امداد نشي كولے نه دَ هغه معبو دان باطله او نه مالونه او نه خدمتګاران او نه مريدان لكه چه دَ قارون حال په سلا كښ دغسے بيان كړيشويدے -

مِنْ قَوْمِ مُوْسٰى ، مشهوره دا ده چه دے دَ موسىٰ عليه السلام دَ تره څوے وو دَ موسىٰ عليه السلام پلار عمران بن قاهث وو او دَ قارون پلار يصهر بن قاهث وو -

فَبَغٰى عَلَيْهِمْ ، دا يو جامع لفظ دے شامل دے كفر او شرک او تكبر او ظلم كولو ته -

وَاٰتَيْنٰهُ ، دا سبب دَ بغى دے لفظ دَ كنوز او مفاتح او تنوء او عصبة او اولى القوة بيكاره دليل دے چه دَ دهٔ مالونه دَ حصر او دَ شمار دے نه بهر وو - او كُنُوْز كښ اشاره ده چه بيكاره مال يئے دَ دے نه علاوه وو دا خو يئے جمع كړے شوے خزانے وے او اشاره ده چه دَ هغې نه يئے زكوٰة صدقه فى سبيل الله نه وركوله څكه چه كنز هغه مال ته وئيلے كيږى چه زكوٰة تريده نه ادا كيږى - او وخت دَ اظهار دَ بغى دا دے

اِذْ قَالَ لَهٗ قَوْمُهٗ لَا تَفْرَحْ ، ديته فرح بطر وئيلے كيږى چه دَ هغې دَ وجے نه شرک كوى او قيامت هير كړى او عاقبت باندے سوچ نه كوى او دَ الله تعالىٰ دَ عذاب نه نه ويريږى -

إِلَيْكَ وَلَا تَبْغِ الْفَسَادَ فِي الْأَرْضِ ط

تا ته او مه لټوه فساد په ملک کښې ،

إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ ﴿۷۷﴾

یقیناً الله تعالی نه خوښوی دَ فساد کوونکو سره۔

قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَىٰ عِلْمٍ

اُو ئیل هغه یقیناً راکړے شوے دے ماته دا دَ وجې دَ علم نه

عِندِي ۚ أَوَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ قَدْ

چه ما سره دے ، آیا دے نه پوهیږی چه یقیناً الله تعالی

أَهْلَكَ مِن قَبْلِهِ مِنَ الْقُرُونِ

هلاک کړیدی ، مخکښې دَ دهٔ نه دَ پیړو نه

۷۷ :- دَ دهٔ قوم (چه په هغوی کښې موسی علیه السلام هم داخل دے) دهٔ ته دعوت دَ حق ورکړو چه په هغے کښې درے مناهی (فرحه ، نسیان دَ نصیب دَ دنیا ، فساد) ذکر دی او دوه اوامر وابتغ او احسن۔ او دوه ترغیبات (اِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِينَ) او (اِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ) ذکر کړیدی۔

وَابْتَغِ فِيمَا آتَاكَ اللَّهُ الدَّارَ الْآخِرَةَ ، په دے کښې اشاره ده ټولو جوانبو دَ توحید ته او عقیده دَ آخرت او دَ جنت ته۔

وَلَا تَنسَ نَصِيبَكَ ، برخه دَ انسان په خپل مال کښې دَ خوراک څښاک پوشاک نه علاوه دا ده چه دَ الله تعالی په لار کښې خرچ کړی او دا رنګ خپل صحت او قوت او ځوانی دَ الله تعالی دَپاره صرف کړی۔

وَأَحْسِن ، په دے کښې جمیع اعمالو دَ خیر ته اشاره ده۔

كَمَا أَحْسَنَ ، کاف تعلیلیه دے علت دے دَ ما قبل دَپاره ۔ په دے کښې اشاره ده چه هغه مالداری چه دَ دین خدمت پرے او کړے شی نو دا هم دَ الله تعالی احسان دے۔

وَلَا تَبْغِ الْفَسَادَ ، دَ مال په قوت سره دَ کفر او شرک په دنیا کښې

مَنْ هُوَ اَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً وَّ اَكْثَرُ

هغه خوک چه ډیر کلک وو دده نه په طاقت کښ او ډیر وو

جَمْعًا ؕ وَلَا يُسْـَٔلُ عَنْ ذُنُوْبِهِمُ

په ډله کښ، او تپوس نه کیږی د ګناهونو د دوی

الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۷۸﴾ فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ

د مجرمانو نه - نو راووتلو دے په قوم خپل باندے

اشاعت کول دا لوے فساد دے۔

۷۸:۔ دا ذکر د هغهٔ د بغی دے په انکار د نعمت د الله تعالیٰ سره او تبلیغ ورباندے اثر اونکړو بلکه (اِنَّمَآ اُوْتِيْتُهٗ) او (وَاَحْسِنْ كَمَآ اَحْسَنَ اللّٰهُ اِلَيْكَ) نه ئے انکار اوکړو چه دا مالونه ما په خپل هنر او تجارت وغیره سره پیدا کړیدی یعنی الله تعالیٰ نه دی راکړی۔

عَلٰى عِلْمٍ عِنْدِيْ، مراد د دینه هنر او تجارت دے او دا سے په سورة زمر ۴۹ کښ ذکر دی او فرق هلته ذکر کیدیشی۔ په اَوَلَمْ يَعْلَمْ کښ ئے توبیخ او قباحت د حال د قارون ذکر کړیدے چه سره د دے چه د فرعون د قوت د فوج او د ډیروالی د مال نه اوبیا د هغهٔ د هلاکت نه پخپله مشاهده سره خبر وو بیا هم دهٔ عبرت حاصل نه کړلو۔

وَلَا يُسْـَٔلُ، اشاره ده چه په وخت د عذاب دنیوی یا اخروی راتللو کښ د مجرم نه تپوس نه کیږی د پاره د دے چه څه عذر پیش نکړی ځکه چه په دغه وخت کښ عذر نه قبلیږی نو تپوس نه هم څه ضرورت نشته۔

فائده:۔ سورة اعراف ۶ او سورة حجر ۹۲ کښ تپوس کول ذکر شوی دی او پدے آیت کښ او سورة رحمٰن ۳۹ کښ تپوس نه کول ذکر شوی دی د دے یو تطبیق دا دے چه د نفس ګناه کولو تپوس ترینه نه کیږی او د ګناه د سبب او د کیفیت تپوس به کیږی۔ دوبم تطبیق دا دے چه د توبیخ او د ملامته کولو د پاره تپوس کیدیشی او د ځان

فِي زِينَتِهِ ۖ قَالَ الَّذِينَ يُرِيدُونَ
په دول خپل کښ، او وئیل هغه کسانو چه غوختلو دوی
الْحَيَاةَ الدُّنْيَا يَا لَيْتَ لَنَا مِثْلَ
ژوند دنیوی هائے ارمان دے چه وے مونږ لره پشان
مَا أُوتِيَ قَارُونُ ۚ إِنَّهُ لَذُو حَظٍّ
د هغے چه ورکړیشوی دے قارون ته یقینًا دے خاوند د برخے
عَظِيمٍ ﴿٧٩﴾ وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ
لوے دے۔ او اوئیل هغه کسانو چه ورکړے شوے هغوی ته علم
وَيْلَكُمْ ثَوَابُ اللَّهِ خَيْرٌ لِمَنْ
تعجب دے په تاسو باندے ثواب د الله تعالیٰ غوره دے هغه چا لره

خیرولو د پاره تپوس نه کیږی ځکه چه الله تعالیٰ عالم دے۔
دریم دا چه د عذاب نه وړاندے د حساب په وخت کښ به تپوس کیدیشی او په عذاب کښ د داخلیدلو په وخت کښ تپوس نه کیږی د پاره د دے چه څه عذر پیش نه کړی۔
څلورم دا چه اَلْمُجْرِمُوْنَ، نه مراد نور مجرمان دی یعنی د یو قسم د مجرمانو د جرم په د بل مجرم نه تپوس نه کیږی۔
سلوک:- په دے آیت کښ ذکر د بل بغاوت د هغهٔ دے، یعنی خپل تکبّر عملًا ښکاره کول۔ لکه نن چه بعضے بادشاهان خپل جشن مناوی یا بعضے پیران خپل عرسونه په خپل ژوند جوړوی او خپل زیب و زینت په هغے کښ ښکاره کوی۔
قَالَ الَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا، اګرچه مسلمانان وو لیکن دنیا پرست او ناپوهه وو هغوی دا تمنا ښکاره کړه او قارون ته ئے د لوے برخے خاوند اوئیلو۔ لکه اوس هم جاهلان خلق د سرمایه دارانو او نوابانو د حال ارمان کوی۔ او د هغوی صفتونه کوی۔

آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ۚ وَلَا يُلَقّٰهَآ

چه ایمان يې راوړے دے او عمل يې کړے برابر د سنت سره او نه ورکيږي دا خصلت

إِلَّا الصّٰبِرُونَ ﴿٨٠﴾ فَخَسَفْنَا بِهٖ وَبِدَارِهِ

مګر صبر ناکو ته۔ نو ننوخ کړو مونږ دهٔ لره او کورونه (خزانې) دده

الْأَرْضَ ۖ فَمَا كَانَ لَهٗ مِنْ فِئَةٍ

زمکه کښ پس نه وه دهٔ لره هيڅ ډله

يَّنْصُرُونَهٗ مِنْ دُونِ اللّٰهِ ۖ وَمَا كَانَ

چه مدد يې ددهٔ کړے وے سوا د الله تعالیٰ نه او نهٔ وو دے

مِنَ الْمُنْتَصِرِينَ ﴿٨١﴾ وَأَصْبَحَ الَّذِينَ

د بدله اخستونکو نه۔ او صبا کړو هغه کسانو

ﻣﺴﺌﻠﻪ ٨٠:۔ دا وعظ دے دغه جاهلانو ته د دنيا د ذلت په مقابله د آخرت کښ۔

الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ، معلومه شوه چه عالمان د الله تعالیٰ په نيز هغه کسان دی چه مالونه او جاه د دنيا باندے هيڅ اعتبار نه کوی او يقين لری په فنا د دنيا او په دوباره ژوند باندے۔

وَيْلَكُمْ، يې دلته د پاره د تعجب او د زوزلے ذکر کړے دے او په دے لفظ راوړلو کښ اشاره ده چه په روستو مضمون باندے يقين او نکړئ نو هلاک به شئ۔

ثَوَابُ اللّٰهِ، مراد ددے نه نعمتونه د آخرت او د دنيا دی چه په برکت د ايمان او عمل صالح سره حاصليږی۔

وَلَا يُلَقّٰهَا، هَا ضمير دغه نصيحت او خصلت ته راجع دے کوم چه د تيرے شوے جملے نه معلوم شو يعنی زهد په دنيا کښ او رغبت په آخرت کښ۔

ﻣﺴﺌﻠﻪ ٨١:۔ تير شوے بغاوت او تکبر ښکاره کول سبب شو د عذاب د دهٔ هر کله چه دے متکبر خان او جت ګنړلو نو الله تعالیٰ ورله په زمکه ځکته والے ورکړو۔ حديث صحيح کښ راغلے دی چه هغه انسان چه په زمکه کښې

تَمَنَّوْا مَكَانَهٗ بِالْاَمْسِ يَقُوْلُوْنَ
چه ارمان يې کړيوو د حالت د ده پرون وئيل يې
وَيْكَاَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ
عجيبه ده يقيناً الله تعالىٰ فراخوي روزي هغه چا لره
يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَوْلَآ
چه اوغواړي د بندګانو خپلو نه او تنګوي که چرې احسان
اَنْ مَّنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا لَخَسَفَ بِنَا وَيْكَاَنَّهٗ
نه وے کړے الله تعالىٰ په مونږ بانديے خامخا ښخ کړي به يې وے مونږ لره، عجيبه ده يقيناً

يې لوټ کوله (او خپله جامه يې د ګيټونه کوزه کړے وه) نو په زمکه کښې
به ښخ کړے شي او تر قيامته پورے به پکښې ښکته ورځي.

وَيْكَاَنَّهٗ، کور نه مراد پټولے خزانے د هغهٔ دي.

فَمَا كَانَ لَهٗ مِنْ فِئَةٍ، فِئَةٍ هغه جماعت او ډلے ته وئيلے شي چه
انسان ورته څځ راځي د حاجتونو او ضرورتونو د پاره يعنې قارون چه
الله تعالىٰ سره څوک شريکان کنټرل يا خپل نوکران فوجيان نو هغه
هيڅ څوک يې پکار نه شول.

وَمَا كَانَ مِنَ الْمُنْتَصِرِيْنَ، يعنې خپل طاقت او زور يې دومره نه وُو
چه بدله يې اخستلے وے او دا په مقابله د زينت د دهٔ کښې او د دے
قول کښې چه على علم عندي.

فائده:- او په دے واقعه کښې تنبيه ده قريشوته او آل رسول ته چه
دوي اګر چه د پيغمبر قوم دے او خپلوان دي ليکن د رسول د دين نه
چه بغاوت کوي نو د قارون رچه قريب وُو د موسىٰ عليه السلام
وخت کښې) پشان به هلاک شي - اولياء، بزرګان چه دوي مددګاران
ګڼړي هغوي سره مدد نشي کولے -

لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۸۲﴾ تِلْكَ

نشي بچ کیږي کافران . هغه

الدَّارُ الْاٰخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِيْنَ

کور روستنی (جنت) خاص کوو مونږ هغه چالره

لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ وَلَا

چه نه غواړي لويئ په دنيا کښ او نه

فَسَادًا ؕ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۸۳﴾

وراني کول او انجام (د خير) د پاره د متقيانو دے.

۸۲ . دا هم خوش قسمتي ده او احسان د الله تعالى دے چه ډير بد کار سړي د حال نه خوک عبرت واخلي او د الله تعالى احسان او منت چه د دغه بد حال نه ئے مونږ بچ ساتلے يو .

وَيْكَاَنَّ اللّٰهَ ، يعني دوي پوهه شول چه د رزق فراخي او تنګسيا د الله تعالى په مشيت او په اراده سره ده دا سبب د کرامت نه دے وَيْ لفظ د تعجب دے او كَ په معنٰي د لام دے يعني تعجب کوؤم د دے وجے نه او د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دے چه وَيْكَاَنَّ په معنٰي د (اَلَمْ تَرَ) دے .

مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا ، مَنَّ نه مراد توفيق د ايمان او اتباع د موسٰى عليه السلام ده لکه چه سورة حجرات ۱۷ کښ دي .

وَيْكَاَنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ، دا قول د دغه کسانو دے يا قول د الله تعالى دے .

۸۳ دا تفريعات دي په واقعه د موسٰى عليه السلام باندے - دا اوله تفريع ده په ۸۲ او ۸۳ باندے يعني د دے قصّے د فرعون او قارون نه معلومه شوه چه دار الاٰخرة (جنت) صرف په تقوٰى سره حاصليږي په علو تکبر او فساد سره که چرے حاصليدلے نو فرعون، هامان او قارون ته به حاصل شوے وے .

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ
چاچه راتلل اوکړل په نیکئ سره نو ده لره غوره حال دے د هغې د وجې نه
وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى
او چاچه راتلل اوکړل په بدئ سره نو بد نشي ورکیدلے
الَّذِيْنَ عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ اِلَّا مَا كَانُوْا
هغه کسانو ته چه عملونه ئې کړیدي ناکاره مګر د هغه عملونو چه
يَعْمَلُوْنَ ﴿۸۴﴾ اِنَّ الَّذِيْ فَرَضَ عَلَيْكَ
دوی کول . یقینًا هغه ذات چه فرض کړیدی په تا باندے رسول
الْقُرْاٰنَ لَرَآدُّكَ اِلٰى مَعَادٍ ؕ قُلْ
د قرآن خامخا واپس کوی به تا لره ځائے د واپسئ ته . ته اُوایه
رَّبِّيْٓ اَعْلَمُ مَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى
رب زما ښهٔ پوهه دے په هغه چا باندے چه راتلل اوکړی په هدایت سره
وَمَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۸۵﴾
او په هغه چاچه هغهٔ دی په ګمراهئ ښکاره کښې .

سـ۸۴ ـ دا علت دے د مخکښ آیت د پاره او بیان د دے خبرے دے چه جزاء د جنس د عمل نه وی یعنی تقوٰی حسنه ده او علو، فساد سیئات دی د هریو جزا د هغې مناسب ده ـ

بِالسَّيِّئَةِ، مراد د دینه جنس سیئه ده د دے وجے نه روستو عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ جمع راوړلے وه ـ

سـ۸۵ ـ پدے آیت کښ دوه تفریعات دی یو په سـ۸۴ باندے او بل په سـ۸۳ باندے او دا خطاب نبی صلی الله علیه وسلم ته د پاره د تشجیع په دعوت باندے او د دے آیت نه نبی ته اته خطابات شروع شول ـ

مَعَادٍ، مراد د دینه مکه معظمه ده او پدیکښ پیشنګوئی ده چه اے نبی

وَمَا كُنْتَ تَرْجُوْٓا اَنْ يُّلْقٰٓى اِلَيْكَ

او نه وې ته چه امید کوؤ تا د دې خبرې چه دریه کړیشي تا ته

الْكِتٰبُ اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ فَلَا

کتاب مګر (درکړیشو موتږ تا ته) د وجې د رحمت د رب ستا نه پس مه

تَكُوْنَنَّ ظَهِيْرًا لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۸۶﴾

کیږه هیڅکله امدادي د کافرانو۔

وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ بَعْدَ

او وانه روي دوی تا لره د آیاتونو د الله تعالی نه روستو

اِذْ اُنْزِلَتْ اِلَيْكَ وَادْعُ اِلٰى رَبِّكَ

د هغې نه چه نازل کړې شویدي تا ته او بلنه کوه رب خپل ته

ته به د دې کلي ته ویستلې کیږې او بیا به د فتح په صورت کښې دې ته واپس راځې لکه موسی علیه السلام چه د مور نه جدا کړې شو او بیا ئې مور ته واپس کړو او دا رنګ د مصر نه اُوتلو او بیا ورته واپس راغې ـ یا د معاد نه مراد جنت دې۔

قُلْ رَّبِّيْٓ، دا جواب دې د طعن کولو د کافرانو په نبي صلی الله علیه وسلم باندې چه ته په ګمراهۍ کښې ئې۔

۸۶:۔ په دې کښې هم دوه تفریعې دي اوله په سک باندې او دویمه په سکل باندې۔

په اوله تفریع کښې اشاره ده چه نبوت په رحمت د الله تعالی سره حاصلیږي هغه څه کسبي څیز نه دې۔

او په دویمه تفریع کښې تشجیع ده نبي صلی الله علیه وسلم ته او دا دلیل دې چه د کافرانو سره هر قسم امداد کول حرام دي۔

وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۸۷﴾ وَلَا تَدْعُ

او مه کیږه ته د مشرکانو د دلے نه. او را مه د شه مه د اپه

مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ۘ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ قف

سره د الله تعالیٰ نه بل چا ته چه الٰه یئے کنړے نشته مددګار مګر هغه دے

كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ ۭ لَهُ

هر څیز فنا کیږی مګر مخ د هغهٔ . خاص هغهٔ لره

الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۸﴾

اختیار دے او خاص هغه ته به او ګرځولے شئ تاسو.

وقف لازم

ع ۹ / ۱۲

۸۷:. دا تشجیع ده نبی صلی الله علیه وسلم ته چه کافران مشرکان تاته دعوت د مداهنت درکوی او په قِسم قِسم دهوکو سره تا د قرآن د تبلیغ نه منع کوی لیکن د دوی خبره قبوله نه کړے. او په دے آیت کښ دوه نهی او یو امر نبی صلی الله علیه وسلم ته ذکر کوی.

۸۸:. دا هم خطاب د تشجیع دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او مقصد پدیکښ تشجیع ده په مخالفت کولو سره د مشرکانو د طریقے د عبادت نه.
او دا پنځه کلمات د توحید دی. په اول کښ رد د شرک فی الدعا دے او په دویم کښ رد د شرک فی الالوهیة دے او په دریم کښ رد د شرک فی الصفات دے او په څلورم کښ رد د شرک فی الحکم دے او په پنځم کښ عقیده د بعث بعد الموت ده او هغه کښ توحید فی الحساب ته اشاره ده.

كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ، تحقیق د دے آیت دا دے چه كُلُّ شَيْءٍ کښ درے احتمالونه دی.
۱: ټول موجودات، که ممکنات وی او که واجب وی نو شَيْءٌ په دے معنیٰ الله تعالیٰ ته هم شامل ده لکه سورة انعام ۱۹ کښ دی.
۲: ټول ممکنات او دا د شَيْءٍ مشهوره معنیٰ ده.
۳: ټول عملونه.

او هَالِكٌ کښې هم درے احتمالونه دی۔
۱۔ فنا کیدونکے لکه سورة رحمٰن ۲۶ کښې دی۔
۲۔ مَيِّتٌ په اعتبار د ذات خپل، ځکه چه په وجود کښې الله تعالیٰ ته محتاج دی حاصل معنیٰ د دے محتاج او ممکن شو۔
۳۔ هَالِكٌ په معنیٰ د غیر مقبول او باطل ده۔
او وَجْهَهٗ کښې درے احتمالونه دی۔
۱۔ مخ د الله تعالیٰ په ظاهری معنیٰ سره دے او تشبیه او تمثیل ئے د مخلوق سره نشته او په کیفیت باندے ئے الله تعالیٰ بنه پوهه دے او هم دا عقیده د سلف صالحینو ده۔
۲۔ مخ د الله تعالیٰ سره د ذات نه یعنی ذات د الله تعالیٰ په طریقه د ذکر د یو جزء او اراده د کل راو دا طریقه په ممکناتو کښې ده او موتږ ذکر کړه په طریقه د نظیر سره)۔
۳۔ هغه عملونه چه د الله تعالیٰ د پاره اوکړے شی۔
بیا په دے کښې درے سوالونه دی۔
اول سوال :۔ دا دے چه په دے جمله کښې استثناء متصل ده او که منقطع ده؟
جواب :۔ دا دے چه استثناء متصل ده ځکه چه د شَیْءٍ اطلاق په الله تعالیٰ باندے صحیح دے لکه چه تیر شول۔ یا د دے وجے نه چه کُلُّ شَیْءٍ نه مراد اعمال شی۔ او وَجْهَهٗ نه هم مراد عمل وی د پاره د الله تعالیٰ، نو په دے دواړو صورتونو کښې مستثنیٰ داخل ده په مستثنیٰ مِنْهُ کښې نو متصله ده۔
دویم سوال :۔ دا دے چه هَالِكٌ په معنیٰ د فانی دے یعنی هر ممکن په فنا کیږی نو معلومه شوه چه جنت او جهنم او ارواح وغیره به هم فنا کیږی؟
اول جواب :۔ دا دے چه کُلُّ شَیْءٍ اګرچه عام دے لیکن په وجه د نورو نصوصو سره د هغے نه اته څیزونه خاص کړے شوے دی ځکه دا څیزونه د فنا د پاره نه دی پیدا کړی چه هغه مفسر سیوطی او نورو مفسرینو ذکر کړی دی، او هغه په دے شعر کښې وائی۔

ثَمَانِيَةٌ حُكْمُ الْبَقَاءِ يَعُمُّهَا
مِنَ الْخَلْقِ وَالْبَاقُوْنَ فِي حَيِّزِ الْعَدَمِ
هِيَ الْعَرْشُ وَالْكُرْسِيُّ وَنَارٌ وَّجَنَّةٌ
وَعَجْبٌ وَ آرْوَاحٌ كَذَا اللَّوْحُ وَالْقَلَمُ

(عجب په معنیٰ دَ ملا دَ هډوکے دے لکه لیے ورته وئیلے شي)

دویم جواب:- دا دے چه كُلُّ شَيْءٍ کښې استغراق حقیقي مراد نه دے بلکه استغراق عرفي مراد دے یعنې هر هغه شے چه پیدا کړے شوي دے دَ پاره دَ فنا کیدلو۔

دریم سوال:- دا دے چه وَجْهَهٗ مخ ته وئیلے کیږي نو معلومه شوه چه دَ مخ نه علاوه ید، عین، ساق وغیره صفتونه دَ الله تعالیٰ په كُلُّ شَيْءٍ کښې داخل شول نو هغه په حکم دَ هَالِكٌ کښې داخل شول او دا خو محال ده؟

اول جواب:- دا دے چه مخ ذکر شو او مراد ترینه ټول ذات دے لکه چه مخکښې تیر شول نو ید، عین وغیره هم په حکم دَ وَجْهَهٗ کښې داخل دي۔

دویم جواب:- دا دے چه په دے کښې حصر حقیقي نه دے مراد بلکه حصر اضافي مراد دے یعنې په ذکر دَ وَجْهَهٗ سره دَ ید او عین وغیره نه احتراز کول مراد نه دي بلکه حصر دَ هلاکت په ممکناتو کښې مراد دے۔

نو دَ دے جملے درے معانے دي۔

اوله معنیٰ هر څیز په خپل وجود کښې محتاج او معدوم دے سوا دَ مخ یا دَ ذات دَ الله تعالیٰ نه۔

دویمه معنیٰ هر څیز چه فنا دَ پاره پیدا کړے شوے دے نو هغه به فنا کیږي سوا دَ مخ او دَ ذات دَ الله تعالیٰ نه۔

دریمه معنیٰ هر عمل باطل برباد دے سوا دَ هغه عمل نه چه دَ الله تعالیٰ دَ پاره اوکړے شي۔

دا روستنۍ معنیٰ امام بخاري خوره کړیده اګرچه دَ نورو محققینو

مفسرينو په نيز باندے غوره نه ده۔
تنبيه:- په اوله معنیٰ باندے بعضے متصوفو د وحدت الوجود د پاره استدلال کړے دے او اطلاق د وحدت الوجود يې پرے کړے دے ليکن دا باطل او فاسد قول دے ځکه چه کومه معنیٰ د وحدت الوجود چه د عامو متصوفو په نيز مراد ده چه د هغے رجوع حلول ته ده، هغه خو کفر دے او که بعضے صوفيان دا معنیٰ کوی چه وجود حقيقي صرف وجود د الله تعالیٰ دے او د باقی موجوداتو وجود حقيقي نه دے هغه وجود ته اعتبار نشته نو معلومه شوه چه وجود خو صرف د الله تعالیٰ دے نو دا اگرچه صحيح ده ليکن په دے باندے د وحدت الوجود (چه باطله اصلاح ده او موهم لفظ دے) اطلاق کول ناجائز دی۔

تم تفسير سورة القصص بفضله تعالیٰ وکرمه

سورة العنکبوت مکیة | بسم الله الرحمن الرحیم | ایاتها ۶۹ رکوعاتها ۷

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښ چه رحمٰن او رحیم دے

الٓمّٓ ﴿۱﴾ اَحَسِبَ النَّاسُ اَنْ یُّتْرَکُوْٓا

الف. لام. میم. آیا گمان کوی خلق چه پریښے به خودلے شی

بسم الله الرحمن الرحیم

## سورة العنکبوت

ربط:- د دے د سورة القصص سره په یوشو وجوهو سره دے۔

اول وجه دا چه سورة القصص کښ تشجیع وه مؤمنانو ته په واقعه د موسیٰ علیه السلام سره نو په دے سورت کښ تشجیع ذکر کوی په واقعاتو د نوح او ابراهیم او لوط او شعیب علیهم السلام سره۔

دویمه وجه دا چه هغه سورت کښ تشجیع وه په مصیبتونو راتللو سره اجمالاً نو په دے سورت کښ تفصیل د هغے مصیبتونو دے۔

دریمه وجه په هغه سورت کښ عقلی دلیلونه وو په مسئله د توحید باندے د پاره د اثبات د هغے نو په دے سورت کښ مثال ذکر کوی د پاره د وضاحت د مسئلے۔

دعوی:- د دے سورت۔ د دے دوه دعوے دی۔

اوله دعوی تشجیع ده په مصیبتونو او محنتونو تیرولو سره په دعوت د توحید کښ او دا په ټول کښ ده۔

دویمه دعوی عدم نجات د مخالفینو دے د عذاب نه په دنیا او آخرت کښ او دا په ټول کښ ده۔ او دعوی د توحید د سورت په مینځ کښ په طریقه د مثال سره ده۔

خلاصه:- د دے سورت دا ده چه دا تقسیم دے څلورو بابونو ته۔

اول باب ترسلا پورے دے په دے باب کښ دواړه دعوے ذکر کړے دی او روستو د هغے نه څلور ابتلاءات ذکر کوی۔

اَنْ يَّقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ ②

دَ دے وجے نہ چہ وائی دوی ایمان راوړے مونږ او حال دا چہ پہ دوی باندے زمیښت نشی کیدے۔

وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

او یقیناً زمیښت کړیدے مونږ پہ هغه کسانو چہ دَ دوی نه مخکښ وو

فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا

نو خامخا ښکاره کوی به الله تعالیٰ هغه کسانو لره چہ رښتینا وائی

وَلَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِيْنَ ③ اَمْ حَسِبَ

او خامخا ښکاره کوی به دروغژنو لره۔ آیا گمان کوی

اوّل پوره مجاهده کول په سه کښ۔ دویم دعوت دَ والدینو شرک ته په سه کښ۔ دریم اذیت دَعامو خلقو دَ طرف نه په سه کښ۔ څلورم دعوت دَ مکذبینو من اهنیو شرک ته او توحید پریخودلو ته په سه کښ۔

تفسیر:۔ سه :۔ دا دَ مقطعاتو نه دے دَ دے تفصیل تیر شوے دے۔

سه :۔ دا اوله دعوی دَ سورت ده یعنی صرف ایمان راوړل (اگرچه په اخلاص سره وی) دَ جهنم نه دَ بچ کیدلو دَ پاره کافی نه دے بلکه دَ دعوے دَ ایمان سره تکلیفونه او مصیبتونه ضرور راځی۔

اَنْ يُّتْرَكُوْٓا، دلته عبارت کښ تقدیر دے یعنی مِنَ الْاِفْتِتَانِ (دَ ابتلاء نه) او وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ دَ هغے تفصیل دے۔

وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ، فتنه او امتحان په دوه قسمه سره دے او تکلیف تکوینیه یعنی مخالفت دَ خلقو او دَ هغوی دَ طرف نه کنځل، خلط فتوے لگول، وژل او مرضونه وغیره راتلل۔ دویم تکالیف شرعیه، عبادات، هجرت، جهاد وغیره دواړه قسمونه دَ ایمان سره لازم دی۔

سه :۔ دا تسلی ده مؤمنانو ته او په دے کښ فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الخ حکمت دَ امتحاناتو دے یعنی فرق دَ رښتینو او دروغژنو۔

الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ اَنْ يَّسْبِقُوْنَا

هغه کسان چه عملونه کوي ناکاره چه بچ به شي دوي د عذاب زمونږ نه،

سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ۝۴ مَنْ كَانَ يَرْجُوْا

بد دے هغه فیصله چه دوي يې کوي. هغه څوک چه عقیده لري

لِقَآءَ اللّٰهِ فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ لَاٰتٍ ؕ

د پیښې الله تعالی ته نو یقینًا نیټه د الله تعالی خامخا راتلونکے ده،

وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝۵ وَمَنْ جَاهَدَ

او هغه هر څه آوري او په هر څه پوهه دے. او چا چه ځان او کړو ..

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ، د دېنه مراد انبیاء علیهم السلام او مؤمنان مخکني دي. او خاص کر واقعه د موسی علیه السلام چه مخکښې سورت کښې ذکر شوے ده.

ىك :- په دے آیت کښې دویمه دعوی د سورت ده یعنې کوم خلق چه شرک او کفر کوي او د حق پرستو مخالفت کوي او هغوي ته مکرونه جوړوي (دے ته وئیلو ته سیاٰت وئیلے شي) نو هغوي د عذاب د الله تعالی نه بچ کیدے نشي. او په دېکښې تخویف د مکذبینو ته اشاره ده.

ىك :- دا متعلق دے د اولے دعوے سره په طریقه د ترغیب سره یعنې څوک چه د ملاقات د الله تعالی نه ویره کوي یا عقیده د هغے لري. (یس تیاري دے د هغے د پاره او کړي په مصیبتونو تیرولو سره) يَرْجُوْا لِقَآءَ اللّٰهِ، مراد د دے نه رویت (ردیدار) د الله تعالی دے په جنت کښې او دا ظاهره معنی ده یا د لقاء نه مراد دوباره ژوندي کیدل دي يَرْجُوْا په معنی د یعتقد سره دے او د من کان جزاء محذوفه ده یعنې فلیصبر علی البلایا (صبر دې اوکړي په مصیبتونو باندے).

فَإِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ

پس یقیناً کوی کوی د پاره د فائدے خپلے ، یقیناً الله تعالیٰ

لَغَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ ⑥ وَالَّذِينَ

خامخا بے پروا دے د تمام خلقو نه . او هغه کسان

آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُكَفِّرَنَّ

چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی برابر د سنت سره خامخا او به ریژوو مونږ

عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ

د دوی نه گناهونه د دوی او خامخا بدله به ورکړو مونږ دوی ته

أَحْسَنَ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ ⑦

ډیره ښائسته بدله د هغه عملونو چه دوی کول .

ف :- دا اول قسم د افتتان (امتحان) دے یعنی ځان کړول په ډیر محنت کولو سره د پاره د دعوت د ایمان او توحید دا مجاهدے بدنی او مالی دواړو ته شامل دے . او فایده د دے کړاؤ د دغه شخص د پاره ده ځکه الله تعالیٰ هغے ته محتاج نه دے .

ف :- دا بشارت اخروی دے او بیان د لِنَفْسِهِ دے . او په دے آیت کښ د عمل صالح نه دغه افتتان (امتحان) مراد دے . او لَنُكَفِّرَنَّ اشاره ده چه د جهنم نه به بچ وی . ځکه چه تکفیر د سیأتو سبب دے د پاره د حفاظت د سزا نه . او وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ کښ اشاره ده چه جنت به حاصل کړی .

أَحْسَنَ الَّذِي ، په معنیٰ د هغه عمل دے چه وی په اخلاص د اتباع سنت باندے او دا په مقابل د حسن کښ نه دے یا احسن نه مراد درجه د عزیمت ده او حسن نه مراد درجه د رخصت ده او جزاء نه مراد پوره جزاء ده .

وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ

او کلک حکم کړی دے موږ انسان ته دَ مور او پلار سره

حُسْنًا ۚ وَإِنْ جَاهَدَاكَ لِتُشْرِكَ

دَ ښۀ کولو، او که چرے دوی زور چلوي په تا پاندے دَ پاره دَ دے چه شریک جوړ کړے

بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا

ته ما سره هغه څوک چه نشته تا لره دَ هغوي په شرکت باندے هیڅ دلیل نو خبره مه

تُطِعْهُمَا ۚ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ

منه دَ دے دواړو، ما ته پیښي ستا سو ده نو خبر به درکوؤم تاسو ته

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٨﴾ وَالَّذِينَ

په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ. او هغه کسان

آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ

چه ایمان ئے راوړے دے او عملونه ئے کړی دی برابر دَ سنت سره خامخا داخل به کړو موږ دوی

فِي الصَّالِحِينَ ﴿٩﴾ وَمِنَ النَّاسِ

په ډله دَ نیکانو کاملانو کښ. او بعضے دَ خلقو نه

سه :- دا دویم قسم افتتان دے یعني کله به مور او پلار دعوت ورکوي اولاد موحدینو ته دَ شرک کولو او ډیره سختي به ورسره کوي دَ کور نه به ئے شړي، دَ عاق حکم به پرے کوي دَ پاره دَ دے چه دَ توحید نه منع شي. لیکن په دیکښ دَ هغوي طاعت کول جائز نه دی دا هم لوئے امتحان دے -او دا سے په سورة لقمان سه کښ هم دی او هلته به فرق ذکر شي۔

سه :- دا بشارت متعلق دے دَ دویم افتتان سره چه په دغه امتحان کښ کامیاب شي نو دَ صالحینو جماعت کښ به داخل شي په دُنیا او برزخ او آخرت کښ - او صَالِحِينَ ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو

مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ فَاِذَآ اُوْذِيَ

هغه څوک دي چه وائي ايمان راوړی مونږ په الله تعالیٰ باندي نو هرکله چه بد ورته اوشي

فِي اللّٰهِ جَعَلَ فِتْنَةَ النَّاسِ

په لاره د الله تعالیٰ کښي اوګرځوي فتنه د خلقو

كَعَذَابِ اللّٰهِ ۭ وَلَىِٕنْ جَاۗءَ نَصْرٌ

پشان د عذاب د الله تعالیٰ، او که چرې راشي مدد

مِّنْ رَّبِّكَ لَيَقُوْلُنَّ اِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ ۭ

د طرف د رب ستا نه خامخا وائي دوي يقيناً مونږ ستا ملګري يو،

اَوَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِمَا فِيْ

او آيا نه دے الله تعالیٰ ښۀ خبر لرونکے په هغه خبرو چه په

صُدُوْرِ الْعٰلَمِيْنَ ⑩ وَلَيَعْلَمَنَّ

سينو د خلقو کښي دي - او خامخا به ښکاره کوي

چه ناپوهه خلق داسے شخص ته رچه د مور او پلار اطاعت په شرک کښي نه کوي) نافرمان او مفسد وائي نو الله تعالیٰ ورته صالح اوئيل۔

سٹ:۔ دا دريم افتتان دے يعني د ايمان او د دعوت د حق د وجے نه خلق مخالف شي نو بعضے انسان منافقت شروع کړي ليکن مؤمن لره د داسے منافقت نه بچ کيدل پکار دي۔

فِتْنَةَ النَّاسِ، يعني د خلقو د مخالفت د ويرے نه حق خبره پريږدي۔ څه رنګه چه د عذاب د الله تعالیٰ نه ويره پکار ده او حق بيانول ضروري دي نو داسے دوي د خلقو د مخالفت کولو او ايذاء نه ويره کوي او د حق بيان پريږدي۔

نَصْرٌ، غلبه، مالونه، عزت حاصل شي په سبب د منکرتيا د مؤمنانو سره۔ او داسے په سورة حج سلا کښي هم دي۔

اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَيَعْلَمَنَّ

الله تعالیٰ هغه کسان چه ایمان یې راوړېدے او خامخا به ښکاره کوي

الْمُنٰفِقِيْنَ ﴿۱۱﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

منافقانو لره. او وائي هغه کسان چه کفر یې کړېدے

لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّبِعُوْا سَبِيْلَنَا

هغه کسانو ته چه ایمان یې راوړېدے تابعداري اوکړئ د لارے زمونږ

وَلْنَحْمِلْ خَطٰيٰكُمْ ؕ وَمَا هُمْ بِحٰمِلِيْنَ

او پورته به کړو ګناهونه ستاسو، او نه دي دوي پورته کوونکي

مِنْ خَطٰيٰهُمْ مِّنْ شَيْءٍ ؕ اِنَّهُمْ

د ګناهونو د هغوي نه هیڅ شے، یقیناً دوي

لَكٰذِبُوْنَ ﴿۱۲﴾ وَلَيَحْمِلُنَّ اَثْقَالَهُمْ

خامخا دروغژن دي. او خامخا به پورته کوي دوي پیټي خپل

اَوَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ، دا زجر دے په حال د دغه منافقانو باندے یعني څوک اٰمَنَّا وائي د رضا د الله تعالیٰ او څوک د پاره د حصول د دنیوي فائدو و دوارو نیتونو باندے الله تعالیٰ ته پوهه دے.

سلا:- دا نتیجه د دغه مخکښې ابتلاء ده یعني چه څوک په وخت د اذیت او مخالفت د خلقو کښې په حق باندے ټینګ شو نو هغه صحیح مؤمن دے. په سلا کښې د عامو ابتلاګانو نتیجه ده چه په هغے سره صدق او کذب معلومیږي او په دے آیت کښې د اٰمَنَّا سره متعلق ابتلاء ده نو هغه سبب د معرفت د اخلاص او د منافقت دے.

سلا:- دا څلورم امتحان دے یعني کافران مشرکان په شرک ته دعوت ورکوي او د حق پېتولو ترغیب به ورکوي او وائي به چه د دے آثار ګناه زمونږ په غاړه دي.

وَأَثْقَالًا مَّعَ أَثْقَالِهِمْ ۖ وَلَيُسْأَلُنَّ

او پیتی د گمراه کولو سره د پیتو خپلو نه او خامخا به تپوس کیږي شي د دوی نه

يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَمَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿١٣﴾

په ورځ د قیامت د هغه چه دوی ځنې دروغ جوړول.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ

او یقینًا لیږلے وو موږ نوح علیه السلام قوم د هغه ته

فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ

نو حصار شو په هغوی کښ زر کلو نه مګر پنځوس

عَامًا ۖ فَأَخَذَهُمُ الطُّوفَانُ وَهُمْ

کاله ، پس اونیوۀ دوی لره طوفان او دوی

ظَالِمُونَ ﴿١٤﴾ فَأَنجَيْنَاهُ وَأَصْحَابَ

ظلم کوونکي وو. پس بچ کړو موږ دے او هغه خلق چه په

زمخشري او خطیب شربیني وئیلي دي چه داسے حالات نن په مسلمانانو کښ هم شروع شوي دي د حق پټولو او د ګناه کولو دعوت ورکوي او ورته وائي چه آزار ګناه ئے زما په غاړه ده.

وَلْنَحْمِلْ خَطَايَاكُمْ، دا په معنیٰ د شرط کښ دے اِنْ تَتَّبِعُوا سَبِيلَنَا یعنی که تاسو زموږ په لار شوئ نو موږ به ستاسو د ګناهونو ذمه وار شو. نو د هغے رد ئے په دوؤ طریقو سره اوکړو. اول وَمَا هُمْ بِحَامِلِينَ لکه چه لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ په سورة فاطر ۱۸ سورة نجم ۳۸ کښ.

او دویم اِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ.

۱۳ دا رد دے د هغوی د قول په دریمه طریقه سره او تخویف اخروي دے. أَثْقَالَهُمْ د دینه مراد د دوی خپل ذاتي ګناهونه د کفر او شرک او حق پټولو دي. وَأَثْقَالًا، د دینه مراد هغه ګناهونه دي چه د دعوت د ګمراهئ په سبب سره پیدا کیږي لکه سورة نحل ۲۵ کښ دي.

۱۴ ۔ خلاصه ؛۔ د دے آیت نه تر ۱۸ پورے دویم باب دے په یکښ

السَّفِيْنَةِ وَجَعَلْنٰهَآ اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۵﴾

کشتئ کښې وو (کشتئ والا) او وګرځوله موږ دا قصه عبرت د پاره د ټولو خلقو۔

څلور انواع د ابتلاء اتو د انبیاء علیهم السلام ذکر کوی د پاره د تشجیع۔
اوله ابتلاء په اوږد عمر سره په دعوت او تبلیغ کښې سره د لګو ملګرو نه لکه واقعه د نوح علیه السلام۔
دویمه ابتلاء دعوت د توحید تفصیلاً او مخالفت د قوم او اور ته غورځول لکه واقعه د ابراهیم علیه السلام۔
دریمه ابتلاء د استهزاء د قوم او مطالبه د عذاب د هغوی لکه واقعه د لوط علیه السلام۔
څلورمه ابتلاء تکذیب د قوم او مسخرے کول لکه واقعه د شعیب علیه السلام۔
بیا ذکر د څلورو قومونو او عذاب په هغوی باندے په څلورو طریقو سره او دا تعلق لری د دویمے دعوے د سورت سره۔
تفسیر:۔ په دے آیت ۱۴ کښې واقعه د نوح علیه السلام په اختصار سره ذکر کوی او مقصود په کښې بیان د ابتلاء دے په اوږد عمر تیرولو سره د مصیبتونو نه په دعوت او تبلیغ کښې۔ د دے وجے نه په دے آیت کښې ئے د نوح علیه السلام عمر د هغه په قوم کښې ذکر کړے دے یعنی چه هغه په خپل قوم کښې څو مره عمر تیر کړے وو سره د مصیبتونو او دا پل سورت کښې نشته نو دا د اولے دعوے سره تعلق لری او عذاب د قوم د هغه ئے ذکر کړے دے دا د دویمے دعوے سره تعلق لری۔
فائده:۔ تسعمائة سنة وخمسين ئے نه دی وئیلی د یو څو وجو نه۔
یو وجه دا ده چه دا عبارت مختصر دے د دغه عبارت نه۔
دویمه وجه دا ده چه دا عظمت شان د دے ابتلاء دے چه اول ئے غټ عدد ذکر کړو نو بیا ئے ترینه استثناء او کړله۔
دریمه وجه دا ده چه په دے عبارت کښې پوره مقصد ادا کول دی ځکه چه لفظ د سنة په تکلیف باندے دلالت کوی او لفظ د عاما په فراخئ باندے دلالت کوی یعنی د پرکلونه په تکلیف کښې تیر شول او نحوس کلونه په فراخئ کښې تیر شول۔
س ۱۵:۔ په دے آیت کښې تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم او د هغه

وَاِبْرٰهِيْمَ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ اعْبُدُوا
او لیږلے وو موږ ابراهیم علیه السلام کله چه اوویل هغه قوم خپل ته بندګي خاص کوئ
اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ ۭ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ
د الله تعالیٰ او ویرېږئ د هغه نه، دا به غوره وی تاسو لره
اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۶﴾ اِنَّمَا تَعْبُدُوْنَ
که چرے تاسو پوهېږئ۔ یقینًا بندګي کوئ تاسو
مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا وَّتَخْلُقُوْنَ
سوا د الله تعالیٰ نه د شکلونو جوړ شوو او جوړوئ تاسو
اِفْكًا ۭ اِنَّ الَّذِيْنَ تَعْبُدُوْنَ
دروغ قصے، یقینًا هغه کسان چه بندګي کوئ تاسو

تابعدارانو ته په نجات او سلامتیا سره۔
اَصْحٰبُ السَّفِيْنَةِ، تفسیر سراج المنیر مرفوع روایت بلا سند سره راوړے دے چه دوی سره د نوح علیه السلام نه اووه کسان وو۔ سَفِيْنَة هغه کشتۍ چه په او بو کښې روانه وی۔
اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ، یعنی دا واقعه عبرت دے ټولو خلقو لره۔ یا دغه کشتۍ نخه د عبرت ده په اعتبار د مثل د هغه کشتۍ سره لکه سورة یٰس ۴۲ کښې دی۔
ملا:۔ دا واقعه د ابراهیم علیه السلام ده د بیان د دویم قسم ابتلاء د پاره چه هغه اور ته غورځول او د ملک نه هجرت کول دی د وجے د دعوت د توحید نه۔ په دے آیت کښې بیان د توحید دے او منع ده د شرک نه سره د بیان د فائدے د هغے نه اجمالًا په لفظ د خَيْرٌ سره چه هغه خیر دنیوی اخروی دواړو ته شامل دے۔
اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ کښې اشاره ده چه د خیر او شر د تمیز د پاره علم شرط دے۔

مِن دُونِ اللّٰهِ لَا يَمْلِكُونَ لَكُمْ
(د معبودی) سوا د الله تعالٰی نه وس نه لری تاسو لره
رِزْقًا فَابْتَغُوا عِندَ اللّٰهِ الرِّزْقَ
د روزئ نو اولټوئ د الله تعالٰی سره روزی
وَاعْبُدُوهُ وَاشْكُرُوا لَهُ ۖ إِلَيْهِ
او بندګی خاص کرئ د هغه او شکر کوئ د هغه، او خاص هغه ته به
تُرْجَعُونَ ﴿١٧﴾ وَإِن تُكَذِّبُوا
ورګرځولے شئ۔ او که چرے تاسو دروغژن کوئ ما لره
فَقَدْ كَذَّبَ أُمَمٌ مِّن قَبْلِكُمْ ۖ
نو یقینًا دروغژن کړے وو ډیر امتونو مخکښ ستاسو نه (رسولانو لره)،

مکل:۔ په دے آیت کښ رد دے په شرک باندے په درے طریقو سره او درے اوامر دی د پاره د توحید۔

اَوْثَانًا: یعنی دا جوړ کړے شوے اله دی نو دوی حقدار د بندګئ نشی کیدلے۔ ځکه چه وَثَن هر هغه څیز دے چه جوړ کړے شی او بندګی د هغے کیدے شی که بت وی او که قبر وی صلیب وغیره باندے اطلاق کیدے شی۔

اِفْكًا: یعنی د دوی د معبودیت د پاره تاسو دروغ قصے جوړے کړے دی۔

رِزْقًا: یعنی لوے حاجت د انسانی حاجتونو نه رزق دے او هیڅ معبود مِن دُونِ اللّٰهِ د هیڅ قسم رزق اختیار نه لری او د اخری دریو اوامرو مطلب دا دے چه سبب د رزق او د ترقئ د هغے د الله تعالٰی بندګی ده په توحید سره او د هغه شکر ادا کول دی۔ او ورسره عقیده د آخرت ده۔

فائده:۔ اول رِزْقًا نکره او دویم اَلرِّزْقَ معرفه ذکر کړے ده ځکه چه نکره په سیاق د نفی کښ عموم فائده کوی یعنی ستاسو

وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۸﴾

او نشته په رسول باندے مګر رسول ښکاره دی۔

اَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ يُبْدِئُ اللّٰهُ الْخَلْقَ

آیا او دوی نه ګوری چه څرنګه اول پیدائش کوی الله تعالیٰ د مخلوق

اِلٰہٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ دَ هیڅ قسم رزق طاقت نه لری او معرفه دَ پاره دَ کمال ده یعنی دَ الله تعالیٰ سره پوره رزق دے۔

ملا دَ دے آیت نه تر ۲۳ پورے په یکښ دوه احتمالونه دی۔ اول دا چه دا داخل دے په واقعه دَ ابراهیم علیه السلام کښ څه په طریقه دَ خطاب او څه په طریقه دَ غائب سره التفاتاً او څه په طریقه دَ حکایت کولو سره دَ قول دَ الله تعالیٰ نه او دا قول ابن کثیر خوره کړے دے۔

دویم احتمال دا دے چه دا آیاتونه په مینځ دَ واقعه دَ ابراهیم علیه السلام کښ په طریقه دَ جملے معترضے سره دی او حال کُ دے امت دَ منکرینو دے او دا قول ابن جریر خوره کړے دے۔

وَاِنْ تُكَذِّبُوْا ، بناء په اول احتمال سره دا قول دَ ابراهیم علیه السلام دے یعنی هغه اُوئیل وَاِنْ تُكَذِّبُوْنِیْ او دَ دے جزاء پټه ده چه فَلَا يَضُرُّنِي التَّكْذِيْبُ ۔ لیکن په دے توجیه باندے دا اعتراض دے چه دَ ابراهیم علیه السلام نه مخکښ ډیر امتونه مکذبه نه دی تیر شوی او دلته ئے جمع وئیلے ده اُمَمٌ ؟

جواب دا دے چه قوم نوح او عاد او ثمود وغیره قومونه تیر شوی دی۔ او بنا په دویم احتمال سره دا خطاب دَ الله تعالیٰ دے موجوده مکذبینو ته په طریقه دَ زجر سره۔

۱۹:۔ په دې آيت کښې اثبات د بعث بعد الموت دې روستو د اثبات د توحيد او د رسالت نه۔
اَوَلَمْ يَرَوْا، مراد د دينه علم دې او کيفيت د پيدائش د انسان هر ذی عقل ته معلوم دې اګرچه په سترګو نه ښکاريږي۔
ذٰلِكَ اشاره ده مجموعه د اول او دويم پيدائش ته يعنې دا دواړه کارونه په الله تعالیٰ باندې اسان دي۔
۲۰:۔ په دې کښې اثبات د بعث بعد الموت دې په نظر کولو سره په نورو مخلوقاتو کښې او تيرشوي آيت کښې دليل وو په فکر کولو سره په خپل پيدائش کښې يعنې هغه دليل نفسي وو او دا دليل آفاقي دې۔
بَدَاَ الْخَلْقَ، يعنې اول پيدائش د حيواناتو، نباتاتو، او نور بوټو وغيره۔
فائده:۔ اول آيت کښې يُبْدِئُ فعل مستقبل ذکر دې او په دې آيت کښې بَدَاَ فعل ماضي ذکر کړې دې ځکه انسان د هغه انسانانو په پيدائش کښې فکر کولې شي چه د دۀ نه روستو مستقبل کښې پيدا

يُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ وَيَرْحَمُ مَن يَشَآءُ ۖ وَإِلَيْهِ تُقْلَبُونَ ﴿۲۱﴾

عذاب به ورکوي هغه چاته چه اوغواړي او رحم به کوي په هغه چا باندے چه اوغواړي او خاص هغه ته به اوګرځولے شئ تاسو.

وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ فِى الْأَرْضِ وَلَا فِى السَّمَآءِ ۖ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿۲۲﴾

او نه یئ تاسو عاجز کوونکي (الله تعالیٰ لره) په زمکه کښ او نه په آسمان کښ او نشته تاسو لره سوا د الله تعالیٰ نه هیڅ بچ کوونکے او نه مددګار.

کیږي او هرچه نور اشیاء دي نو په هغے کښ خو په مخکښ پیښ اکړ پیشوے څیزونو باندے هم نظر کولے شي.

۲۱:- دا نتیجه ده د ماقبل بیان د یارهٔ او تخویف او ترغیب دے - او هر کله چه ماقبل کښ د کافرانو ذکر ئے کړیدے د دے وجے نه عذاب ئے اول ذکر کړو - او مَن يَشَآءُ مکرر راوړلو کښ اشاره ده چه په الله تعالیٰ باندے هیڅ قسم اعتراض څوک نشي کولے.

تُقْلَبُونَ ، قلب ګرځیدل دي دا سے حالت ته چه د اول حال نه بدل وي او قیامت هم دا سے دے.

۲۲:- دا علت د ماقبل دے یعني عذاب د دے وجے نه ورکولے شي چه الله تعالیٰ سره څوک مقابله نشي کولے.

وَلَا فِى السَّمَآءِ په دے کښ تقدیر د عبارت دے لَوْ كُنتُمْ فِيهَا (یعني که بالفرض تاسو آسمان ته لاړ شئ) یا وَمَآ أَنتُمْ خطاب عام دے آسماني ملائک هم پکښ داخل دي.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ وَلِقَائِهِ

او هغه کسان چه کفر ئې کړے دے په آيا تونو د الله تعالى او په ملاقات د هغه باندې

أُولَٰئِكَ يَئِسُوا مِن رَّحْمَتِي وَأُولَٰئِكَ

دغه کسان نا اميده دي د رحمت زما نه او دغه کسان

لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٢٣﴾ فَمَا كَانَ

دوی لره عذاب دردناک دے. نو نه وُو

جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَن قَالُوا

جواب د قوم د هغه مګر دا چه دوی وئيل

اقْتُلُوهُ أَوْ حَرِّقُوهُ فَأَنجَاهُ

اُوژنئ دا لره يا اوسيزئ دا لره نو بچ کړو دا لره

اللَّهُ مِنَ النَّارِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ

الله تعالى د اور نه يقينًا په دېکښې ډير عبرتونه دي

لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٢٤﴾ وَقَالَ إِنَّمَا

د پاره د هغه قوم چه ايمان راوړي. او اوئيل ابراهيم عليه السلام يقينًا

۲۳:۔ دا هم داخل دے په تخويف کښ. هر کله چه مخکښ توحيد او بعث بعد الموت ذکر کړو نو په دے آيت کښ ئې منکرينو د توحيد (په آيت الله) او منکرينو د بعث په (لِقَآئِهٖ) ته تخويف شروع ذکر کړو ځکه چه يَئِسُوا سره اشاره ده د جنت نه محروم کيدل. عَذَابٌ اَلِيْمٌ کښ اشاره ده دخول د جهنم ته.

۲۴:۔ په دېکښ اشاره ده عناد او تکبر د دغه قوم ته چه هغوی سره هيڅ جواب نه وُو پکار دا وه چه چپ شوي وے ليکن دوی د تکبر د وجے نه غير جواب لره جواب اوګڼړلو د دے وجے اوئيلے شو جَوَابَ قَوْمِهٖ.

اُقْتُلُوْهُ، په دېکښ اشاره ده قول د پلار د ابراهيم عليه السلام ته چه هغه

اتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا ۙ
جوړکړي دي تاسو سوا د الله تعالیٰ نه معبودان (په طاعت کښې)
مَّوَدَّةَ بَيْنِكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ
د پاره د دوستانې په مینځ ستاسو کښې په ژوند د دنیوی کښې
ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ
بیا په ورځ د قیامت به انکار اوکړي بعضې ستاسو
بِبَعْضٍ وَّيَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا ۡ
د بعضو نه او لعنت به اوکړي بعضې ستاسو په بعضو باندې
وَّمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ
او ستاسو ځاے اور دے او نشته تاسو لره هیڅوک
نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۵﴾ فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ ۘ
مددګاران۔ نو ایمان تسلیم کړو هغه ته لوط علیه السلام

په سورة مریم کښې ذکر دی۔

اَوْ حَرِّقُوْهُ، قول وړ د قوم د هغه لکه سورة انبیاء ۶۸ کښې دی۔
لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ، ډیر دلیلونه او عبرتونه دی بعضې د هغې نه دا دی۔ ۱ کامل قدرت او تصرف د الله تعالیٰ ۲ د اور نه اثر د سوځولو ختمول ۳ خاشاک لره سوځول او ابراهیم علیه السلام نه سیزل ۴ موحدینو لره تسلی د نجات وغیره۔

۲۵ :- دا لوے شجاعت د ابراهیم علیه السلام دے چه روستو د بیج کیدلو د اور نه ئے صاف توحید بیان کړو د دے د پاره چه څوک او نه وائی چه ابراهیم علیه السلام اوویریدو او دعوت د توحید ئے پریخودلو۔
په ۱۷ کښې رد وړ په شرک بالعباد الصالحین باندے او په دے آیت کښې رد دے په شرک بالعباد المفسدین باندے یعني رد دے په

وَقَالَ اِنِّیْ مُهَاجِرٌ اِلٰی رَبِّیْ ؕ

او اُوئیل هغهٔ یقیناً هجرت کوونکے یم طرف د خپل رب ته،

اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ﴿۲۶﴾

یقیناً هغهٔ زور آور حکمتونو والا دے۔

وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ

او بخشش ورکړو مونږ دهٔ ته اسحاق او یعقوب

شرک فی التحلیل والتحریم باندے چه هغه تقلیں د ناکاره ملایانو او پیرانو وغیره دے۔

مَوَدَّةَ بَیْنِکُمْ، یعنی د وجے د تعلق د پیری مریدئ او استاذئ او شاګردئ او مقلَد او مقلِد او تابع و متبوع وغیره۔

وَیَلْعَنُ بَعْضُکُمْ بَعْضًا، داسے په سورة اعراف ۳۸ کښ هم ذکرشوے دی او دارنګ په آیاتونو د براءت په مینځ د عابدانو معبودانو کښ بیان شوی دی لکه سورة بقرة، سورة ابراهیم، سورة احزاب، سورة سبا، سورة صافات، سورة ص، حٰمٓ مؤمن وغیره کښ۔

۲۶:۔ روستو د ابتلاء بالنار نه دویمه ابتلاء د ابراهیم علیه السلام هجرت کول دی چه هجرت ئے اوکړو د سوا دالکوفه نه حران ته او بیا ارضِ مقدسے ته او ورسره لوط علیه السلام او ساره رضی الله عنها وه

فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ، د ابراهیم علیه السلام وساره وۀ ایمان ئے ښکاره کړو ځکه چه نبی د مخکښ نه مؤمن وی وَقَالَ ضمیر ابراهیم یا لوط علیهم السلام ته راجع دے۔

اِلٰی رَبِّیْ، لام ئے ځکه نه دے وئیلے چه په هغے کښ دلالت دے په صرف اخلاص باندے او په اِلٰی کښ سره د اخلاص نه دلالت دے چه مکان د هجرت یه هم په امر او په رضا د الله تعالیٰ سره وی۔

وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ

او خاص کړه موږ په اولاد د ده کښې پیغمبری او کتابونه

وَاٰتَيْنٰهُ اَجْرَهٗ فِي الدُّنْيَا ۚ وَاِنَّهٗ

او ورکړیوه موږ ده ته بدله د ده په دنیا کښې او یقینًا دے به

فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۲۷﴾ وَلُوْطًا

په آخرت کښې خامخا د یوره نیکانو نه وی ۔ او یاد کړئ لوط علیه السلام

اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ

کوم وخت چه اُوئیل هغهٔ قوم خپل ته یقینًا تاسو خامخا راتلل کوئ

۲۷:۔ دا په صبر د ابتلاء اتو باندے څلور نتیجے ذکر کوی اول بشارت په څوئے او نوسی سره ۔ او د نوسی په بشارت کښې اشاره ده اوږدوالی د عمر ته تر دے پورے چه نوسے په اُوبتی او ذکر د اسماعیل علیه السلام نۀ څکه او نکړو چه په دے هجرت کښې د ده سره ساره رضی الله عنها مور د اسحاق علیه السلام ملګرے وه نو دا بشارت هغې ته هم دے ۔

دویمه نتیجه د ابراهیم علیه السلام په اولاد کښې انبیاء او آسمانی کتابونه خاص کول چه د هغه نه روستو هیڅ نبی د هغه د اولاد نه بغیر نه دے راغلے او څوک چه دعوی د نبوت کوی په دروغه سره لکه مرزا غلام محمد قادیانی نو هغهٔ خپل نسب د ابراهیم علیه السلام نه نشی ثابتولے ۔

دریمه نتیجه د دنیا بعضے نعمتونه دی لکه فراخی د رزق کثرت د اولاد، نیک ذکر په خلقو کښې ۔ محبت د عاموخلقو د طرف نه په ځان منسوب کولو سره هغه ته وغیره ۔ چه یهود او نصارٰی او مشرکین عرب ټولو وئیل چه موږ په دین ابراهیمی باندے یو ۔

څلورمه نتیجه په آخرت کښې د جماعت د کامیابو او کامل صالحینو نه کیدل ۔

الْفَاحِشَةَ ۫ مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ

بدکارئ ته چه وړاندے والے نه دے کړے ستاسو نه هیڅ یو تن بے

أَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۸﴾ أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُوْنَ

هیچا د خلقو نه ۔ آیا تاسو راتلل کوئ

الرِّجَالَ وَتَقْطَعُوْنَ السَّبِيْلَ ۙ وَتَأْتُوْنَ

نارینو ته او بندوئ لارے ، او راتلل کوئ

فِيْ نَادِيْكُمُ الْمُنْكَرَ ؕ فَمَا كَانَ جَوَابَ

په مجلسونو خپلو کښ بدکارو ته ۔ نو نو ؤ جواب

قَوْمِهٖٓ إِلَّآ أَنْ قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللّٰهِ

د قوم د دهٔ مګر داچه اُوئیل دوی راوړه موږ ته عذاب د الله تعالیٰ

إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۲۹﴾ قَالَ رَبِّ

که چرے ته یے د رشتینو نه ۔ اُوئیل هغه اے ربه زما

سٹ۲۸ :۔ دا دریمه قصه ده د پارهٔ د بیان د دریم قسم ابتلاء ، او هغه مصیبتونه دی په لوط علیه السلام باندے او مخالفت د قوم د هغه په طریقه د استهزاء او طلب د عذاب د هغه نه چه د هغے ذکر په سورة هود او سورة حجر او سورة شعراء کښ تیر شوی دے ۔

مَا سَبَقَكُمْ ، دا مزین قباحت ته اشاره ده دا سے په سورة احراف ۸۰ کښ تیر شوی دی۔

سٹ۲۹ :۔ په دیکښ ذکر د نورو قباحتونو د هغوی دے او اول تفسیر د فاحشه دے۔

وَتَقْطَعُوْنَ السَّبِيْلَ ، مراد ترینه لارے شوکول او مسافرو سره فاحشه کول په زور چه هغه سبب د شاړولو د لارو دے یا مراد ترینه نسل قطع کول دی په سبب د پریښودلو د استعمال د ښځو سره ۔

وَتَأْتُوْنَ فِيْ نَادِيْكُمُ الْمُنْكَرَ ، دا عام لفظ دے شامل دے فاحشه کول

انْصُرْنِيْ عَلَى الْقَوْمِ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۳۰﴾ وَلَمَّا

مدد اوکړه ما سره په مقابله دَ قوم فساد کوونکو کښې. او هرکله چه

جَآءَتْ رُسُلُنَآ اِبْرٰهِيْمَ بِالْبُشْرٰى ۙ قَالُوْٓا

راغلل ملائک زمونږه ابراهیم علیه السلام ته په زیری سره اوئیل دوی

اِنَّا مُهْلِكُوْٓا اَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ ۚ اِنَّ اَهْلَهَا

یقینًا مونږ هلاک کوونکی یو اوسیدونکو دَ دے کلی لره، یقینًا اوسیدونکی دَ دے

كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿۳۱﴾ قَالَ اِنَّ فِيْهَا لُوْطًا ۭ قَالُوْا

دی ظلم کوونکی. اوئیل ابراهیم علیه السلام یقینًا په هغے لوط شته، اوئیل دوی

دَ خلقو په وړاندے او په کانړو باندے ویشتل دَ خلقو، او په خلقو پسے کنځل کول او شپیلی وهل وغیره. فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖ رلا، په سورة اعراف و نمل کښې دَ هغوی جواب په اخراج (ویستل دَ لوط علیه السلام دَ کلی نه) سره ذکر دے او په دے سورت کښې په طلب دَ عذاب سره دَ دے او په دواړو ځایونو کښې جمله دَ حصر ذکر ده نو دا خو ښکاره تعارض دے جواب دے په دوه وجو سره.

اوله وجه دا ده چه دا مطالبه په اول ځل کښې وه او هر کله چه لوط علیه السلام بیا بیا وعظ دوی ته کوو نو بیا دوی جواب اوکړو دَ هغه په اخراج سره.

دویمه وجه دا دواړه حصرونه اضافی دی یعنی دے سورت کښې مراد دا دے چه نور جواب دَ قوم په باره دَ خپل ځان کښې مګر په طلب دَ عذاب سره. او په سورة اعراف او سورة نمل کښې مراد دا دے چه نور جواب دَ قوم دَ هغه په باره دَ لوط علیه السلام کښې مګر په اخراج سره.

۳۰: روستو دَ نا امیدئ نه دَ ایمان دَ قوم نه دُعا دَ نصرت او دعا دَ عذاب ده په قوم باندے. دا دعا دلالت کوی چه هغوی لوط علیه السلام ته ډیر اذیتونه رسولے وو دَ دے وجے نه هغوی ته ئے مفسدین اوئیل.

۳۱: دعا دَ هغه قبول شوه او الله تعالٰی ملائیک رالیږل اول بشارت ورکوونکی ابراهیم علیه السلام ته. او بیا خبر ورکوونکی په باره دَ قوم دَ لوط

نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَنْ فِيْهَا لَنُنَجِّيَنَّهٗ وَاَهْلَهٗۤ اِلَّا

موږ ښه خبر یو په هغه چا باندې چه په هغې کښې دي خامخا به یې کړو موږ. هغه لره او د هغه کورنۍ لره

امْرَاَتَهٗ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۳۲﴾ وَلَمَّاۤ اَنْ جَآءَتْ

ښځه د هغه وي به د پاتې کيدونکو نه. او هر کله چه راغلل

رُسُلُنَا لُوْطًا سِیْٓءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا

ملائک زموږ لوط علیه السلام ته خفه کړے شو په هغوی او تنګ يې شو په دوی باندې زړه

وَّقَالُوْا لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ اِنَّا مُنَجُّوْكَ

او وئیل دوی مه ویریږه او مه خفه کیږه یقینًا موږ بچ کوو تا لره

وَاَهْلَكَ اِلَّا امْرَاَتَكَ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۳۳﴾

او کورنۍ ستا مګر ښځه ستا وي به د پاتې کيدونکو نه۔

علیه السلام کښې۔ او حکمت دا دے چه یو قوم مکمل به که هلاک کړے شي پروا نشته ځکه چه الله تعالیٰ د هغوی په عوض کښې یو صالح سړے پیدا کوي۔

بِالْبُشْرٰى، ظاهر دا ده چه مراد د دینه بشارت دے په ولد (اسحاق علیه السلام) سره۔

اِنَّا مُهْلِكُوْٓا، دا دویم بشارت دے لیکن ابراهیم علیه السلام پدے دویم بشارت اولًا رضا نه وو۔

۳۲۔ مقصد د ابراهیم علیه السلام تاخیر د عذاب وو د دے قوم نه، پدے امید سره چه دوی به ایمان راوړی۔ او علت د هغے یې ذکر کړو چه لوط علیه السلام په هغوی کښې موجود دے او په وخت د وجود د نبی په هغه قوم کښې عذاب نه راځي نو ملائکو جواب ورکړو چه لوط علیه السلام به اول بچ کړے شي بیا به په هغوی باندے عذاب راځي۔

لَنُنَجِّيَنَّهٗ، هر کله چه ملائک رُسل وي او قول د رسول قول د مرسل وي نو معلومه شوه چه نَحْنُ اَعْلَمُ آه قول د الله تعالیٰ دے۔

۳۳۔ پدے آیت کښې یې آنْ راوړو او مخکښې یې آنْ نه وو ذکر کړے

إِنَّا مُنزِلُونَ عَلَىٰ أَهْلِ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ

یقینًا موږ راکوځوونکي یو په دے کلي والو باندے

رِجْزًا مِّنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا

سخت عذاب دَ آسمان دَ طرف نه پدلے دَ وجه چه دوي

يَفْسُقُونَ ﴿٣٤﴾ وَلَقَد تَّرَكْنَا مِنْهَا

نافرماني کوله. او یقینًا پریخودله موږ دَ هغے کلي نه

آيَةً بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٣٥﴾ وَإِلَىٰ

نخښه ښکاره دَ پاره دَ عبرت دَ داسے قوم چه عقل لري. او لیږلے وو

وجه داده ، اَنۡ دلالت کوي په اتصال باندے نو مخکښ قول دَ ملائکو متصل نه وۀ په راتللو دَ ملائکو پورے نوره تشریح په سورة هود کښ تیره شویده.

لَا تَخَفۡ . مه ویږه په موږ باندے. وَلَا تَحۡزَنۡ، او مه غمژن کیږه دَ دوي په عذاب او هلاک باندے.

كَانَتۡ مِنَ الۡغٰبِرِيۡنَ ، په ۳۲ او په ۳۳ کښ فرق دا دے چه هلته مراد دا دے چه دَ هغوي سره په عقیده کښ شریکه ده او دلته مطلب دا دے چه دَ هغوي سره په عذاب کښ شریکه ده.

۳۴ :- روستو دَ بشارت دَ نجات نه انذار دے په عذاب دَ قوم سره. رِجۡزًا ، کښ اشاره ده بارات دَ کاڼو ته سره دَ صیحه نه چه دَ آسمان دَ طرف نه په نازلیږي یا من السماء په معنیٰ دَ مقدر من السماء دے.

۳۵ :- اٰيَةً بَيِّنَةً ، مراد دَ دینه دَ دوي کنډرات یا کاڼي نازل کړے شوي چه باقي وۀ تر ډیر وخت پورے یا تورے او په یعني دَ بحر اسود هغه حصّه چه حیوان پکښ ژوندے نشي پاتے کیدے.

فائده :- په واقعه دَ نوح او ابراهیم علیهما السلام کښ دلیل دَ قدرت په انجاء کښ ذکر کړے وۀ او په واقعه دَ لوط علیه السلام کښ دلیل دَ قدرت په هلاکت کښ ذکر کړے دے اشاره ده چه په دواړه حالتونو

مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا فَقَالَ يٰقَوْمِ

مدین ته ورور د هغوی شعیب علیه السلام نو اُوئیل هغهٔ اے زما قومه

اعْبُدُوا اللّٰهَ وَارْجُوا الْيَوْمَ الْاٰخِرَ

بندګي خاص کړئ الله تعالى لره او عقیده لرئ په ورځ روستنئ

وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿۳۶﴾

او مه ګرځئ په ملک کښې فساد کوونکي۔

فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ

نو دوی هغه ته دروغژن اُوئیل نو او نیوه دوی لره زلزلے

کښې دلیلونه د قدرت د الله تعالى دی۔ دا رنګ په واقعه د نوح علیه السلام کښې عالمین ته اُوئیل شوی چه امثال د کشتئ په ټول عالم کښې شته خلق ترینه عبرت اخستلے شی او په واقعه د ابراهیم علیه السلام کښې ئے د مؤمنانو تخصیص اوکړو ځکه چه په هغې کښې ایات د تشجیع او تسلئ دی او هغه خاص دی په مؤمنانو پورے او په واقعه د لوط علیه السلام کښې ئے لِقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ، اُوئیل ځکه چه د هغوی کنډرات په خاص ځائے کښې دی او څوک چه په هغې باندے ورتیریږی او عقل لری نو هغه ترینه عبرت اخستلے شی۔

سلام۔ دا څلورمه قصه ده د پاره د بیان د څلورم ابتلاء چه هغه تکالیف دی په شعیب علیه السلام باندے۔ چه په سورة هود او شعراء کښې د هغې تفصیل ذکر دے۔ او تکذیب د قوم د هغهٔ په طریقه د ډیرے بے ادبئ سره لکه چه سورة هود کښې ذکر شوے دے) او د دې په واقعه کښې دعوت دے توحید ته او عقیدے د یوم آخر ته او منع ده د هر قسم فساد نه یعنی شرک او خیانت په پیمانه او وزن او په مالونو د خلقو کښې۔

فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جٰثِمِينَ ﴿۳۷﴾ وَعَادًا

نو شول (په وخت د صبا کښې) په کورونو خپلو کښې مړي جوخت شوي په زمکو پورې. او هلاک کړي مونږ عادیان

وَّثَمُودَا وَقَدْ تَّبَيَّنَ لَكُمْ مِّنْ

او ثمودیان او بنه ښکاره دي تاسو ته (حالات) د هغوی) د

مَّسٰكِنِهِمْ ۚ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ

مکانونو د هغوی نه او خائسته کړيوو دوی ته شیطان

أَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ

عملونه د دوی نو بند کړي وو دوی لره د لارې د توحید نه

وَكَانُوا مُسْتَبْصِرِينَ ﴿۳۸﴾ وَقَارُونَ

او دوی وو هوښیاران. (او هلاک کړي دي مونږ) قارون

ف ۳۷ :- رَجْفَةٌ، زلزله د زمکې مراد ده یا مصیبت د زړونو پیړ (شو یوه په سبب د صیحه سره ځکه سورة هود کښې صیحه ذکر ده او سورة اعراف کښې او دلته ئې رجفه ذکر کړیده - بیا هر کله چه رجفه کښې خپل هیبت ډیر وو د دې وجې نه دار جمع ذکر کولو ته ضرورت نشته او د صیحه هیبت د رجفې نه کم دې نو د دې وجې د زیات هیبت د پاره ئې دیار د صیحه سره جمع ذکر کړې دے.

ف ۳۸ :- دا ذکر د عذاب د دوؤ قومونو دے او دا متعلق دے د سورت د دویمې دعوې سره.

وَقَدْ تَّبَيَّنَ، فاعل ئې پټ دے عَذَابُهُمْ وَأَحْوَالُهُمْ یا مِنْ په معنیٰ د بعض دے او فاعل دے ځکه چه د هغوی بعضې کنډرات باقي وو.

فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ، یعنې شرک و بدعات وغیره خائسته ښکاره کیدل سبب دے د منع کیدلو د توحید او سنت نه.

مُسْتَبْصِرِينَ، دا جواب د وهم دے چه شیطان ځکه دهوکه کړې وو چه دوی ساده کان وو. جواب او شو چه دوی ډیر هوښیار وو.

فائده :- دا عام کافرانو او مشرکانو په باره کښې وئیلې شوي دي لا یعقلون

وَفِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ ۚ وَلَقَدْ جَآءَهُمْ

او فرعون او هامان لره او یقیناً راغلی وؤ دویته

مُّوْسٰی بِالْبَیِّنٰتِ فَاسْتَکْبَرُوْا فِی الْاَرْضِ

موسیٰ علیه السلام په ښکاره معجزاتوسره نو لویئ اوکړه هغوی په ملک کښې

وَمَا کَانُوْا سٰبِقِیْنَ ﴿۳۹﴾ فَکُلًّا اَخَذْنَا

او نه وؤ دوی بچ کیدونکی د عذاب نه - پس هریو لره او نیوؤ مونږ

بِذَنْۢبِهٖ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ اَرْسَلْنَا عَلَیْهِ

په ګناه د هغه سره نو بعضے د دوی نه هغه دی چه را اولیږلو مونږ په هغوی باندے

حَاصِبًا ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ اَخَذَتْهُ الصَّیْحَةُ ۚ

سیلئ کا نړی ویشتونکے او بعضے د دوی نه هغه دی چه او نیوؤ هغوی لره تیزے چغے

وَمِنْهُمْ مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ الْاَرْضَ ۚ

او بعضے د دویته هغه دی چه خخ کړو مونږ په زمکه کښې

او دلته ئے ورته مُسْتَبْصِرِیْنَ، اوئیل داخو تعارض دے؟

جواب دا دے چه بے عقلی په باره د امورو د آخرت کښې ده او هوښیارتیا په باره د امورو د دنیا کښې ده لکه په سورة روم کښې فرمائیلی دی یَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ۔

۳۹:- په دے آیت کښې ذکر دے د نورو اقوامو مکذبو د پاره د تخویف دنیوی۔ او دا هم متعلق دے د دویم دعوے د سورت سره په قرینه د مَا کَانُوْا سٰبِقِیْنَ سره او د دوی د اقتدار او مالدارئ د وجے نه د دوی علت د عذاب استکبار ذکر کړو۔

وَمِنْهُمْ مَّنْ أَغْرَقْنَا ۚ وَمَا كَانَ اللَّهُ

او بعضے دَ دوی نه هغه دی چه غرق کړی دی مونږ او نه دۀ الله تعالیٰ

لِيَظْلِمَهُمْ وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ

چه په دوی باندے ظلم کړیوے لیکن دوی په ځانونو خپلو باندے

يَظْلِمُونَ ﴿٤٠﴾ مَثَلُ الَّذِينَ اتَّخَذُوا

ظلم کوؤ۔ حال دَ هغه کسانو ا چه نیولے ئے دی

مِن دُونِ اللَّهِ أَوْلِيَاءَ كَمَثَلِ

سوا دَ الله تعالیٰ نه مددګاران (معبودان) مثال دَ حال

الْعَنكَبُوتِ اتَّخَذَتْ بَيْتًا ۖ وَإِنَّ

دَ جولاګی دے چه جوړ کړیوی کور، او یقینًا

أَوْهَنَ الْبُيُوتِ لَبَيْتُ الْعَنكَبُوتِ

ډیر کمزورے دَ کورونو نه خامخا کور دَ جولاګی دے

ف۴ : په دے آیت کښ ذکر دے دَ څلورو قسمونو دَ عذاب دنیوی سره۔

حَاصِبًا، عذاب دَ داسے سیلئ چه کانړی اولی او دا عذاب دَ عادیانو او دَ قوم لوط وۀ۔

الصَّيْحَةُ، دا عذاب دَ ثمودیانو او دَ اصحاب مدین وۀ۔

خَسَفْنَا، دا عذاب دَ قارون وۀ۔

أَغْرَقْنَا، دا عذاب دَ قوم نوح او قوم فرعون او هامان وۀ او سبب دَ عذاب دَ ټولو دا دے وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ځکه چه ظلم عام دے کفر شرک عمل دَ قوم لوط عمل دَ قوم شعیب او استکبار دَ فرعونیانو ته شامل دے۔

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۱﴾ إِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا

که چیرې دوی پوهیدلې . یقینًا الله تعالیٰ پیژنی (حال) د هغه څه چه

سل :- خلاصه :- د دې آیت نه دریم باب دې تر ســ۵ پورې په دې کښې مثال دې د پاره د رد د شرک او ذکر د څلورو صفاتو د الله تعالیٰ دې د پاره د اثبات د توحید بیا طریقه د دعوت ده په ذکر د څلورو آدابو بیا اثبات د صدق د رسول دې په څلورو طریقو سره بیا زجر دې په عذاب طلب کولو د دنیا او د آخرت او ذکر د څلورو احوالو د منکرینو دې .

تفسیر :- د دې آیت سل مناسبت د مخکښې سره دا دې هر کله چه عذابونه د مشرکانو مخکښې ئې ذکر کړل لیکن د هغوی آلهو هغوی سره هیڅ امداد نه دې کړې نو په دې آیت کښې د هغوی د عجز او کمزورئ مثال ذکر کوی د پاره د رد کولو په ټولو مشرکانو باندې .

اِتَّخَذَتْ بَيْتًا ، په صیغه د اتخذ سره اشاره ده چه بیت نه دې لیکن دې پرې د بیت خیال کوی د دې وجې نه نسیج العنکبوت ئې نه دې ذکر کړې ځکه نسیج خو حقیقت کښې شته لیکن بیت یعنی کوټه نشته .

تفصیل د مثال دا دې لکه چه عنکبوت جاله جوړوی لیکن په دا سې مکان او صحرا کښې چه صفائی ئې نه کیږی شاړوی او دې په دې جاله باندې خیال کوی چه دا زما کوټه ده ما به د بادو باران د کرئ یخنئ او د تسمر د تپ نه بچ کوی لیکن که په دنیا کښې تلاش او کړې نو د دې نه به کمزورې ځائې پیدا نکړې ځکه دا جاله هیڅ فائده نه ورکوی ماسوا د دې نه چه میچ پکښې ښکار کیدې شی او کله پکښې عنکبوت پخپله او نخلی او مړ شی .

نو دا رنګ مشرکانو په خپلو باطل معبودانو باندې عقیده لرلې ده وائی چه موږ چه دوی ته سجدې کوو او د دوی نذرانې پیش کوو په دې به دوی موږ لره د هر مصیبت او تکلیف نه بچ کوی او زموږ حاجتونه به پوره کوی راو دا عقیده همیشه په شاړو جاهلانو خلقو کښې راځی چه هغوی د عقیدې د صفائئ هیڅ خیال نه ساتی)

يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ ۭ

دوی ئې بلنه کوی سوا د الله تعالیٰ نه که هر څه وی،

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝ وَتِلْكَ

او خاص هغه دے زورآور حکمتونو والا. او دا

الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا

مثالونه بیانوؤ موږ دپاره د خلقو او نه

يَعْقِلُهَآ اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ ۝ خَلَقَ اللّٰهُ

پوهیږی پرے پاتے مګر عالمان. پیدا کړی دی الله تعالیٰ

لیکن که ډیر تفتیش د دینونو اوکړے نو د دین د شرک نه به درته کمزورے بل دین ملاؤ نشی ځکه چه دغه معبودان دے عابدانو لره هیڅ حاجت نشی پوره کولے او نه تربینه هیڅ تکلیف او مصیبت لرے کولے شی. بلکه د دے حقیقت نه په وجه سره به په عذاب کښ اخته شی. هاں د شرک پرے حقیقت سره د مریدانو نه د دُنیا مال او عزت حاصله وی لیکن د دغه مالونو او د دُنیا د عزت مثال خو د مچ نه سپک دے، معمولی فائده حاصله کړی لیکن ختمے فائدے تربینه فوت شی.

سلا - دا دلیل دے د رد د شرک او د الله تعالیٰ درے صفتونه ئې ذکر کړے دی او پدے آیت کښ جواب د وهم دے. وهم دا دے چه دا عنکبوت مثال ئې ولے عام بیان کړو د اولیاؤ او بزرګانو عبادت کوونکی تربینه ولے نه مستثنیٰ کول؟

حاصل د جواب دا دے چه الله تعالیٰ خو د دے ټولو په حال باندے خبر دے چه دا ټول کمزوری او عاجزدی د هیڅ چا هیڅ حاجت نه شی پوره کولے.

الْعَزِيْزُ، یعنی ملګرو ته ئې حاجت نشته. الْحَكِيْمُ، یعنی مشیرانو ته ئې هم حاجت نشته.

سلا - پدے آیت کښ د مثالونو فائدوته اشاره ده او رد دے په هغے

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ اِنَّ

آسمانونه او زمكه د حق ښكاره كولو دپاره ، يقيناً

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۴۴﴾

په دے كښ خو خامخا دليل دے دپاره د مؤمنانو .

جاهلان دي. او په دے آيت كښ دليل دے چه عالِم د الله تعالىٰ په تيز هغه څوک دے چه د قرآن كريم په مثالونو كښ سوچ كوى او په هغے باندے پوهه لري.

يَعْقِلُهَآ پوهه د مثال داده چه وجه شبه په دواړه طرفونو (مشبه او مشبه به) كښ او پيژني او په حكمتونو د مثال باندے پوهيږي او دا ئے د دے وجے نه ذكر كړو چه مشركانو وئيل چه الله تعالىٰ دا سے د سپک څيزونو مثالونه نه ذكر كوى نو الله تعالىٰ د هغے قائلوته اشاره اوكړله.

۴۴:- دا هم دليل دے د رد د شرک. او د الله تعالىٰ څلورم صفت ئے ذكر كړيدے يعنى څوک چه په مثالونو نه پوهيږي نو د آسمان او د زمكے په دليلونو كښ دِ فكر اوكړي او ايمان دے راوړي.

اُتۡلُ مَاۤ اُوۡحِیَ اِلَیۡكَ مِنَ الۡكِتٰبِ وَاَقِمِ

لوله هغه چه وحی کړیشوی ده تاته د کتاب نه او پوره کوه

الصَّلٰوةَ ؕ اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنۡهٰی عَنِ

مونځ لره، یقینًا دغه مونځ منع کوی د

الۡفَحۡشَآءِ وَالۡمُنۡكَرِ ؕ وَلَذِكۡرُ اللّٰهِ

ښکاره بدئ نه او د ناروا وئ نه، او خامخا ذکر د الله تعالی

اَكۡبَرُ ؕ وَاللّٰهُ یَعۡلَمُ مَا تَصۡنَعُوۡنَ ﴿۴۵﴾

ډیر لوے دے، او الله تعالی پوهه دے په هغه څه چه تاسو کوئ۔

وَلَا تُجَادِلُوۡۤا اَهۡلَ الۡكِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِیۡ

او بحث مه کوئ د کتابیانو سره مګر په هغه طریقه

۴۵:- په دے آیت او وروسته آیت کښې څلور آداب او امور د دعوت د پاره ذکر کوی یعنی د رد د شرک د پاره د مثال سره دا کارونه هم کوه چه آوریدونکو کښې اثر پیدا شی په دے آیت کښې د هغے نه دوه ئے ذکر کړے دی۔

اول لوستل د کتاب د الله تعالی چه د هغے نه علمونه حاصل کړی او نورو خلقو ته بیان کول د کتاب الله مراد دی۔

دویم عمل کول په پابندئ کولو د مانځه باندے او د مانځه فائدے ئے بیان کړیدی۔

اول دا چه د ګناهونو نه منع کوی دویم دا چه په مانځه کښې د الله تعالی ذکر دے او ذکر د ټولو عبادتونو نه لوئے عبادت دے۔

فَحۡشَآءِ، هغه ګناهونه دی چه په عقل سره هم د هغے ناکاره والے معلومیږی۔

مُنۡكَرِ، هغه ته وائی چه صرف په دلیل شرعی سره معلوم وی چه دا ګناه دے۔

فائده:- مراد د مانځه نه هغه مونځ دے چه د رسول الله صلی الله

هِيَ أَحْسَنُ ۖ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا

چه خائسته ده مگر هغه کسان چه ظلم ئې کړی دې

مِنْهُمْ وَقُولُوا آمَنَّا بِالَّذِي

د دوی نه (په عناد سره) او واییٔ ایمان راوړی دې مونږ په هغه څه چه

أُنزِلَ إِلَيْنَا وَأُنزِلَ إِلَيْكُمْ وَإِلَٰهُنَا

چه نازل کړی شوی دې مونږ ته او نازل کړی شوی دې تاسو ته او حقدار د بندګیٔ زمونږ

وَإِلَٰهُكُمْ وَاحِدٌ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ﴿٤٦﴾

او حقدار د بندګیٔ ستاسو یو دې او مونږ هغهٔ لره تابعدار یو -

علیه وسلم د سنت سره برابر وی او قبول وی - صو څوک کنار شخص که د کنا هونو کولو نه نهٔ منع کیږی نو د دهٔ مونځ کښې په ضرور شرعي نقصان وی او قبول به نه وی -

وَلَذِكْرُ اللَّهِ أَكْبَرُ، د دې ډیر توجیهات دی. اوله معنیٰ دا ده چه ذکر د الله تعالیٰ د ټولو عبادتونو نه لوی عبادت دې ځکه چه ذکر الله نه مراد ذکر په عقیده د توحید سره دې او دا بنیاد د ټولو عبادتونو دې دویمه معنیٰ دا ده چه ذکر د الله تعالیٰ په مانځه کښې لوی (غوره) دې د ذکر هغه نه چه بهر د مانځه نه دې - دریمه معنیٰ دا ده چه ذکر د الله تعالیٰ تاسو لره ډیر لوی خیز دې د ذکر ستاسو نه هغه لره او هغه حاصلیږی په صحیح مونځ کولو سره -

تَصْنَعُونَ، صنع هغه عمل ته وئیلې شی چه ډیر کړی او عادة کیدلې شی -

سله :- دا دریم ادب د دعوت دې او خاص دې په کتابیانو او اهل علمو پورې یعني هر کله چه دوی په تاسو باندې باطل اعتراضونه کوی نو د هغې الزامی او مسکت (چپ کوونکی) جوابونه ورکوئ او خائسته طریقه استعمال کړئ یعني کنځل او ګاله ټبه مه استعمالوئ بلکه په حجت د کتاب الله او د سنت سره جواب ورکوئ -

وَلَا تُجَادِلُوا، مراد د جدال نه د اعتراضونو جوابونه ورکول دی -

وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ ط

| او دغسې نازل کړې دے موږ تا ته کتاب ، |
|---|

فَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يُؤْمِنُوْنَ

| نو هغه کسان چه ورکړې دے موږ هغوی ته کتاب ایمان راوړی |
|---|

بِهٖ ۚ وَمِنْ هٰٓؤُلَآءِ مَنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ ط

| پدے باندے او د دے کسانو نه هغه څوک دی چه ایمان راوړی پدے کتاب باندے، |
|---|

وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الْكٰفِرُوْنَ ﴿۴۷﴾

| او انکار نه کوی د آیاتونو زمونږ نه مگر کافران - |
|---|

اَلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ، مراد د ظلم نه ضد او عناد دے یعنی د هغوی پشان معامله کوئ سخت جواب ورکوئ او که جګړے ته ضرورت شی نو هم ورسره جهاد کوئ دا سے ابن کثیر ذکر کړے دی.

د قُوْلُوْا ، دا څلورم ادب دے یعنی په وخت د مجادله او مناظره کښې فیصله په کتاب مُنَزَّل باندے کوئ ځکه چه ایمان په ما انزل الله پورے خاص دے او د ټولو کتابونو مقصد توحید دے د دے وجے نه روستو یې وَاِلٰهُنَا وَاِلٰهُكُمْ وَاحِدٌ ذکر کړے دے .

ف :- د دے آیت نه ذکر کوی څلور طریقے د صدق د قرآن او د رسول صلی الله علیه وسلم .

پدے آیت کښې اوله طریقه ده یعنی مخکنو علماؤ اهل کتاب او د عوامو موجودو نه بعضے خلقو دا قرآن منلے دے نو معلومه شوه چه رښتنی کتاب او رسول دے .

وَمِنْ هٰٓؤُلَآءِ ، مراد د دینه صحابه کرام دی .

وَمَا يَجْحَدُ ، سره زجر دے منکرینو ته پدے کښې دوه توجیه دی . اوله دا چه په انکار د قرآن سره کافر شوه . دویمه دا چه د مخکښې نه کافر (منکروو د توحید نه) دی نو د دے وجے نه د قرآن نه انکار کوی .

وَمَا كُنْتَ تَتْلُوا مِنْ قَبْلِهٖ مِنْ

او نه وې ته چه لوستلې وې تا مخکښې د دې (قرآن) نه څه

كِتٰبٍ وَّلَا تَخُطُّهٗ بِيَمِيْنِكَ اِذًا لَّارْتَابَ

کتاب او نه لیکلې دې تا کتاب په ښی لاس خپل سره دغه وخت خامخا شک به کړی وې

الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۴۸﴾ بَلْ هُوَ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ

باطل پرستو. بلکه دا قرآن دی آیاتونه ښکاره

فِيْ صُدُوْرِ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ ط

په سینو د هغه کسانو کښې چه علم ورکړې شوې دې،

وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الظّٰلِمُوْنَ ﴿۴۹﴾

او انکار نه کوی د آیاتونو زمونږ نه مګر ظالمان.

۴۸:- دا دویمه طریقه ده یعنی دا رسول لوستونکې د کتابونو نه دې او نه خط لیکلې شي نو معلومه شوه چه دا کتاب ئې د ځان نه نه دې جوړ کړې.

بِيَمِيْنِكَ، دا په باعتبار د اکثر عادت دې او اشاره ده چه لیکل په ښي لاس سره یکار دی.

اِذًا لَّارْتَابَ. یعنی که چرې دا نبي لیکونکې وې نو بیا به د دې منکرینو د شک د پاره څه سبب وې لیکن اوس خو هیڅ وجه د شک نشته.

الْمُبْطِلُوْنَ، هغه خلق چه د حق مقابله کوی په باطلو شبهاتو سره. باطلوونکې دی حق لره په خپلو ارادو سره یا مُبْطِلُوْنَ په معنیٰ د خاوندان د باطل پرستۍ دی سره دې.

۴۹:- دا دریمه طریقه ده د اثبات د صدق د قرآن او رسول صلی الله علیه وسلم یعنی دا قرآن محفوظ دې په سینو د صحابه کرامو کښې او د نورو علماؤ او حافظانو په سینو کښې نو د دې تحریف د الفاظو او ابطال هیڅوک نشي کولې او دا د قرآن کریم خصوصیت دې چه ما سوا د انبیاؤ علیهم السلام نه د امتیانو په حافظه کښې هم راتلې شي.

وَقَالُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ آيَاتٌ

او وائي دوی ولې نشي نازليدلې په دغه باندې معجزات

مِّن رَّبِّهِ ۖ قُلْ إِنَّمَا الْآيَاتُ

د طرف د رب د دغه نه، ته اووايه يقيناً د معجزاتو اختيار

عِندَ اللَّهِ وَإِنَّمَا أَنَا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٥٠﴾

د الله تعالی سره دے، او يقيناً زه ويره درکوونکے ښکاره يم.

أَوَلَمْ يَكْفِهِمْ أَنَّا أَنزَلْنَا عَلَيْكَ

آيا او نه ده بوره د دوی د پاره دا خبره چه نازل کړے دے مونږ په تا باندے

الْكِتَابَ يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ

کتاب لوستلے شي په دوی باندے، يقيناً په دیکښې

او مخکنی کتابونه په صرف د انبياؤ چه حفظ کښ راتلل امتيانو به نه شو حفظ کولے۔

أُوتُوا الْعِلْمَ، نه معلومه شوه چه د الله تعالی په نيز د قرآن والا عالمان دی او علم ئې اوئيل حفظ ئې نه دے وئيلے ديته اشاره ده چه اصل فرض علم د قرآن دے که حفظ ورسره وی نو غوره ده۔

فائده:- په مخکښ آيت کښ اَلْكَافِرُونَ ئې وئيلے دے ځکه چه مقابل کښ ايمان ذکر کړے دے او په دے آيت کښ الظَّالِمُونَ ذکر کړے دے ځکه چه دليلونه د صدق ذکر شول او بيا هم که څوک انکار کوی نو هغه عنادی او ظالم وی۔

منه:- دا زجر دے په اعتراض کولو سره په صداق د رسول او د قرآن باندے په دے وجے سره چه د دعوی په نيز ايات او معجزات را اوړل د نبی په اختيار کښ دی۔

اول جواب او شو چه معجزه صرف د الله تعالی په اختيار او قدرت کښ ده د نبی په معجزه کښ هيڅ اختيار نشته دا په سورة رعد ۳۸ کښ تير شوی دی۔

لَرَحْمَةً وَّذِكْرٰى لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۱﴾

خامخا رحمت او نصیحت دے د پاره د قوم چه ایمان راوړی۔

قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ شَهِيْدًا ۚ

ته أووایه پوره دے اللہ تعالیٰ په مینځ زما کښ او په مینځ ستاسو کښ فیصله کوونکے

يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ

عالم دے په هغه څه چه په آسمانونو کښ دی او زمکه کښ دی،

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوْا

او هغه کسان چه یقین لری په باطل معبود باندے او انکار کوی

بِاللّٰهِ ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۵۲﴾

د الله تعالیٰ نه دغه کسان خاص دوی تاوان والا دی۔

سله:۔ دا دویم جواب دے د سوال۔ حاصل د جواب دا دے چه قرآن کریم پوره معجزه ده او د ټولو معجزاتو نه بهتر ده ځکه چه باقی پاتے کیدونکے معجزه ده او تمام اهل دنیا ته د دے اعجاز ثابت شویدے۔

اَوَلَمْ يَكْفِهِمْ، یعنی په اثبات د صدق د رسول او د کتاب کښ د قرآن اعجاز کافی دلیل دے۔

لَرَحْمَةً، سبب د نزول د رحمت الٰهی دے یا سبب د اطمینان د زړونو دے یا رحمة په معنیٰ د نعمت خاصه دے۔

فائده:۔ دا ښکاره دلیل دے چه په معجزه کښ د نبی قدرت او اختیار نه وی ځکه چه قرآن معجزه ده نو که په دیکښ قدرت د نبی وے نو بیا خو به دا افتراء وه لکه چه مشرکانو اعتراض کوو۔

سله:۔ دا نتیجه ده د مخکښ بیان چه الله تعالیٰ د رسول او د قرآن صدق ثابت کړو نو دا شهادت د الله تعالیٰ دے او دا شهادت کافی دے د پاره د اثبات د صدق۔ بیا زجر دے منکرینو ته چه سره د دے شهادت نه څوک په باطل کتابونو او معبوداتو او شبهاتو باندے یقین کوی او د کتاب د الله تعالیٰ نه انکار کوی نو دا په لوے خسران کښ دی

وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ ۭ وَلَوْلَآ

او په تادئ سره غواړي ستا نه عذاب (د دنيا) ، او که چرے نه وے

اَجَلٌ مُّسَمًّى لَّجَاۗءَهُمُ الْعَذَابُ ۭ

نيټه مقرره خامخا راغلے به وے دوي ته عذاب ،

وَلَيَاْتِيَنَّهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا

او خامخا رابه شي دوي ته ناساپه او دوي به نه

يَشْعُرُوْنَ ﴿۵۳﴾ يَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ ۭ

پوهيږي - په تادئ سره غواړي دوي ستا نه عذاب ،

وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ﴿۵۴﴾

او يقيناً جهنم خامخا راګيروونکے دے کافرانو لره -

يَوْمَ يَغْشٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ

په هغه ورځ چه راګير به کړي دوي لره عذاب د پاسه د دوي

وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ وَيَقُوْلُ

او لاندے د خپو د دوي نه او او به وائي

ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۵۵﴾

او څکئ (سزا) د هغه عملونو چه تاسو کول -

۵۳ :- دا زجر دے په زر طلب کولو د عذاب دنيوي سره او د هغے جواب او شو چه عذاب به په خپلے نيټے سره او ناساپه به راځي -

بَغْتَةً ، هغه دے چه د وخت او تاريخ تعين ئے معلوم نه وي اګرچه علامات ئے وي -

۵۴ ، ۵۵ :- دا زجر دے په زر غوښتلو د عذاب اخروي (يعني دوي وائي چه د نيټے نه دے مخکښ راشي) او بيا ئے د منکرينو خلور حالات د تخويف ذکر کړے دي -

يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ اَرْضِيْ

اے بندګانو زما هغه کسان چه ایمان یے راوړے دے یقیناً زمکه (ملک) زما

وَاسِعَةٌ فَاِيَّايَ فَاعْبُدُوْنِ ﴿۵۶﴾ كُلُّ

فراخه ده نو خاص ما لره بندګي کوئ - هر

نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ثُمَّ اِلَيْنَا

ساه والا څکونکے د مرګ دے بیا به خاص مونږ طرفته

تُرْجَعُوْنَ ﴿۵۷﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

راګرځولے شئ تاسو- او هغه کسان چه ایمان یے راوړے دے او عمل یے کړے دے

هغه دا دی احاطه د جهنم، غشی د عذاب، د هر طرفه عذاب، ذوق د عذاب، او د دے پشان سورة اعراف ۴۱ کښ تیر شوی دی.

۵۶ ؛- خلاصه ؛- د دے آیت نه تر آخر د سورت پورے څلورم باب دے په دیکښ ذکر د ابتلاء بالهجرة دے په څلورو طریقو سره - بیا درے عقلی دلیلونه دی چه په هغے کښ مهاجرینو ته تسلی هم ده او په هر یو دلیل کښ څلور څلور څیزونه ذکر کړے دی بیا څلور زجرونه دی او اختتام دے په دعوای د سورت سره -

ربط ؛- هر کله چه د مشرکانو زجرونه او تخویفات ډیر ذکر شول نو هغوی د ضد او عناد د وجے نه په مؤمنانو باندے ډیر ظلم شروع کړو نو الله تعالی ترغیب د جواب ورکړو -

تفسیر ؛- په دے آیت ۵۶ کښ اوله طریقه د ترغیب الی الهجرة ده یعنی چه په یو ملک کښ ظلم وی د طرف د مشرکانو نه پابندی وی په اظهار د توحید او د طاعاتو باندے نو د هغه وطن نه هجرت کول فرض دی -

وطن پریخودل لازم دی لیکن دین پریخودل جائز نه دی -

اِنَّ اَرْضِيْ وَاسِعَةٌ، په دیکښ اشاره ده چه په هجرت سره وسعت او فراخی حاصلیږی -

۵۷ ؛- دا دویمه طریقه ده د ترغیب الی الهجرة یعنی د وطن او دوستانو

الصّٰلِحٰتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ

دَ سنت برابر خامخا ځائے ورکوؤم دوی ته دَ جنت نه

غُرَفًا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

بنګلے بهیږی په لاندے دَ هغے نه ولے

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿۵۸﴾

همیشه به وی دوی په هغے کښ ښهٔ دے ثواب دَ (داسے) عمل کوونکو۔

الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰي رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿۵۹﴾

هغه کسان چه صبر ئے کړے دے او خاص په خپل رب باندے ځان سپاری۔

وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَاۗبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا

او ډیر زنده سر دی طاقت نه لری دَ روزئ پیدا کولو ځان لره

اَللّٰهُ يَرْزُقُهَا وَاِيَّاكُمْ ڮ وَهُوَ السَّمِيْعُ

الله تعالیٰ روزی ورکوی هغوی ته او تاسو ته هم او هغه هر څهٔ آوری

وغیره نه هسے هم په مرګ سره بے اختیاره جدائی راتلونکے ده نو دَ هغے نه وړاندے دَ الله تعالیٰ دَ دین دَ پاره په خپل اختیار سره جدائی اوکړه یعنی هجرت اوکړه داسے په سورۃ العمران ۱۸۵ کښ هم تیر شوے دی۔

۵۸ ، ۵۹ :- دا دریمه طریقه ده دَ ترغیب الی الهجرة یعنی بشارت خاصه دے په سبب دَ هجرت کولو ځکه چه الَّذِيْنَ صَبَرُوْا کښ صبر په تکالیفو دَ هجرت باندے داخل دے او دا رنګ وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ، کښ ترک دَ اعتماد په وطن او په اهل وطن باندے داخل دے او غُرَفًا کښ اشاره ده که دَ دُنیا مکانونه په هجرت کولو سره پاتے شی نو په جنت کښ به اوچت مکانات حاصل شی۔

الْعَلِيمُ ﴿٦٠﴾ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ
او په هر څه پاندې پوهه دے - او که چرے تپوس اوکړے ته د دوی نه چه چا پیدا کړیدی
السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ
آسمانونه او زمکه او د خپل حکم لاندې کړیدے لمر
وَالْقَمَرَ لَيَقُولُنَّ اللّٰهُ ۚ فَأَنّٰى
او سپوږمئ خامخا دوی به وائی الله تعالیٰ څه رنګه اړولے شی
يُؤْفَكُونَ ﴿٦١﴾ اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ
دوی د حق نه - الله تعالیٰ فراخوی روزی

ملك :- دا څلورمه طریقه ده د ترغیب الی الهجرة یعنی دا وهم دیو مؤمن شخص ته کوی که چرے زهٔ وطن نه لاړشم نو روزی به څه رنګ ملاویږی جواب ورکړے شو چه تولو بے طاقته ځناورو ته الله تعالیٰ روزی ورکوی نو مهاجر فی سبیل الله ته به ضرور ورکوی -

ملك :- دا دلیل عقلی اعترافی دے د پاره د توحید او زجر دے مشرکانو ته او په یکښ څلور امور ذکر کړیدی او مناسبت د دے د ترغیب الی الهجرة د څلورمے طریقے سره دے یعنی روزی د الله تعالیٰ د طرفه کتړئ ځکه چه هغه خالق مدبر روزی تقسیم کوونکے او د روزئ اسباب پیدا کوونکے دے او دا صفتونه د هغهٔ مشرکان هم منی- او په دے آیت کښ د رزق د پاره څلور اسباب ذکر کړے دی-

اول السَّمٰوٰتِ، د آسمانونو نه تقدیر د رزقونو راځی او بارانونه ترے وریږی-

دویم وَالْأَرْضَ، د دے نه بوټی راوځی د پاره د روزئ-

دریم الشَّمْسَ، په دے سره میوے غلے پخیږی-

څلورم وَالْقَمَرَ، په دے سره ترقی د بوټو راځی او رنګونه ئے هم بدلیږی-

لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ ؕ

چا لره چه اوغواړي د بندګانو خپلو نه او تنګوي هغه لره،

اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۶۲﴾

یقیناً الله تعالیٰ په هر څیز باندے علم لري -

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ نَّزَّلَ مِنَ

او که چرے ته دوی نه تپوس اوکړے چه چا راورولے دی د

السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ

آسمان د طرف نه اوبه پس تازه کړیده په هغے سره زمکه

مِنْۢ بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ؕ

روستو د اوچ والی د هغے نه خامخا دوی به اوائی الله تعالیٰ نه،

قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ

ته اوایه ټول صفتونه د خدائی خاص الله تعالیٰ لره دی، بلکه ډیر د دوی نه

لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۶۳﴾ وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا

عقل نه لري - او نه دے دا ژوند دنیوی

سـ۶۲:- دا دویم دلیل عقلی دے او دفع د وهم ده که څوک وهم اوکړی چه خالق د روزئ الله تعالیٰ دے لیکن فراخی او تنګسیا په د بل چا اختیار کښ وی جواب اوشو چه دا هم د الله تعالیٰ په اختیار کښ ده او په دے دلیل کښ دوه څیزونه ذکر کړی دی بسط او قدر او دا نظام موقوف دے په علم باندے نور پسے اوئیل اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ۔

سـ۶۳:- دا دریم دلیل عقلی دے او اعترافی دے حاصل ئے دا دے چه روزی او فراخی او تنګی کښے په اختیار د الله تعالیٰ کښ د دے وجه نه ده چه اسباب د روزئ باران ورول او زمکه کښ قوت نباتیه پیدا کول د الله تعالیٰ په قدرت کښ دی - په دے دواړو آیاتونو کښ څلور

إِلَّا لَهْوٌ وَلَعِبٌ ۚ وَإِنَّ الدَّارَ الْآخِرَةَ

مگر مشغله ده او لوبے دی، او یقیناً کور روستنے

لَهِيَ الْحَيَوَانُ ۚ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٦٤﴾

خامخا هغه ژوند پوره دے که چرے دوی پوهیدلے.

فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ

نو هرکله چه دوی سواره شی په کشتئ کښ نو رابلی دوی الله تعالیٰ لره

مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۚ فَلَمَّا

اخلاص کوی د هغه په بلنه کښ نو هر کله چه

نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ ﴿٦٥﴾

نجات کړی دوی لره اوچے ته دغه وخت دوی شریک جوړوی د الله تعالیٰ.

خیزونه ذکر کړے دی او هرکله چه د رزق تفصیل اوکړے شو چه د الله تعالیٰ د طرف نه دے نو اختتام کښ ئے امر اوکړو په اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وئیلو سره اشاره ده چه په رزق استعمالولو سره حمد د الله تعالیٰ ضروری دے.

۶۴ :- د دے آیت نه تر ۶۸ پورے څلور زورنے ذکر کوی. په دے آیت کښ زورنه ورکوی دنیا پرستو خلقو ته چه دوی علم نه لری د دنیا په فنا او د آخرت په بقا باندے.

ربط :- هرکله چه تیر شوے درے آیاتونو کښ د دنیا خیزونه ذکر کړل نو په دے سورت کښ ورته اشاره اوکړه په هٰذِهِ سره.

لَهْوٌ، هغه خیز دے چه صرف زړه مشغولوی یعنی په دے سره انسان د الله تعالیٰ د ذکر نه مشغولیږی، او لَعِبٌ هغه خیز دے چه بے فائدے او زر فنا کیږی.

اَلْحَيَوَانُ، حیاة حقیقیه دا شمه چه فنا پرے نه راځی او غمونو او دردونو نه پاک وی.

۶۵، ۶۶ :- دا دویم زجر دے په شرک د دوی سره، سره د پوهے د دوی نه چه مصیبت لرے کوونکے الله تعالیٰ دے. او دا دلیل

لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ ۚ وَلِيَتَمَتَّعُوا ۖ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٦٦﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا

(عاقبت دا) انکار اوکړي دوی د هغه نعمت چه مونږ دوی له ورکړی او دپاره د دې چه مزې واخلي

پس تر دې چه دوی به پوهه شي۔ آیا دوی نه گوري چه

جَعَلْنَا حَرَمًا آمِنًا وَيُتَخَطَّفُ

گرځولے دے مونږ حرم امن والا تختولے کیږي

النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ۚ أَفَبِالْبَاطِلِ

خلق چاپیره د دے نه، آیا په باطل معبودانو باندے

يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَةِ اللَّهِ يَكْفُرُونَ ﴿٦٧﴾

یقین لري او د احسان د الله تعالیٰ نا شکري کوي۔

د جهل د دوی دے او هم داسے تیر شویدي په سورة یونس ۲۲ او سورة بني اسرائیل ۲۷ کښ۔

او دا دلیل دے چه معرفت د رب په فطرت د هر انسان کښ شته دے۔

ربط :- هر کله چه مخکښ نعمتونه د روزئ ورکولو ذکر شول نو اوس زجر ورکوي د هغې په ناشکرئ کولو سره چه شرک کول دي۔

وَلِيَكْفُرُوا، لام د عاقبت دے او دا متفرع دے په يُشْرِكُونَ باندے۔ وَلِيَتَمَتَّعُوا، دا تفریع ده په نَجّٰهُمْ باندے۔

۶۷ :- دا دریم زجر د دوی دے په ناشکرئ او شرک کولو سره لکه چه په وخت د لرے کیدلو د تکلیف کښ شرک کوي نو دا رنگ په باره د امن د مکه مکرمه کښ هم خپلو شرکاؤ ته نسبت کوي او شرک کوي۔

اَلْبَاطِلِ، مراد د دینه معبودان من دون الله دي چه مشرکین به د مکے د امن نسبت لات منات وغیره ته کوؤ۔ لکه اوس چه مشرکان د یو کلي یا علاقے د امن او برکاتو نسبت یو قبر والا (چه هغه کلي ته نزدے دي) ته کوي۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰی عَلَی اللّٰهِ

او څوک ډیر ظالم دے د هغه چا نه چه جوړه وی په الله تعالیٰ باندے

كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهٗ ؕ

دروغ یا د دروغو نسبت کوی حق ته هر کله چه راغے دوی ته،

اَلَيْسَ فِیْ جَهَنَّمَ مَثْوًی لِّلْكٰفِرِیْنَ ﴿۶۸﴾

آیا نشته په جهنم کښ ځائے د دیره کیدو د پاره د کافرانو.

وَالَّذِیْنَ جَاهَدُوْا فِیْنَا لَنَهْدِیَنَّهُمْ

او هغه کسان چه ځان کړوی زمونږ په رضا کښ خامخا ښایم به دوی ته

سُبُلَنَا ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِیْنَ ﴿۶۹﴾

لارے زمونږ، او یقینًا الله تعالیٰ خاص ملګرے دے د ښائسته عمل کوونکو.

---

۶۸ :- دا څلورم زجر دے - افْتَرٰی عَلَی اللّٰهِ كَذِبًا، یعنی شرک کوی او نسبت ئے الله تعالیٰ ته کوی کله وائی لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا عَبَدْنَا او کله وائی وَاللّٰهُ اَمَرَنَا بِهَا.

بِالْحَقِّ، نه مراد نبی صلی الله علیه وسلم او قرآن دے.

۶۹ :- دا متعلق د ابتداء د سورت سره دے او بشارت دے هغه چا ته چه مخکښ ذکر کړے شوے فتنے او امتحانات ئے په ځان باندے تیر کړی دی.

جَاهَدُوْا، نه مراد دغه تیر شوے کړاؤنه دی چه تیر کړی ئے دی.

فِیْنَا، یعنی په لار د الله تعالیٰ کښ یا د وجے د رضا د الله تعالیٰ نه مراد تربینه اخلاص دے ځکه چه جهاد بغیر د اخلاص نه نه قبلیږی.

لَنَهْدِیَنَّهُمْ سُبُلَنَا، فضیل بن عیاض نقل کړے دی چه " چا ځان اوکړاؤ په طلب د علم د دین کښ په اخلاص سره نو او به ښایم دوی ته طریقے د عمل کولو".

سهل بن عبد الله وئیلی دی چه " چا ځان اوکړاؤ په طاعت زمونږ

کښې او په خاتم ورته لاړے دَ ثواب"۔
دریم دا چه چا ځان اوکړاؤ په دعوت تبلیغ دَ دین کښې په اخلاص سره نو علم په ورکوؤ دهٔ ته دَ دلیلونو دَحق، او دا په تجربے سره هم ثابت ده چه داعی دَحق ته الله تعالیٰ اِلهام دَحجتونو کوی۔
اَلْمُحْسِنِیْنَ، هغه کسان مراد دی چه عمل ئے اوکړو پس لے سورت پاتی شے۔

تَمَّ تفسیر سورة العنکبوت۔ وکذا تم المجلس السادس بعونه تعالیٰ وتوفیقه وکرمه۔ والحمد لله تعالیٰ۔